




# پښتو وییپوهنه

# او

# وییرغاونه

پوهاند دوکتور م.احمد زیار

۱۳۹۳ ل

د دوکتورا پلار سویسي ((ژارژ ردار))
او فرانسي همکار او همیوني دوست ((شارل کیفر)) ته
په پښتني افغاني مینه

# اړین و بنسټیز ترمونه

کړ =فعل

تېرمهال

(څیز) نوم =اسم

خجن =بافشار

کړی =مفعول

کړند =فاعل

کړول =قید

کړولۍ= ریشهٔ فعل

کړسته

کړنوم = مشتق فعلی

نومکړ= فعل مشتق اسمی

کړنومی=ناپای، مصدر

شمېرنوم =اسم عدد

بېواک=کنسوننټ

خپلواک= واوېل

بېلنګ= مشتق

ترنګ= ترکیب

تول- اضافت، ملکیت

تولنوم= مضاف الیه

تولنومی= مضاف

تولنوم ترنګ= ترکیب اضافی

تول سربل= پیشینهٔ(ادات) اضافی

ستاینوم =اسم صفت

ستاینومترنګ

**څو ترښتي = ( ترکیبي ) بېلګې**

خوړ-√+ونکی = خوړونکی

خور-(- aw -)√+ونکی = خورōونکی

کار (-aw-) √+ونکی=کارōونکی

کار(-ېد) √+ونکی= کارېدونکی

کورa-√+نی=کورنی

کور-a-√+نی= کورنۍ

کور+واک-ی=کورواکی

هلـ(-u-)+کی=هلـوکی هلـور..

هلـ(-a -)+ور=هلـور

ترب(-ور)+ګني= تربګني

غویی+بل+لرگی= غوبلرگی غویمنه
چرخول، ښځوک، ښځنوک، ښځنوکی، ښځینه،
ښځمنه، ښځگله، کټ+مل=کټمل..

# نیولیک

| سرلیک | مخګڼه |
|---|---|

| ويي پوهنه | نیولیک |
|---|---|

# د خپرندويې ټولنې يادښت

موږ ترهرڅه له مخه دا بريا د هغو زده کړيالو او نورو گردو مينه والو پرلپسې غوښتنې او ټينگار پېبره (محصول) بولو چې د يوه داسې ارزښتمن پوهنتوني لوست کتاب بياخپراوي ته يې راوڅکو لو. همدا راز له ټولمنلي استاد زيار صاحب څخه د زړه له تله منندوی يو، چې تر پښويې (گرامر) رارو سته يې د نوې پښتو ژبپوهنې او ورسره ورسره پر نړيوال کچ د نويو نويو رامنځته شويو ليدتوگو او ليدلوريو په رڼا کې د دغه کموندي (نا ياب) کتاب ۳۵ کلنه چاپ شوې بڼه تر بيا کتنې لاندې و نيوله

او دا يوکال يې په پرلپسې نويوکرونو او زياتونو درې-ځلور برابره راوغځوله.

له دې سره زموږ د زاړه چاپ په کمپيوټري اوړ کې هم د يومخيز بدلون او زياتون راوستو په موخه دېته اړووت، له اکسفورډه تر ننګرهاره دوه ځله د يانه سختې اوستوغې وګالي. همداچې تېرکال منى يې وربانديې په ۴۵ ورځنى استوګنه کې زړه اوبه و نه ځښلې ، هغه هرڅه يې ببرته له ځان سره يوووړل او د ښاغلي ((کليوال پاچا)) په سيده او ناسيده مرسته ملګرتيا يې پرې دا يو کال بل هم ورسرباري کړ. خو استاد په دغه اوږده تخنيکي بهير کې دا کابو تر لاسه کړه چې له ځرنګيز او ځومره ييز پلوه په ټوله مانا يوکره او پنډ و پېړ کتاب د چاپ لپاره په واک کې راکاندې او هم د ښه ترا چاپي بهير د ځارنې لپاره د راتګ ستونزې اوستوغې يوځل بيا پر ځان ومني .

د استاد د خپلې ځرګندونې پر بنسټ، دغه ژبپوهنيز ښبير د (( يوې-کره ليکنې پښتو)) د رامنځته کړي ځلوبښت کلن غورځنګ د غورځاوټو، او همدا رنګه د ځوان کمپيوټري پښتنې پښت لپاره يو بشپړ انده لار ښود بلل کېږي، چې پر هېوادني او جهاني کچ يې د

## د خپرندويې ټولنې يادښت

## ويې پوهنه

پښتو سرچينې او سيالۍ په موخه ويې رغا ونې او په ټوله کې د ثلورګونې ويپانګې يو برابر کارونې ته راهڅېدلي او بيا يې د بېلابېلو علمي، فرهنګي او تخنيکي څانګسيندونو (څانګيزو قاموسونو) کښنو ته متې رانغښتې دي.

په ټوله پښتې مينه او مننه!

د مومند خپرندويې ټولنې په استازۍ

محمد آصف صميم

## پر لومړي چاپ د پخواني پوهندوی او اوسني (کاناډامېشتي) پوهاند استاد زاهدي تقريظ:

دانش دامن گستردهٔ تحقیق مرزهای مشخص وجلی دارد. به همان گونه که تیوریهای علمی با گذشت زمان تغییر میکنند ، شیوه های نگرش علمی و تحقیقی نیز تعدیل میابند. بعضاً دریک زمان معین محققان شیوه های متفاوت را به کار می بندند ، تا آنچه نتیجهٔ کارشان درست جلوه دهد ، تایید و آنچه را نادرست وانمود می نماید ، رد کنند. به همین سبب است که همیشه در یافته های محققان نکات قابل منا

قشه موجود است، این نکات قابل مناقشه غالباً انگیزۀ تحقیقات مزید میگردند.

کتاب (پښتو ويي پوهنه) مانند هر اثر علمی دیگر از این امر مستثنی نیست و پاسخ ده همه پرسش های ممکن دربارۀ موضوع زیر بحث نمی باشد. امیدوارم، این اثر علمی و تحقیقی اساس تحقیقات پیشرفته تر، متکاملتر و دقیق تر را در ساحۀ لغت شناسی در زبان پشتو پی ریزی و شیوۀ نگرش ژرفتر وجامعتر را به محققان پیشکش نماید.

موضوع کتاب (واژه شناسی) در زبان پښتو است، دربخش ( پښتو ويي پوهنې ته يوه لنډه کتنه ) لغت شناسی در زبان پښتو در مدت، بیش از دوسده به صورت جامع ولی فشرده بررسی گردیده و دریافت شده است که در این بخش بس عمدۀ زبان پښتو کار علمی و جامع مبتنی بر اساسهای زبانشانسی معاصر صورت نگرفته است و باید این خلای علمی ازبین برده میشد.

این کتاب در حال حاضر یگانه اثری است که در نتیجۀ اندیشه و کار دقیق یک دانشمند افغان این خلا را پُر کرده میتواند، نیاز مندی برای وضع کلمه

ها و اصطلاحات جدید در رشته های مختلف علوم و جنبه های متعدد زندگی جهت معرفی یافته های نو و اندیشه های نو به پیروی از یک دسته موازین و غایهٔ علمی در تمام کشورها ، مخصوصاً کشور های رو به انکشاف محسوس است، در کتاب زیر بحث به این نکته توجهٔ جدی مبذول شده و برای وضع اصطلاحات و ایجاد کلمهٔ مشخص به اساس نمونه ای نو و کُهن پیشنهاد گردیده است.

چون این کتاب اصلاً به حیث یک اثر علمی برای ارتقأ به رتبهٔ پوهنوال نگاشته شده بود ، جنبه های تشریحی و تطبیقي قواعد اشتقاق و ترکیب در آن بارز است و به پشتوانهٔ نکات مورد نظر مثالهای بسیار از منابع مختلف چون نگاشته های امروز و گذشته و گویشتهای محلی و منطقوی داده شده است که اثر را محدود به یک لهجه یا گونه ، مشخصات زبان پشتو نمی سازد ، بلکه به کیفیت آن می افزاید ، غنای مواد این اثر به محصل و خواننده وسعت نظر میدهد.

سابقهٔ طولانی نویسنده گی نگارندهٔ این کتاب، چه در نظم و نثر ادبی و چه در نگارش اثار متعدد

علمی، باید در بخش سلاست و روانی انشای این کتاب سوالی راه ندهد. اگر چه شمار اصطلاحات جدید در این کتاب، مخصوصاً به رابطهٔ دستور زبان و زبانشناسی زیاد است، اما فهرست اصطلاحات جدید با معادل مروج شان، وهم ذکر اصطلاحات معادل در متن، خواننده را در فهم مطالب یاری می نماید.

شما ر اندک از نکاتی که ایجاب تعدیل یا تصحیح را می نمود، با شخص پوهنوال دوکتور زیار به میان گذاشتم تا در نسخهٔ قلمی اصلاح گردید. چون این اثر به حیث کتاب درسی یا ممد درسی برای استفاده در دیپارتمنت زبان و ادبیات پښتو طبع میگردد، من پیشنهاد کردم که ستونهای (اخځ، بنسټ و غربلیک) بنابر دلایل آموزشي از کتاب حذف گردند، شکل خطاطی و طبع آفست این کتاب باید از بروز اغلاط احتمالی که در چاپ حروفی ممکن است، جلوگیری نماید.

چاپ این کتاب که جنبه های مختلف عملیهٔ واژه سازی را در زبان پښتو توضیح و تصریح می نماید، به طور خاص به محصلان زبان وادبیات پښتو که غالباً بعد از فراغت به تدریس وتحقیق اشتغال دارند، یک

عمل با ارج و پراهمیت است، زیرا فهم عملیهٔ اشتقاق و ترکیب در کلمه سازی، در فهم معنای کلمه ها و در نتیجه در فهم معنای جمله ها بسیار مؤثر است.

امید وارم که نشر این کتاب از یک طرف رهنمای شایسته ای در ساحهٔ واژه شناسی و واژه سازی در زبان پښتو و از طرف دیگر انگیزهٔ تحقیقات مزید در این مورد گردد.

با احترام

پوهندوی محمد عمر زاهدی

استاد رشتهٔ زبان و ادبیات انگلیسی

کابل، جوزای ۱۳۶۰

## پېژندګلوي (Introduction)

دا ښښير (اثر) لومړی پلا پر ۱۳۶۰ ل. کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادب پوهنځي د پښتو څانګې د لوستليکي (درسي کتاب) په توګه چاپ شوی وو. په دغه ۳۴ کلن مهالپېر کې پر ښوونيز کارونګ سربېره ترې نورو ډېرو مينه والو هم پوره ګټه واخيسته. له زړو ټوکو څخه يې چې څه راپاتې ول، زما د نورو چاپ او ناچاپو کتابونو په لړ کې د پرلپسې سياسي ناخوالو او بخولو بلهارې شول.

له راتپلو ناخوالو او بخولو سره سره، بيا هم دا د پښتني ټولنې د ذهني - فرهنګي پرمخيون ښکارندويه ده چې

پرلپسې زياتېدونکې اړتيا او لېوا لتيا (مومند کتاب خپر ندويه ټولنه) د دغه کتاب دويم چاپ ته راهڅوي او ما يې هم نوې کتنې او غځونې ته راڅکوي.

تر لومړي چاپ وړاندې چې ما د سکالو په تړاو کومې ماتې ګوډې ليکنې خپرېږې د وږمې، کابل، پلوشې او نورومهالنيو له لارې خپرولې اوبيامې په کتابي بڼه چاپ ته وسپاره، د ډېرو ليکوالواو خپرنوالو پسې، نه سرګرځاوه او نه يې هم پرې سر خلاصېده؛ په تېره خو يې وييرغاونه ،کورټه اوسکو ته يو پدل او تابو انګېرل.

په دې لړکې ما له وخت او زغم سره سم هڅه وکړه، له تيور يک او مېتوديک پلوه پکې د ستر نابغه ژبپوهاند نووم چو مسکي د ((زېږندې)) ليدتوګې او لارې رودې پر بنسټ ادلون بدلون راولم.او له پرکتيکي پلوه پرې د کلو کلو څېړلي پلټلي توکي ورزيات کړم. همداراز له بېخ وبنسټه پر هممهالې- سپنيزې (ساينکرونيک- دېسکرېتيف) لاره روده پر مخ وا خلم او نامهالي تاريخي(دايکرونيک- هېستوريک) هغې ته پرېږدم. هرګوره، د اړتيا له مخې اړوځم، په څېرمه توګه لږ و

ډېر پام ورواړوم. هغه هم زياتره، د غږپوهيز-آرپوهيز( فونولوجيک - اپتېمولوجيک) سپيناوي په موخه.
ترلومړي چاپ وړاندې چې ما د سکالو په تړاو کومې ماتې ګوډې ليکنې خپرنې د ورمې، کابل، پلوشې او نورو مهالنيو له لارې خپرولې او بيا مې په کتابي بڼه چاپ ته وسپاره، د ډېرو ليکوالو او څېړنوالو پسې، نه سرګرځاوه، او نه يې هم پرې سر خلاصېده؛ په تېره يې وييرغاونه خو، کوږته او سکوټه يو پدل او تابو انګېرله
نن سبا، ځوان کمپيوټري پښت، په تېره جلاوطنی دا، وييرغاونې ته دومره راهڅېدلي چې د خپلو خپلو علمي، فرهنګي او تخنيکي ځانګوخرانګو د بشپړو ترمينالوجيو راخپلونې ته يې ملا تړلې او له ما سره يې را شريکوي. ټوليز ليکوال او رسنوال هم، که وغواړي، ونه غواړي، له دغه نوي خوځښته ګوښې پاتې کېدای نه شي.
لکه د اړوند سنيدګي په سريزه کې چې ورته نغوته شوې، د (يوې - کره ليکنۍ پښتو) د پرلغښتي غورځنګ په لومړيو کې زموږ په اروا کې هم نه ګرځېده چې يوه زريزه زاړه پورو بيونه (شنبه، يکشنبه، دوشنبه، سه شنبه......) هم نور د نوي خوځنده پښتني پښت پر زړه نه ځايېږي او پښتوکولو ته يې رادانګي!.

پښتو بې بې سي راډيويي خپرونې بيا تر بلې هرې رسنۍ د ګڼو نويزونو د دودونې او رغاونې ترڅنګ زموږ پر پخوا نيو ورزشي نومَونو (وزلوبه، لو بغاړی،لوبغالی، لوبډله...) نورې هم ورزياتې کړې، لکه: پايلوبه، نيمه پايلوبه، لو بڅار، شل وا ريز... په دې لړکې کولای شو، (ربعه پايلوبه quarter final ) هم( پاوپايلو به) راوژباړو!

په دې توګه، اوس ډېرو ته نوره پوره ډاګيزه شوې چې پر هېوادني او جهاني کچ د پښتو د نومهالی سيالۍ چار تر هر څه له مخه په ليکنې يووالي او کره والي،او بيا وييپانګيز پراخوالي کې نغښتی دی. دا ور ته هم په کړن کې پر زباد رسېدلې چې د ((ژب- فرهنګي)) يرغل پر وړاندې د پورپانګې (فارنېزمونو ، اداپتېزمونو) ترڅنګ د درېګونې نړه پانګې، په بله وينا ، د ګړ ويزونو (دايلکتېزمونو)، زړويزونو (ارکا ييز مونو) او نويزونو (نيولوجېزمونو) غځونه له نتېه نه منونکو اړ ينتياوو څخه ګڼل کېږي.

وييونه له آره د ژبنۍ سپما يوه ښکارنده ده. دا سمه ده چې انسانانو د ژبې پنځون له يووستوو وييونو څخه رانښلولی، خو په رارو سته بشپړتيايي پړاوونو کې پر يوه پر لغښتي ← غړيزسېستم راوښتې ده. بيا له سره دې ته اړوتي چې د سپما بي آر له مخې وييرغاونې ته هم مخه وکړي چې يو لړ غونډ

لې پر غونډونو واړوي، غونډونه پر ترنګونونو، او بېلنګو نو. خو له وخت تېرېدنې سره يو ګڼ شمېر ترنګونه په سرچپه ډول، پر بېلنګونو او دا يې بيا پرسا ده وزمه وييونو هم راړو لي او راروسته يې بيا له سره پرلپسې ترنګونه او بېلنګونه ځنې رغولي دي.

(سپور) د اټکل له مخې ړومبی (هغه چې اسپ راوړی) او (اسپ وړی) وو، بيا (اسپ وری)؛ وروسته (ور- wor) کړ پر روستاړي (-ور) واوښت، (اسپور) ځنې ورغېد او په پای کې يې (الف) هم له لاسه ورکړ او اوسنۍ بڼه (سپور) يې راخپله کړه. هرګوره، د (ور-) له روستاړي سره نور بېلنګونه (اشتقا قات)، لکه: بختور، زړور، زورور، نسور... هم رامنځته شوي دي. پارسي يې (-آور- ور) دواړې بڼې ساتلې او د سپور انډ ول يې له (آسه ور) څخه پر (سوار) را اړولی؛ په نوي ژبني پړاو کې بيا زوړ روستاړی (-ور) هم لړو ډېر (-بر) شوی دی، لکه په دلبر، پيامبر... کې.

د دې مانا دا ده چې په پښتو کې زياتره اوسني تاړي (وندو نه، افېکسونه)، په تېره روستاړي د پخوانيو خپلواکو وييو نچو ړلې (نوموالې او کړوالې) بڼې دي. نورې بېلګې يې، لکه: په لوېديځ، ختيځ، مينځ،وريځ، دريځ، سندرغا ړي، ژباړه، ژبړه، لوټمار... کې او پاتې نور يې له آره وييکي (اد

ات)، لکه: مختا ړي (بې، نه، نا)، منځتاړي (را-در-ور، و، ا، تر، پر) او روستا ړي، لکه په کورنی،کورنۍ، بنديز، وړ ين... کې (←اړوند ډولونه).

پايله يې دا چې پښتانه هم پر خپل وار د ژبنۍ سپما په موخه له وييرغاونې ارام نه دي کښېناستلي، او له کله راهيسې يې چې ژبې ليکنۍ بڼه راخپله کړې او پټليز يې ورسره پوهې، فر هنګ او تخنيک ته مخه شوې، نو د هماغو نيم اګا هانه رغو ليو بېلګو پر بنسټ يې، په اګاهانه او څه نا څه پرلغښتې تو ګه لړو ډېره وييرغاونې ته اوړه ورکړې ده.

موږ وکړای شول، د نوې ژبپوهنې په رڼا کې پښتو مينانو ته دا هم ورجوته کړو چې نويزونه (نيولوجېزمونه)، ګړويزونه (دايلېکتېزمونه) او زړويزونه (ارکاييزمونه) سره يوځای د هرې ذوديالې ليکنۍ ژبې د څلورګونې وييپانګې لومړنې درې نږه رغنده ټوکه (متشکله اجزأ) رغوي، څلورم رغنده ټوک يې پور وييونه (فارنېزمونه) دي چې په ملايي ژبه يې راخپل شوي يا اداپټېزمونه هغه ( مفغن) بلل کېږي او له لږو ډېرادلون بدلون سره (مستعار و دخيل).

پر وړاندې يې ځانساتي ليکوال بيا هم پردې نو مهالې سيا لۍ د پخوا په څېرځان ناګاروي او پردې سرېبره چې له ژبپو هنې او ژبنيو آرونو دويونو يوه لږه کۍ خبرتيا نه لري، زموږ

پر ډېرو ساده او ټو لپوهاوي وړ ځرګندونو پسې هم سر نه ګر ځوي چې پښتو له پارسۍ سره د ملي سيالۍ لپاره ((يوه-کره ليکنۍ)) پښتو او ورسره تړلې درېګونې ويېپانګه پر ژبپو هنيزو آرونو، او په ځانګړې توګه د ژبې پر ((زېږندويه)) ځو اک او وړتيا ټيکاو لري.

دوی داسې سپستې له خپلې خبټې راباسي چې دا، يا هغه نرېه پښتو انډول د عربي، پارسي... ويي جاج و مانا پوره نه ښندي، يا دومره (عاطفي) رنګ نه لري او په کار نه ده، خپل دا يې ور ځايناستی کړو. د بېلګې په توګه ليکوال د نوموتي پښتوشاعراوليکوال (نور حبيب نثار) د دې خبرې په غبرګون کې چې (ماشوم) د نرېه پښتو انډولونو (کوشنی، کمکی، وا ړه، وړکي، کړاخي...) پر وړاندې دومره (عا طفي) رنګ نه لري، وويل: دا يو پرتليز (نسبي) ورمند (قضاوت) دی او ګر دو پښتنو ته داسې نه برېښي، د ساري په توګه پېښوريانو ته چې يوازې (ماشوم) کاروي، دومره (عاطفي) نه ابسي، لکه چې وايي: (ته لا ماشوم يې، غلی کېنه!).

په کارخو لا داوه. چې نوموړي ليکوال د يوه ننګرهاي په توګه ايوان(حيوان) تر ټولو ((عاطفي)) بللی وای!

بله بېلګه يې ادبي ليکوال اوکره کتونکي (اسد غضنفر) چې د ((عر ببزم)) په سيالۍ کې يې ان د ((استاد رشاد)) سرور

گرولی، د بي بي سي پښتو خپروني په مرکه کې رامخته کړه او هغه داچې (-لپاره) د (-په لحاظ) او (-په خاطر) جاج (مفهوم) عيناً (کټ مټ) نه شي ښندلای، خو همدانيز (- په پار) يې هېڅ پر ياد نه وو چې له سېمانتيک او سايکالوجيک پلوه پښتنو ته تر هر پردي انډوله په زړه پورې دی.

هسې خو تر پرونه يوه شاعر ته ((عشق)) تر ((مينې)) او ((عاشق)) تر (مين) ډېر عاطفي اېسېده، خو نن سبا وينو چې هغه ((عاطفه)) پښتو انډولونو ته را لېږدېدلې او هماغومره را ګښون يې په برخه شوی دی!

د مالک فدا په ترانه (بالا پرکل جهان د پښتو نښان دې وي) کې د (اوچت پر ټول جهان) پرځای (بالا پرکل جهان) کارول له ځانغښتاوي نور څه نه ليدل کېږي.

د ژبپوهنې او بيا وييپوهنې يونيم پېښناوو، لکه د ((ه. خپل)) څرګندونه، چې د (و) ګړنۍ ژبې ژولي راژولي، ترګړويزونو، زړويزونو او نويزونو غوره انګېري، يو بې سروبوله خبره ده، د ببلګې په ډول ليکي: (سوب) د (سبب) يو منل شوی (مفغن) دی (!)، نو (لامَل) يې ولې ځايناستی شي، ځکه لامَل له (عمل، عامِل) سره اخښي او پر پښتووالي يې شک کوي.(د زيات رڼا

وي او سپړاوي لپاره ← (۱- ځپرکی: پورويزی، مستعار، د خيل، مفغن).

دا .هغه ځانساتي زده کړه وال او بيا ليکوال دي چې د خرارې غوندې له خپل ځان و ټولنې پرته،شا وخوا نړۍ ته نه ګوري او سوچ کوي چې هرڅه سم دي، ټولنيز، فرهنګي، سياسي، پر مختګ روان دی او همدا غنيمت دی. دا له ځا نه نه پوښتي چې له دغه پلوه د نورو سيالي کولای شو او له همدغې سيا لۍ پرته:بل کوم کره کاڼي (محک) په لاس کې درلودای شو ؟ سيالي په افغاني- پښتني ټولنيزو ارزښتونو (نرخونو کې) را ځي او نرخ هغه څه دی چې وايي له ولسه ووځه، له نرخه مه وځه)، مانا داچې. له سيالۍ وتل له ولسه وتل دي او ناسياله پکې ژوند نه شي کولای. مونږ د ژوندو ژواک په هرګام کې سيالۍ ته اړتيا لرو دا متل مو هم ورته فلسفې ته رابولي:

پر لوړه وخېژه ځار وکا

څه چې نور کا، هغه چار وکا

او سنی بشري تمدن له ګردو مانيزو او توکيزو ښکارندو او برياوو سره د سياليو زېږنده بلل کېږي او همداسې پر مخ درومي. د پانګوالي هېوادونو پر وړاندې د ناپانګوالي (سو سيالېستي) هېوادونو د ناکامۍ يو تر ټولو ستر او بنسټيز لا مَل د پوره سيالۍ نشتوالی ارزول کېږي. سيالي هم له پر

مختللي او مخکښ سره، نه تر ځان بتر روسته پاتې سره. دا به ځومره د خندا او خندی وړ وي، ځان پر دې وغولاوه چې د (سوماليا) په څېر ترموړ يو بتر هېواد ياتولنه هم شته، ياني له پايه دويمه روسته پاتې ټولنه لرو!

دابه له ځان تېرېستنې پرته بله مانا ونه لري چې خپله مورنۍ پښتو د پارسي ژبې پرځای د هېواد له نوروژبو، لکه پاميري، دردي او نورستاني ژبو) سره پرتله کړو چې ګړسره ببليکه دي او د پوهې او فرهنګ له پلوه له پښتو سره سيالي نه شي کولای

له نوې ژبپوهنې يو شمېر ناخبر زده کړه وال، ليکوال او ان پوهان داسپسته رامخته کوي چې ژبه د (ولس مال) دی او د ژبپوهانو څېړنې او بيانوې رغاونې پکې يوه بېځايه او ناروا لاسوهنه ده!

خوله ژبپوهنې او ژبنيو سکالوو هر ناخبر ته دومره ووايم چې: ((له ولسه زه را غلی يم او له نرخه ته خبر يې؟)). که ژبپوه د ولس له نرخ ((ژبې)) خبر نه وي، اساسي قانون ((ګرامر)) به يې څنګه جوړ کاندې، هغه لکه قانونساز خپل اومه توکي له ولسه راخلي، د همدغه قانون په رڼا کې بيا يوه يوازېنۍ کره ليکنۍ بڼه ور ټاکي او څلورګونې وييپانګه يې ورجوتوي.

## ویي پوهنه

ژبپوه پوره پوهېږي چې د ژبې کومه برخه په ولس اړه لري او کومه په ژبپوهنه یا لیکنۍ برخه. له دې سره دا هم غوټه ده چې ټاکلي سلنه یې ژبه له یومخیز ((ژبني- فرهنګي یرغل او ورکاوي)) ورژغوري. ځکه د پوهې او فرهنګ د پوړ (قشر) ترې نه رغېږي او سل په سل کې له هو بهو راخبستنې سره خپله ژبه ورو ورو له خپلې ټولنې او ولسه پردۍ کوي!

د ژبپوهنې د پرلپسې تیوریکي پرمختګونو په رڼا کې مو د ویپوهنې او ویرغاونې په تړاو ښایسته ډېرې اړونې راړونې او کرونې تر سره کړې. یو شمېر سکالووې او ټولۍ (مقولې) مو للون کړې او یوشمېر نوې مو تر څېړکواو پړوکو وغځولې.

په دې لړکې مو ← تړ خپلو اک (themstic wovel)، ← منځخپلواکونج (Ab laut)، ←کړډولونه او← کړ نومونه (deverbatives) تر ډېره بریده کره کړل؛← نومکړونه (denominatives)، ← غونډیز کړونه (phrasal verbs)، ← ټاکندویه غونډونه (-dified phrases mo)، ← جوتغونډونه (firme phrases)، ← پرتلویېونه (analogic words)، ← ونجویزونه (semanjisms) او داسې نورې څېرمه او وړې ټولۍ (کتېګورۍ) مو بیا تازه پرکار واچولې او یو ګڼ (نهم) څېرکی مو ورته ځانګړی کړی دی.

د کرونې په لړ کې په کار وه، له (زبرند - لېږند) څېړندود سره سم د پښوييزو او وييپوهيزو نومونو (ترمونو)، تولیو (کړ، نوم، کړنوم، نومکړ، څيز نوم ، ستاينوم، څيزنومکړ شوي ستاينوم، ستاينوم شوي څيزنوم، مختاړي، منځتاړي، روستاړي، ريښې، ستې...) لپاره لاتين - انګرېزي سپمبولونه (V,N,VN,NV,Sb,Adj...) او اړوند لښتيليکونه ياګرافونه (stemmas) هم په بشپړه توګه وکاروم، خو يو خوا مې خپل وخت و زغم او بلخوا مې د لوستو نکو او زده کوونکو ستو نزې سترګوته نېغې ودرېدې.
دغه راز مو ونه شو کړای، د تخنيکي ستونزو له کبله د غږ يزې ابېڅې او زور و زبر بشپړ پرکاروا چوو ، ګوندې ګران مينه وال د وينګ په تړاو اړوندو اخځونو ته مخه وکړي.
هرګوره، د مينه والو د ښه ترا پوهاوي لپاره مې اړينه وبلله چې د څو ځانګړو ليکنښو (....,<,>,←) ترڅنګ د نويو پښتو انډولونو ( انګرېزي، جرمني...او ترکېدونه (عربي او پارسي) هغو له بيا بيا کاروني يو څه وخت و زغم بلهاري کړو او سپمايي آر له پامه وغورځوو!
ستاسې د ټولو اغلو ښاغلو مننداوی زيار
اکسفورډ - سپتېمبر ۲۰۱۳

# ۱- څپرکی

# نومونې (اصطلاحات، دانشواژه ها)

# Terms

ژبه (زبان language)

ژبه د داسې ترونې (قراردادي) غرېزو پيلامو (علامو، سېمبو لونو) يو غونډ ال (نظام، سېستم) دی چې د يوې ټولنې وګړي يې د خپلمنځي تړاو او پوهاوي لپاره پرکار اچوي. پيلام (علامت، سېمبول) دا مانا چې له ځان پرته د يوه بل څه استازي او ښکارندويي کوي، د بېلګې په توګه سور رنګ د خطر پيلام په توګه له ځانه ور اخوا ښکارندې ((خطر)) ښکار ندويي کوي. دلته سور رنګ ښوونډ (دال)، خطر ښوولی (مد

لول) او د ښوونـد او ښوولي ترمنځ تړاو ښوونګ (دلالت)، په نورو ټکو، (مانا) بلل کېږي.

د ژبنيو پيلامو (سېمبولونو) ارزښت د اړونـدې ټولنې له خوا ټاکل شوی او د هماغې ټولنې د وګړو ترمنځ د وبله پوهاوي تړاو ټينګوي. دغه سېستم (ژبه) هر وګړی په ټولنه کې په منځنه توګه له زېږونه تر پېنځه- شپږ کلنۍ پورې له مور، تي مور او نورو څخه د اورېدو او پېښو له لارې ناسيده او ناګا هانه زده کوي او پر کاراچوي.

مانا دا چې ژبه يوه ټړوني، ټولنيزه ورهنيزه (کسبي) وسيله او ټولنيزه پديده ده. په ټولنه کې زده کېږي او په ټولنه کې پرکار لوېږي، او يوازې په انسانانو پورې اړه لري. پيدا ايښت يې هم له هغه مهاله راپيلېږي چې انسانانو ګډ ټولنيز کارو ژوند ته مخه کړې ده.

ړومبی يې د ژوند چاپېريال، پېښو، ژويو، ونو بوټو.نومونه، په نورو ټکو، و ييونه رامنځته کړي او د ← ويي پيدا ايښت لړۍ يې رانښلولې، بيايي سره اوبدلي رااوبدلي، غونډلې او غونډونه يې ځنې رغولي او په پای کې يې بشپړتيا وربښلې ده. دهمدغې بنسټيزې اړ يکيزې وسيلې پنځونه وه چې انسا نې تمد ن يې راشونی کړ او پرلپسې پر مختيايي بهير ته يې راګډ کړ، لکه چې وايي:

## ويي پوهنه

«د ژبې ودې او بشپړتیا، بشر د انسانیت بشپړتیایي پړاو ته ورساوه، او د لیک پنځون د تمدن بشپړتیایي پړاو ته».

ژبپوهنه (زبانشناسی languistics)

هغه پوهنه ده چې ژبه او د هغې منځته راتګ، څرنګوالی، رغښت، ادلون بدلون او راز راز سکالووې تر څېړنې لاندې نیسي. څه چې په ژبپوهنه کې څېړل کېږي، هغه به یوه ژبه یا څو ژبې وي، خو په تیوریک ډول له ژبې او ژبنیزو سکالوو پرته، نورڅه د ژبپوهنې وېینه (بحث) نه شي کېدای. هرګوره، له پرکتیک پلوه له نورو پوهنو، په تېره له بشري یا ټولنیزو پوهنو (فلسفې، تاریخ، ساپوهنې، ټولپوهنې، توکمپوهنې، لرغونپوهنې...)، همدا راز له وګړپوهنې، ژوند پوهنې، شمېر پوهنې سره ګډ اړخونه، او همدا راز د کاروني ژبپوهنې په نامه یې آرونه او دویونه (اصول او قواعد) په ژبلوست-کتابونو او لارښودونو کې پر کار اچول کېږي.

ماڼا (معنی، معنا meaning)

مانا له آره پښتو ویی دی چې له اوسنیو اروپایي ژبو په بېلابېلو بڼو خوندي ساتلی او له عربي (معنی) سره یې همرنګي هسې یوه برابري (تصادف) بلل کېږي.

لکه چې پاس وویل شول، مانا (meaning) د ټولنې له خوا د رامنځته شوي تړون پر بنسټ د ښووندا او ښوولي ( دال و مد لول) ترمنځ تړاو، ښوونګ (دلالت) ته ویل کېږي، او د ژبپوهنې هغه څانګه چې مانا تر څېړنې او شننې لاندې نیسي، (مانا پوهنه) بلل کېږي.

پښویه (دستور grammar)

پښویه یا ګرامر د ژبپوهنې هغه څېرمه پوهنه ده چې د یوې (ټاکلې) ژبې رغښت، رغنده توکي له چار (عملیې، فنکشن) سره او بیا ټولیز کارونګ څېړي. پښویه هم د ټولیزې ژبپوهنې غوندې الواکي او کاروني (نظري او تطبیقي) برخې رانغاړي. پر درو غورو څانګو وېشنه مومي: اوازپوهه د (آواشناسی phonemics)، ګړپوهه (واجشناسی morphology) او غونډله پوهه (نحو syntax).

ټولیزه پښویه چې د نړۍ د ګردو ژبو لپاره پرکارواچول شي، لا تراوسه د یوې تیورۍ په پړاوکې ټیکاو لري. د سوسور تر رغښتي پښویې (سترکچرال ګرا مر) راروسته د چومسکي زېږنده - لېږنده پښویې (جنراتیف-ترانسفرمېشنال ګرامر) دغه لاره تر ډېره ورهواره کړې ده.

پښوییز چار (نقش دستوری grammatic function)

له مخه مو دا ځانته ډاګيزه کړه چې يو ژبني (سېمبول) دوه اړخه لري: ښوونداو ښوولی (دال ومدلول) او د دواړو اړخونو تړاو (دلالت) ته (مانا) وايي، له دغو دواړو پېژندو (تعريفو) سره دا پوښتنه هم رامخته کېږي چې پښويېز چار (نقش دستو رى) څه ته وايي او له دغو دواړو ځانګړتياوو سره څه اړاو تړ او لري، په نورو ټکو، دا وريز سېمبول او مانا تر څنګ په ژبني کارونګ او څرګنداوي (افاده) کې څه راز نقش و اغېز درلودلای شي؟

دا چې وايو، ← پښويه د ژبپوهنې هغه ښستېزه پوهنه ده چې د ژبې ر غښت، رغنده توکي له چار (عمليې (فنکشن) او بيا ټوليز کارونګ سره څېړي. په ګړپوهه (صرف) کې يې ازاد ګړ ونه (نومونه، فعلونه) د بېلا بېلو اړخونو (عدد، جنس، حالت، مهال...)ګردانوي او د دې موخې لپاره له نيم ازادو ګړو نو يا وييکو (د، له، ته، که، چې، سره...) او نا ازادو يا تړليو ګړو نو يا تاړو (م - يو، ې - ئ...) څخه کار اخلي او په دويمه ځا نګوړې غونډله پوهه (نحوه) کې له هغو ګردان شويو نومونو او کړونو څخه د وينا يا خبرو اترو بشپړ يوونونه يا واحدونه (غونډلې ياجملې) رغوي.

په دې توګه دغه ګرد کړن پېښوييز چار ګڼل کېږي او پر کار اچولي ژبني توکي يا سېمبولونه ورسره پېښوييز نومونه يا نومونې راخپلوي:

پېښويه ژبني سېمبولونه، يا په ساده نومونه، وييونه، لکه چې وويل شول، پر درو ډوله ګړونو او ځانګړو ترمونو (نومونو، کړونو) وېشي او نوموي، او وييکي د (اداتو) او ګرداني تاړي (مونيم). د بېلګې په توګه لکه (ـنی) په (کورنی) يا (ـم) په (خورم) کې په روړدي ډول کومه مانا زموږ ذهن ته نه را لېږدوي، خو د پېښوييز کړن له پلوه راته يو ارزښت لري او دغه ارزښت (پېښوييزچار) بولو.

دا هم د يادولو ده چې مانا او پېښوييز چار يو د بل بشپړونکي دي او دواړه په ګډه ـ هرګوره د نورو څېرمه وسيلو، لکه بېلا بېلو قرينو او نور ذهني زېربنډې، لکه اند و واند اوبيا د اور پډونکي د احساس په ګډون ـ د ژبني سېمبول موخه او دنده پوره پوره راډاګيزوي. له دې پلوه دا څه هېښنده نه ده چې نو مور فرا نسي ژبپوهاند (اندرې مارتن) تاړی کوشنيترين مانيز توک، مورفيم نه، بلکې (مونيم) بللی او مورږهم (مانګړ) را ژبا ړلی دی.

غږپوهه (آوا-خن شناسي phonetics,phonology)

دغلته هر راز ژبني غږونه په تولیز ډول څېړل کېږي. که دغه غږونه زنځيري وي، که نازنځیري او یا ژبنی (فونیمیکي) ارزښت ولري او که نه. په دې مانا ،هر غږ چې زموږ د خبرو په بهير کې له خولې راوځي، هرو مرو یو داسې غږیز یوون (واحد) اواز (فونیم) نه شي کېدای چې د یو مانیز توک په رغاونه کې کوم اغېزمن چار پرځای کړای او یا یې په نشتوالي سره مانا وونجلای شي. دغه راز غږونه له آره د یوه یوازېني اواز (فونیم) رغنده توکونه (متشکله اجزأ) یا بلغږونه (الوفونونه) بلل کېږي (۱-۲ پښنویه: بنستونه).

اوازپوهه (آواشناسی phonemics)

اواز پوهه د غږ پوهې هغه څانګوړې ده چې یوازې د یوې ژبې ارزښتناک غږونه (اوازونه، فونیمونه) څېړي، نه یې بېلا بېل بلغږونه (الوفونونه) او نورې تولیزې فونېتيکي اوښتنې را وښتنې، او له همدې پلوه د پښنویې لومړۍ برخه یا څانګه جوړوي.

ګړ (واج morpheme)

ګړ کوشنی ترین مانیز- پښنوییز توک دی چې له یوه (واوېل) یا څو اوازونو څخه رغښت مومي. که وشنل شي، نامانيز- پښنوییز توک یا توکونه لاسته راځي. ګړ درې ډوله دي: (۱)

ازاد یا یووستوی ← ویی ،(۲) نیم ازاد ، یا ← وییکی او (۳) ← ترلی گړ یا مانگړ (مونیم moneme ).

ازد گړ← ویی (word)

نیم ازاد گړ← (particle)

ترلی گړ (moneme)

ترلي گړ هغه دی چې په کړ اوړون (فعلي گردان)، نوم کړ اوړ ون (اسمي گردان) کې د کړسټو او نوم سټو په سراو پای پو رې په نښلونه مانیز- پښوییز چار تر سره کوي چې دغه راز گړونو ته مونیمونه وايي،او په وییرغاونه کې د← تاړو (مختاړو، منختا ړو ، روستاړو) دنده پر غاړه لري.

ویی (واژه word, lexeme)

ویی د← وییپوهنې او پښویې د یوون (واحد) په توگه یو ازاد ←گړ دی او په غونډله کې د یوه ←غونډله یز یوون constituent په توگه له مخکې روسته گړ یا ویي سره له نښلونې پر ته خپل پښو ییزه - جولیزه او ما نیزه خپلواکي ساتلای شي. په نورو ټکو، یو ویی په یوځاني توگه یو څیزاو پدیده را پر گوته کولای شي. له نورو وییونو او گړونوسره، نه یوازې په یوو ستوې ، بلکې بېلښتي او ترښتي بڼه هم جو لیزاو ما نیز، او غږیزو فو نیمیکي یا ورنه نژدې الفبایي ډو

لولونويا سپستمونو، لکه يوناني، لا تيني...او ځه ناځه زموږ عربي آري دې ليکنی يووالی هم خوندي ساتي.

يو ويی د ← وييرغاونې، په نورو ټکو، د جوليز رغښت له مخې درې رازه دی: ← يووستوی ويی، ← بېلښتي ويی او ← ترښتي ويی او ياغونډيز(عبارتي)؛ له پښوييزپلوه يو و يی، يا نوم دی (له ځلورو ډولونو او گرداني بڼو سره) او يا کړ دی (له بېلا بېلو ډولونواو گرداني بڼو سره).

ماريو-پای(۲۳۳) يې داسې راُپېژني:

ويی د يوه اند يا په دوده وينا، د يوه کوشنيترين خپلواک مانيز يوون(يونټ) يو گړنی يا ليکنی سېمبول دی؛ د ((ولمن)) له مخې يې ((د وينا او ژبې يو پاموړ کوشنيترين يوون)) او د بلومفيلد پر اخځ يې ((کوشنيترين ازاد فورم)) راښيي؛

او په پای کې د ولريښ(۷۹) د غبرگو (رغښتي- پسرغښتي) ليدتوگو په رڼاکې بشپړ کره(جامع ومانع) پېژند:

د دويو(قواعدو) پر بنسټ د وينارغاونې د يوون په توگه ځا يناستی يابلونج منو نکی، له ځه ناځه لارغې(مکث) سره له وړاندې روسته وييو څخه توپيربدونکی او په ځېرمه توگه، له ليکنې پلوه نا شننوړ، کوشنيترين خپلواک مانيز ژبنی سېمبول.

(خيز) نوم(اسم، noun)

خيزنوم (اسم substantive) چې له پخواني دود سره سم، په ټوليز ډول ( نوم،اسم، noun ) بلل کيږي. خو کله چې خبره پر نومډله يا نوموالهډله (nominal group) او څلورسره ډولونو (خيزنوم، ستاينوم، شمېرنوم او نومځری) راشي، او له نورو درو ډولونو(ستاينوم ، شمېرنوم او نومځري) سره يې توپير ول غواړو، نو هله موږ بيا، د لاتين (خيز، ماده- substance ) د انډول په توګه(خيز-) ورمختاړی کوو

د نوم(اسم، noun ) لاتيني انډول نومن(nomen) دی چې مانا يې نوم(name) ده، الماني ژبپوهان يې همدا لاتين انډول کار وي او په دې ډول يې ولريبش (۱۳۲) هم د (Nomen) تر سر ليک لاندې داسې راپېژني:

نوم هغه ويی يا ويي ډول دی چې ګرداني ګړونه يا پايلې، لکه: پېر، نوږی او ګڼه (حالت، جنس و عدد) ورپورې نښلول کيږي او همداراز يې(په ډېرو ژبوکې)← پېژند-ناپېژند (معرفه-نکره) هم ملګر تيا کوي، يو وګړی، ژوی، خيز، اند، واند(خيال)،اکر (حالت) ...رانوموي.

د (خيز) نوم ډولونه

يو نوم له مانيز پلوه پر دې لاندې څېلونو وېشنه مومي:

۱) پژنوم، زاتنوم (اسم ذات concretum or concrete noun)

هغه نوم دی چې يو توكيز او نګېرند (مادي او محسوس) څيز نوموي او په دې توګه بهرنی شتون(وجود خارجی) ولري، كه هغه ساوالا دی يا بې سا ،لكه: ژوی، وګړی، ونه، بوټی، غر، ډبره، اوبه، سيند.... .

د دوديز انډول (اسم ذات) په پلیونی يې (زاتنوم) هم ځكه كارو لای شو چې پښتو د عربي(ذات) پر وړاندې اركاييک (زات) له(ساكي) انا څخه راخوندي كړی، نه يوازې په يوو ستوې بڼه، بلكې په تړښتي بڼو، لكه په ( زوزات، زوی زات...) كې.

۲) مانانوم (اسم معنا) يا( abstractum or abstract noun)

هغه څه نوموي چې توكيز او نګېرند (مادی و محسوس)، نه وي، او په دې ډول بهرنی شتون(وجود خارجي) نه لري ،لكه: نيكي، بدي، سمون، روغتيا ، مېړانه، ښهانه... ؛ په دې لړ كې هرګوره، ستاينګونه(صفات)، لكه: ښه، بد... په ځاني ډول هم د پېرهاوي وړ نه دي، بلكې، له يوه څيز نوم سره په ملتيا د پوهاوي وړتياموندلای شي، لكه: ښه وګړی، بد وګړی... .

۳) ټولنوم(اسم عام common noun ) چې د يوې وګړنۍ، ژو ونۍ ډلې يا د بېسا څيزونو هر يو غړی يا ټوک(جزء) را پرګو ته کوي، نه يو ځانګړی هغه.

د ټولنوم بېلګې، لکه: سړی، ښځه، مور، پلار، خور، ورور، ونه، غنه،سړی، هلک، ښځه، نجلۍ، غر، ښار،بازار،سيند، ځنګل، ځناور، مېوه، توت، ګل، اغزی، ختټه، ګتټه،، ښار، مېنه(ناحيه)، کوڅه، کور، کورنۍ شودې، مستې.... ....

۴) ځانګړ نوم(اسم خاص proper noun) چې يو ځانګړی وګړی، لکه: زمر، ببری، برې، زمرک... ، يو نومېرلی څيز، لکه: تور راغه، سپين غر، ليلي دښته ،اباسين، هريرود.... په دې لړکې، هغه هم زياتره، په وګړوکې، کېدای شي، يو ځانګړنوم د دوه يا څو کسو تر منځ ګډون ولري، لکه واخلې، ببرې، زمر، زمری، زرين، زرينه، زرمينه، ثانګه، لېمه...، خو کله چې وايو، زرين راغی يا زرمينه راغله، موخه مو بيا هم دا يا هغه نو مېرلی نوم دی او هر يو پر هرچاجلاجلا ! ښنو ول شوی دی (يمين ۸-دستور)؛ همداسې يې په ټبرنومونو او ځاينومونو کې هم درواخله، لکه احمدزی-ي چې په غلجيو، وزيرو ... کې سره ګډون لري او داسې نور (زيي او (خېلونه) هم دروا خله، (يمين ۸-دستور).

د ځاينومونو په لړکې يو ساری (پېښور) دی، يو د خيبر پښتونخوا مرکزي ښار او بله د نورستان روستې. کلی چې وراخوا ترې اشکاشم راځي؛ په زړه پورې لا داچې د کونړ سيند د نورستان په اوبجه کې ((لنډی سيند)) بلل کېږي او بيا کابل سيند له نوښاره تر اټکه هم په ورته نامه يادېږي.

۵) غونډنوم (اسم جمع collectivum or collective noun) چې يوه ډله(گروپ) نوموي، لکه: کنډک(د وزو رمه؛ پوځي درې سوه کسيز يوون)، رمه، گله، گورم، گوند، سازمان، لښکر، ټولی، ټولگی، ټولنه، کورنۍ، ټبر...

۶) ځاينوم يا تونتوم (اسم مکان)، لکه: هېواد، ښار، پلاز مېنه، کلی، بانډه، سيمه، کور، کوټه، خونه، بڼ، دېره، وستل، او جره، کور، رغځی، پوهنځی، مېرتون، پوهنتون، پنډغالی مرېستون، مېلمستون، لوبغالی، ختيځ، لوېديځ...

۷) مهالنوم (اسم زمان)، لکه: گړۍ، شېبه، سانيه، شپه، ورځ، اوونۍ، مياشت، کال، پېړۍ، سپېده داغ، توره خړه، شنه خړه، روڼ گهيځ، سپين گهيځ... سهار، گهيځ، برېځر، غرمه، ماښام، شومه دم... چې ډېری يې بې له کوم سربل و ستربله د زماني کړولونو په توگه هم کارول کېږي.

۸) ځانگړتيايي (nomen qualitatis) چې يوه ځانگړتيا او ځرنگتيا (صفت، خصوصيت) نوموي، لکه: لويي يا لويوالی،

ويښيارتيا، مېړانه... پرهمدې جاج يې مورږ بېلبنتي بڼې سم له لاسه ← مانا نومبېلنگونه نومولي چې تر ستاينوميزو هغو روسته مو په دويم ډول نومبېلنگونو کې وړاندې کړي دي.

۹) کړننوم (agent-noun, Nomenactionis)

هر هغه نوم چې يو کارکړن يا پېښه پديده نوموي، لکه: ژوند جگړه، ، ټينگار(اصرار؛ مقاومت)، کارگري، کرگري، کارگري، باغواني، ښوالي ياچمياري، ترکاڼي، ختگري ، پښگرى، چمياري يا موچيگري، ترهگري، شوکماري او داسې نور کارونه کسبونه.

۱۰) چارنوم (اسم حرفوىagent-noun; Nomenagentis )

هغه نوم چې د يو کړن تر سره کوونکى يا پازوال(مسؤول) وگړى يا څيز نوموي، لکه: کارگر، کرگر، پښ، ترکاڼ، هنرمند، کارمند، مار، لړم، شرى، کوى، اسماني ټکه، توپان...← چارنوميز کړېلنگونه .

۱۱) لوښنوم (اسم آله)، هغه نوم دى چې د يوه کارکړن لوښى يا وسيله کېږي، لکه: تېخۍ(برمه)، لور، څټک، پوښاک...؛ کوم سربل چې له لوښنوم سره ملگرى کېږي، هم لوښنوميز سربلل کېږي، لکه: په (په کاشوغه ډوډۍ خورم) کې، په(په خپل مټ ژوند پرمخ بيايم) کې ببيا (خپل) له وسيلې (مټ) سره اړه پيداکوي او يو ترښتى تول (اضافت ترکيبى) او همهاله

کړول ور سره رغوي؛ سربل (له) د (سره) وستربل په ملتيا د (په) دنده پرغاړه اخيستای شي، لکه: (له +کاشوغې سره) ډو ډی خورم)، هرګوره، له(په) سره هم ډېر ويونکي(سره) ملګری کوي، خو په کره ليکنی ښتوکې ناړين بلل کېږي؛

که.لوښی وسيله په انسانی غړو(مټ، لاس...) اړه ولري، يا په بدلمانيز(مجا زي) ويي، لکه

(زړه: دزړه په زور) او يا په(په خپله خوښه- هڅه- هوډ...)

غوندې کړولونو،بيا ګرنيزې رغاونې او ماناوې رامنځته کوي.← لوښنومبېلنګونه.

۱۲) کوشيننوم (اسم مصغر Diminutivum or diminutive)

يو ويی يا نوم دی چې له ←کوشينروستاړي سره رغښت مومي.، لکه: کورکی، کورګی، ښځکه

يو شمېر نومونه، لکه (مرېک، مرچک، تيندک، چورلک، تلک، شوراوک، هلک؛ چورلکه، الوتکه، خزدکه،... هم پر نومونو اوښتي کوشيننومونه بلل کېږي. ←کوشيننوم- بېلنګونه.

۱۳)انګينوم (اسم صوت onomatopoetic word or noun

هغه نوم ته ويل کېږي چې د يوه طبيعي غږ پېښې، انګازه، غبرګون يا استازي نوموي، لکه: خرپ، غر، غرب، درز،

ګړز، ترنګ، ټنګ (+ټکور= موسيقي)، جړنګ... چې له ځينو يې (ځيز)نوموونه، په تېره لوښنوموونه هم رغېدلي، لکه، شرنګاني، جړنګاني؛ يا له بل نوم سره يو ترنګ جوړوي، لکه: ټنګ ټکور؛ پښتو ښايي، ، يوه کمسارې يا ببساري ژبه وي چې زياتره انګينو مونه يې د توندوالي او اوږدوالي (تدا وم) له پلوه دوه دوه او ځينې درې درې پوړۍ (درجې) لري، لو مړی ډول يې، لکه: ډز- ډزهار، ګړز-ګړزهار، غر- غرهار، ډب- ډبهار... او درې پوړيز، لکه: خرپ- خرپی-خرپهار، غرب- غربی- غربهار، درب- دربی- دربهار، شرنګ-شر نګی- شرنګهار، ترنګ- ترنګی- ترنګهار... (زيار: ۳- پښتويه؛ ۷۴،۱۱۴)؛. ولريښ(۸۲- ۸۱)؛ مار- پای(۱۰۲،۸).

## ټاکند (modifier)

هغه ويی، څرګندنه يامنځپښنه او څېرمه غونډله چې د يوه ويي چارومانا لوړوي يا محدودوي

ټاکندوی (qualifier) بيا هغه ويي ته وايي چې د بل ويي چارومانا لوړوي، محدودوي يا ټاکي(موديفايروي). په دې توګه: يو ځيزنوم بل ځيزنوم ټاکي، لکه کابل پوهنتون، کابل ښار...؛ يو ستاينوم يو ځيزنوم ټاکي، لکه لويه لار، ګړندی

گاډی، ښايسته ښځه، تکړه سړی...؛ ووړ هلک، لرې اوبه او داسې نور(ماريو-پای۱۳۸، ۱۸۰). هرګوره، په ټوله کې شمېر نوم او پېژندونا پېژند هم د ځيزنوم له ټاکندو يا ټاکندويانو څخه ګڼل کېږي.

ويیکی(حرف، ادات particle)

ويیکی (حرف، ادات) يوناوړيدونی، نيم ازادګړ (مور فيم) يا هغه کوشنی ويی دی چې د غونډلې دننه جوليزه خپلواکي لري، خو مانيز- پښوييز چار يې د ازادو ګړونو (وييونو( ← نومونو، کړونو، آرو کړولونو) په ملتيا را څرګندېږي او په دې توګه په د ← غونډاو غونډلې په رغاونه کې برخه اخلي، لکه: ← سربلونه (په، پر، تر، له...)، وستربلونه (سره، څخه، پورې...)؛ اړيکوييکی (conjunction)، د (عطف) په مانا، لکه(او، و)؛ د ( ربط) په مانا، چې غونډلې دننه يا د آرې او څېرمه غونډلو تر منځ اړيکی ټينګوي لکه: که، ځنګه، هسې، دو مره، څو مره، هومره...)ناړيکوييکی(disjunction) ، لکه: نه...نه...(neither...nor)، چې (نه آشه ښه ده، نه بله...) متل يې يوه په زړه پورې بېلګه ده.

ناتړوييکی(disjunctive conjunction (که، يا، خو)... (۳- پښويه۲۰۱-۲۱۴)

پېژند او ناپېژند (معرفه ونکره، ارتیکل)

په زیاترو اروپايي او سامي ژبوکې پېژند (معرفه، ار تیکل) د يوه ←وييکي، ياځپې او ځپلواک(واوېل) په توګه مختاړی کېږي←M.P:prithesis) اوناپېژند (نکره)، لکه پښتو(يو) او پارسي(یک)، انګرېزي(a,an) او الماني (ein) ورمختاړي کوي ؛ پارسي بیا د(یک) یا(یکی) تر ځنګ (-ی تنکیری) رو ستاړی هم کاروي؛ پېژند(معرفه) په دې دواړو ژبوکې، د رو سي او نورو سلاوي ژبو غوندې ، په (صفر) ښوول کېږي، لکه په(سړی راغی) او (يو سړی راغی)، (مرد آمد) او (مر دی آمد) کې؛ عربي معرفه(ال-) د نوم مختاړی کوي، لکه( جاءَ الرجل) او او ناپېژند يا (نکره) په (تنويني) روستاړي څرګندوي ، لکه په( جاءَ رجلٌ)کې(له س. ه. هاشمي پاچا نه په مننه).

همداراز په دې تړاو چې زموږ په ژبو کې د ناپېژند (نکرې) د بلونج (بدیل)په توګه ((مهمل)) هم را منځته شوی دی، ←( ۷ څېرکی، بیاځلي تړنګونه) ته هم مخهٔ وشي.

ويیپوهنه (واژه شناسیlexicology)

ويیپوهنه (علم الغته) د ژبپوهنې هغه څانګه ده چې د يوې ژبې يا ژبو ويیونه څېړي. مانا يې دا چې د ويیپوهنې يوون (واحد) ← ويی دی، او په دې ډول د دغه ژبني توکي په تړاو ګردې خبرې له بشپړ سپړاوي او پراخو بېلګو او ډلبنديو سره

تر څېړنې لاندې نيسي. د يوې ژبې د ويېپانګې ټوليز رغښت او تاريخي ، ادلون بدلون او په پای کې د ويي جوليز، پښو ييز، مانيز او چال چلند څېړنه رانغاړي.

په نورو ټکو، په دغه څېړنه کې ← ويي پيدا ايښت، ← ويي رغښت، ← ويير غاونه، نوې يا بيا ويېرغاونه (نيولوجېزم)، او د ويي او ويېپا نګې ډولونه، ډلبندۍ او نورې اړوندې ربړې او سکالووې رائي. پخوا يو نيم ژبڅېړونکي ويېپوهنه له دې دومره ارت و بيرت څېړنيز ډګر او بوختياوو سره هسې ببځايه تر غړ پوهې -ګړپوهې - غونډله پوهې روسته د پښو يې (ګرامر) څلورمه برخه او يايې د ګړ پوهې دننه له نوم اوړ ون او کړاوړون سره په يو لړ کې راوسته.

نن سبا ويېپوهنه دومره غځېدلې راغځېدلې چې سيند کښنه (فرهنګ نويسی ليکزيوګرافي) يې هم نوره په ججوره کې نه ځايېږي او له ډېرو ډولونو او لارو رودو سره د يوې جلا څا نګې په توګه څېړل کېږي.آرپېژهه (اېتېمولوجي) خو لا وار له مخه د يوې خپلواکې پوهنې په توګه پېژندل شوې ده.

ويي پيدا ايښت (تکوين واژګانی) words creation

ويي پيدا ايښت ، لکه په← (ژبه) کې چې ورته نغوته وشوه، د ژبې د پنځون (تکوين) په هما غه لومړي پړاوکې له اړتيا سره سم د عادي ويونکيو له خوا له ببلا ببلو ټاکليو ماناوو سره

يووستوي ويي يا وييونه په نابېره يا نيمه اګاهانه رامنځته شوي او همدا د ژبې لومړني او بنيادي توکي او بيا وييونه بلل کېږي،لکه: اوبه، ډبره، غر،ونه، بوټى، ځنګل، مور، پلار، غوښه، هوسۍ، پړانګ، باران، واوره، ږلۍ، باد، توپان....

## ويي رغښت يا وييرغاونه (ساختار واژګانى word formation)

ويي رغښت دا مانا چې لومړى ځل وييونه يا نيولوجېزمونه په يوه ژبه کې د ويونکيو له خوا، بيا هم نااګاهانه رامنځته شوي او رارو سته د ليک له راخپلولو سره داګاهانه رغښت ← (بيارغاونې) لپاره مخبېلګه شوي دي.

وييرغاونه له آره د ويي پانګې د منځته راتګ دويم پړاو او لياره ده. هغه دا چې له آرواو يووستوو وييونو له مخې رغول شوي ، هغه هم وار له مخه د څو لنډو ګنډو بېلګونو او ترڼګونو په بڼه.

## بياوييرغاونه (واژه سازى neologism)

نوې وييرغاونه يا بيارغاونه (نيولوجېزم) په بنسټيزه توګه ، په ګړنۍ ژبه کې د لنډو ګنډو (محدودو)، خو زېږنده تيارو شتو توکو او مخبېلګو له مخې چې و يونکيو يې د پېړيو په

پوړيو کې له اړتياسره سم، خو په ناګاهانه توګه رامنځته کړې دي، د اړوندو څانګپوهانو له خوا په دوو غورو بېلښتي (اشتقاقي) او تړښتي (ترکيبي) ډول ترسره کېږي.
رومبني ډول ويېيونو ته بېلنګونه (اشتقاقونه) او دويمو هغو ته تړنګونه (ترکيبونه) وايي؛ ← پر تلوييونه (انالوجېزمونه) او ← ماناونجيزونه (سېما نتېزمونه) د نيولوجېزمونو په څېرمه، يا بشپړاندو ډولونوکې راځي؛ همدارازــ← جوتغو نډونه او نو مغو نډونه هم درواخله چې پرخپل خپل وار تر څېړنې لاندې نيول کېږي.

يووستوی ويی (simple word)

يووستوی ياساده ويی يو يوازېنی ازاد ← ګړ دی چې له شننې (تجزيې) نه يې بې مانا يووستوي توکي (اوازونه يا فونيمونه) لاسته راځي، لکه: کور، اور، اوبه، مور، پلار، غر، خاوره، ډبره، څمکه، ونه، ښه، بد، غټ، لږ، تور، سپين، ووږ، زوږ، ځوان...

دا په ويېرغاونه کې تش د رغنده توکو په توګه راتلای شي،نه چې پخپله ورغول شي، په نورو ټکو، يومخيزه نوښتنه (ابداع، اختراع يا د چا خبره، سکه وهنه (coinage) يې کوم ويېپوهنيز جواز نه لري!

بېلښتي ويی (واژهٔ مشتق derivated

word, derivation or derivative)

بېلښتي (اشتقاقي) ويي چې بېلنګ (مشتق) هم بلل کېږي، له يوه ← يووستوي ويي سره د يوه← مختاړي يا ← روستاړي په نښلولو نه رغښت مومي، لکه (کورنی) چې له (کور) او ( -نی) روستاړي څخه رغول شوې، (وګړنی) بيا د هغه پر بېلګه رغېدلی ويی دی. بېلښتی وييونه له آره تړښتي(ترکيبي) وييونه ګڼل کېږي، ځکه ننني تاړي پخواني خپلواک وييونه دي (همدا راز←۴- څپرکی: بېلنګونه).

تړښتي ويی (واژهٔ ترکيبي combined word or word (compound

تړښتي ويی (ترکيبي لغت) چې تړنګ (ترکيب ) يې هم بولو، د دوو يا زياتو (يووستوو، بېلښتي يا تړښتي) وييونو او لږو ډېر د وييکو په ملتيا د يوې ګډې مانا لپاره رغېدلی وي، لکه: کتمل، پوهنمل، مړشومه، نادرکوټ، انار باغ، ګلبڼ نار نجباغ، ژوبڼ، مړژواندی، لوخ لپړ، تاو تريخوالی، ژر ژر، اخ و ډب، کنډوکپر (اندړ: کونډي کپړ)، کړې وړې چاره، وابښه پرخوله-رسی (پړی) پرغاړه، له اوښکو ډکې (سترګې چا ته واړومه).

همماننيز وييونه (مترادفات synonyms)

همانانيز وييونه يا همانيزونه هغه وييونه دي ، چې دوه يا زيات ناهمجوليز وييونه سره په يو راز يا ورته ماناوو كارول كېږي، همانيز وييونه په يوه- كره ليكنۍ بڼه كې د هماغې يوې ژبې له ګړدودونو يا پورويېو څخه سرچينه اخلي، لكه پښتورګي او بډوډۍ، تيږه، ډبره، ګټه، كاڼی، غرګی يا وطن او هېواد او ټاټوبی... (د زيات پوهاوي لپاره← ۲-۱).

غبرګمانيز ويی (واژۀ دومعنايی ambiguous word)

غبرګمانيزوالی يا دو مانيزوالی هم د همانيزوالي، ډېر مانيز والی يا څومانيوالی، بډ مانيزوالي او داسې نورو ويي ډولو نو په څېر (عينيت) نه، بلكې ورتوالی (مشابهت) دی. ورتوا لی په ژبه، ادب ، هنر او پوهنه او طبيعي ښكارندو پديدو كې په دې جاج و مانا دی چې د دوو توكو ، څيزونو او پديدو ترمنځ يو برخيزه همرنګي بلل كېږي او بشپړه او هر اړخيزه همرنګي بيا (عينيت) دی، نه مشابهت.ژبنی پرتليز والی هغه مهال ښه ترا را ډاګيزه كېږي چې د خپلې او بلې ژبې تر منځ يو متن يا وينا اړوو راړوو يا ژباړو ، په دې لړ كې،سيند (قا موس) كښونكي بيا ، په ځانګړي ډول له ستونزو او تېروتنو سره مخا مخېږي. (همداراز←۲-۲).

غبرګ مانيز ويی (ذوالمعنين) په اروپايي ژبوكې په ورته جاج كوم انډول نشته او په ← څومانيزو يا ډېرمانيزو وييونو كې

يې راوړي. هرګوره، ټکي پر ټکي (تحت الفظي) اناوول يې، انګرېزي ambiguous او الماني zweideutig (مبهم) په مانا کاروي او په دې توګه پر ويي سربېره، د هغې خبرې يا متن لپاره هم کارول کېږي چې ګونګوالی (ابهام) راولي.

بډ مانيزوييونه(واژه های مختلف معنی antonyms)

هغه دوه يا څو ويېونه چې ماناوې يې سره بډوالی، مخامخي يا اړپېچ (اختلاف، تقابل يا تضاد) ولري، لکه: ښه او بد ،ځمکه او اسمان، اور و اوبه، مرګ او ژوند ، لوړ و ځوړ، تود و سوړ، سړې او تودې.

روزه (روژه) او بوزه، روژه تي او بوزه تي چې دويمې هغه يې هممهاله په ← پر تلوييونوکې راځي، په نورو ټکو، له لومړنيو بېلښتي هغو سره د پرتلې (قياس) له مخې رغېدلي وييونه دي.

په پښتوکې د بډمانيزو (antinoyms) کچه تر← همجوليزو (hymonyms)، آړ مانيزو يا مجازي- کنايي (mctonyms)، سر غرېزو يا توشيحي (acronyms) ..څخه زياته اټکلو لای شو، او څه نا څه يې بشپړوالی هم تر پرتليزوالي (نسبتيت) ډېر برېښي.

څومانيز ويی (واژۀ چند معنايی polysemous word )

يو څومانيز يا ډېر مانيز (کثيرالمعانی) ويی هغه دي چې يو راز يا ورته دوې يا زياتې ماناوې ولري، لکه: ګټه (سنګ،

فايده)، تور (سياه، تاريک، تهمت، تراه، جال، دام نخی پرنده گان)، گواښ (قهر، اقدام، اخطار، تهديد، تور برېښ، منځگړيتوب) چې په يوه مانا (قهر) کې بيا له (ځاځ) يا (خښم) سره همانيز راځي.

## همجوليز وييونه (متشابهات hornoymous words)

همجوليز (متشابه) وييونه هغه دي چې جوله او وينگ يې سره (د خج په گډون) يو راز وي او ماناوې يې سره بېلا بېلې، دغه راز وييونه له ايتېمولوژيک پلوه همداسې همجوليز نه وي،، په نورو ټکو، د آرې او ريښې له پلوه سره توپير لري، او د پېرېو په پوړيوکې يې د غږيز ادلون بدلون له لامله همجوله شوي وي، لکه: لور (داس) او لور (طرف) په هره ژبه او بيا پښتو کې ښايي، د همجوليزوالي (homonym) ښکار نده د خو مانيزوالي (polysemy) له کچې سره دومره توپير ونه لري. داپېښه هم لکه څومانيزوالی او همانيزوالی (sy nonym) د ژبني پرمختيا يي بهيرد راروسته پړاوونو، ياني د گړدودي او بيا ليکني يووالي په پړاو يا پړاوونوکې رامنځته کېږي. د ساري په ډول، (لور –lor طرف) له (لور-lor داس) سره هله همجوله شوی چې په يو لړگړدودوکې يې واوېلي پا يله (-ی) له لاسه ورکړې ده، او په نوروکې يې لا خوندي سا تلې او (لوری) او (لورئ) يې وايي. هرگوره، په بشپړ ډېري کې

يې دغه کرښپل له ابتېمولوجيک- فونو لوجيک سپيناوي پرته بيا هم ناشونی بربښي. (بشپړ سپړاوی← ۲-۱)

همتوريز ويي (واژه های هم نوشت homographs)

همتوريزی، همليکي يا همليکد ودي وييونه هغه دي چې تش په اړونده ابېخې (الفبې) سېستم کې يو راز ليکنۍ بڼې لري او په وينګ او ماناکې سره تو پيربړي، لکه لور (دختر)، لَور (پېرزو)، لور (داس)، چې په غرېزه ابېخې (فو نيميکي الفبې) کې پر بېلابېلو ليکبڼو اوړي او هله بيا همليکي هم نه بلل کېږي، لکه: lur,láwər,lor

پرتله (قياس analogy)

پرتله د هندواروپايي ژبو او بيا پښتو د دوو غورو ويي رغاونيزو ډولونو، بېلنګ (اشتقاق) او تړنګ (ترکيب) تر ځنګ يو څېرمه، خو ډېر زېږی ډول دی او کوم ويی چې له دې لارې رغېدلی او رغېږي، پرتلويی (analogic word) بلل کېږي. هرګوره، پرتلويی هېڅکله يو يووستوی نه، بلکې هرو مرو به بېلښتي (اشتقاقي) ياتړښتي (ترکيبي) وي← يوو ستوی ويی.

دا راز ويی يا وييونه په (و) ګړنۍ او ليکنۍ ژبه کې د داسې زړو بېلښتي (او يو څه تړښتي) مخبېلګو له مخې رامنځته

کېږي چې بنسټ او تاړی یې پکې په اسانه توپیرېدای نه شي او د یووستوو یا ساده ویېیونو په توګه ورسره چلند کېږي.
دلته < لیکنښه د سرچینې ( منشأ) ښکارندویي کوي، په دې مانا چې تر شا ویی د ورمخته ویي له مخې رغېدلی دی، لکه:

کوربه (کوربانه) < مېلمه (مېلمانه)، بد ګڼه < ښېګڼه، خمسور < سمسور؛ څلاري (چارراهي) هم له دې پلوه په دې لړ کې راځي چې د څلېر (حوض)، څلېر ویشت، څلوېښت، څله، څوارلس... له مخبېلګې سره سم پکې لنډون راوستل شوی، ځکه د ترښتي رغاونې (څلور لاري) یې دود او منښت ګران برېښېده؛ دوه لاري، درېلاري پرتلیزې بېلګې یې خو بې له هغې درې څپیزې دي او ورسره ښه ترا اړخ لګولای شي (← پرتلوییونه).

## ونجویزی (Semantism)

ونجویزی یا ماناونجی ویی هغه دی چې په ژبه کې د بل شته ویي له ماناونج (بدلون) سره رغېدلی یا رغېږي.آر لاتین انډ ول semantism هم د دغې رغاونې چم ته وایي او هم رغېدلي ویي ته؛ کټ مټ، لکه نیولوجېزم، ارکاییزم، دایلکتېزم...

د نورو لرې او نژدې خپلوانو ژبو غوندې په ګرنۍ په تېره لیکنۍ پښتوکې دغه رغاونه تر پرتلیزې راروسته دویمه ډېر زېږې څېرمه ویي رغاونه بللای شو.
بېلګې، لکه:
(دریځ) امیر کرور ړومبی ځل د (منبر) په ماناکارولی او اوس یې نوې ماناوې (← ونجویزونه یاسپمانتېزمونه) ځا یناستي شوي دي ، لکه: موقع، موقف، مشي، موقعیت، موضع؛ (غوربه) پق له دوو ماناوو (سرګوشی، چهرهٔ شکار) سره را خوندي کړې او نن سبا پرې (ګوشي تېلفون) هم ورسر باري شوې ده، همداسې (سترګۍ)، (سرۍ)، (غونډ)، (شخولۍ)، او نور (۱-ویپوهنه ۳۵).
د (کړکۍ) پر windows سربېره د کمپیوټري windows مانا هم راخپله کړي؛ لمبسه (مسوده) د file مانااو همدارازدڅو ځو مجازي- سېمبولیکي اوګړنیزو- ځرګندیزو ماناوو والا ویيونه دروا خاله.

همآري ویيونه (واژه های همریشه) cognate words

هغه دي چې د خپلوانو او یوې ژبکورنۍ د ژبو ترمنځ په لږو ډېر مانیز او جولیز توپیر دود لري، لکه: مور، مادر، ماتېر یا سل، سد، ستو (روسي)، ساتم (اوېستا)، کنتوم (لاتین)، شتم (سانسکریټ).ځینې سره ورته (مشابه) نه ایسي، لکه انګرېزي

هندوربنې؛ پښتو (زړه) او پارسي (دل)؛ انگريزي foot او لاتيني pes او داسې نور هم همداسې دراخله.

تکرويونه (واژه های تصادفی accidental words)

تکر accidental ويي هغه دي چې په تصادفي ډول په بېلابېلو ژبو، هغه هم نا خپلوانو ژبوکې لږو ډېر په يوه جوله او يوه مانا راغلي وي؛ خو همآري او اتمولوژيک خپلوان نه گڼل کېږي لکه:

د کاليفورنيا په يوه بومی ژبه yuki کې (تلل) kom (راتلل) له انگليسي go او come سره يو راز بريښي. خو په نورو برخو کې يې داسې ورتوالی نه ليدل کېږي؛ نو نه شو ويلای چې yuki او انگليسي ژبې سره همآري دي، چينې شي zao ، ځو péza او yowi ..له پښتو (ښه)، (ځی)، (پزه) او (يو) ترمنځ جوليز او مانيز ورتوالی هسې يوه برابرې (تصادف) دی، که نه دا دواړې ژبې سره نور هيڅ کوم اړيکې او خپلو ـلي، په تخنيکي نومونو پښتپوهيز (geneological) او ځېل پوهيز (typeological) اړاو تړاو نه لري، همد اراز پښتو (هو کی) او انگريزي okay (o.k.) دروا خله چې د (zero= ۰) په پام کې نيولو سره يې له killed(۰) Noڅخه آره اخېستې ده.
(روان فرهادی).

پورويزى (واژۀ وامى loanword: foreignism, adoptism)

پورويزى يا پور ويى (مستعار، دخيل) هغه ته وايي چې يوې ژبې له بلې را خپستې وي: كه هو بهو يې كاروي، (دخيل) يا آر پور ويى (loanword) بلل كېږي، لكه دولت، حكومت، ډېموكراسي، ټېلېفون، ټېلويزيون، كمپيوټر؛ كه له خپل غږ پوهيزاو پښتوييز رغښت سره يې سمون وركړى وي، جوله ونجى پورويزى بلل كېږي، لكه سوله، كوز (قبض) ؛ كه مانا يې هم ورونجلې وي، نو بيا يې مانا آړ پورويى يا (خپلكړى adoptism) يا په ناسمه نومونه (مفغن!) بولو، لكه ماشوم (معصوم) د (طفل) په مانا، يا ورسره همهانيز ايوان (حيوان)؛ جو مات، ماجېد (مسجد)، ميرات (ميراث)، مركه (معركه)؛ ورته پارسي پورويى شو مه (شام) له (خوراک، خواړه، خوړه، خيرات، نيمه شپه...

په انگرېزۍ كې دغه دوه روستي راخپل شوي ډولونه (adoptisms or domesticated - loan words) بلل كېږي، او په ملايي نومونه راپښتوشوي هغه (مفغن)، را عربي شوي (معرب)، را پارسي شوي (مفرس)...د پښتو په تړاو (مفغن) نومَونه ځكه بې سروبوله ده چې په افغانستان كې د پښتو ترڅنگ ۴۲ نورې افغاني ژبې هم لرو!

هرگوره، پخپله (افغان) د زړې آرياني (apa ga) عربي شوې (مفغنه!) بڼه ده،نه پښتو يا پارسي چې په بگيستون (بېستو ن)، بگپور (فغفور)، بغداد، بغلان، بغنين...کې يې هم ځرک لگي .همدا راز: ← پښتواوپښتانه... ۳۲۲ مخ.

نور گڼ نرۀ او زاړه ويپونه لرو چې هسې ببځايه پرې د را ړوليو پورويزونو ((مفغناتو!)) تورلگول کېږي، لکه: مانا، سهي، زوړساکي آرى زات (ذات)،وزله،وسيله، زباد (اثبات، لامَل (عامل)، اروا،- (خوشال) چې د باختري سره کوتل ډېر ليک په لاسوند له آره (خوش + شال) دى، نو (خوشال) تر (خو شحال) کره بربښي.

کميز (قميص)، دين، شېر (شعر)، اپت (آفت) هم همداسې دروا خله؛ توپان (طوفان، ان په چيني ژبه کې د typhoon په بڼه هم شته. ؛همداسې له عربي سره د ځينو نورو پښتو ويپونو د اړوندۍ خرخشې هم رامنځته کېداى شي، چې آرياني-آر يايي اؤ هندوآروپايي آره او ريښه يې پر زباد رسېدلې، لکه: (اخېستل) له (خُذ، (پوهېدل) يا ( پام) له (فهم)، (خبرېدل)، (خبر، خبره) له (خبر، اخبار) ... سره، مانا دا چې، دغه ورتوالى هسې يو ← تکر (تصادف) دى.

رښتيني راپښتو شوي عربي آري ويپونه، لکه::

ماشوم، ايوان، کيسه، متل، ميرات، مساله، مرکه، سوله، سات، سلا، سهار، سبا، سارا، تناب يا تناو، وسه، تمه، شمه، وخت، زيات، توپير (توفير)، هديره (حضيره)، پوځ (فوج)، خرڅ (< پا رسي خرڅ< عربي خرج)...

پارسي آري، لکه:

تنخا، پومبه، يار، اشنا(ی)، ريبار، ښار، پښېمان، جارو، باد، باران، پيښ، پرهېز، زهير، شومه، اودس، ماسپښين، مازيگر، ماښام، ماسخوتن. روستي مهالوييونه له آره له (نماز-) سره تړاو لري، په نورو ټکو، ماسپښين (نماز پيشين) دی، مازيگر (نمازديگر)، ماښام (نماز شام) او ماسخوتن (نماز خفتن)، داسې چې په لومړي ويي کې (ماس-)، په دويم کې (ماز)، په درېيم کې (ما-) او په څلورم کې (ماس-) د (نماز-) د غږ پوهيز ادلون بدلون پايله ده.

هندي آري، لکه:

ډوډۍ، روټۍ، روټ، روټه، گاډی، جنگ، جگړه، گړۍ، گېنټه، بجه، سينگار، پټه، ليکل (له گردو رغښتونو سره)، لگل، لگول، لگېدل، لگښت، لگاو، بچاو، بچت، وهل، بهول، ټکورول، ټالول، چلول، چلېدل، چالان، چلښت، چلو ونکی... او پر دې سربېره په پښتو کې زياتره غبرگژبيز (ټ، ډ، ړ، ڼ) لرونکي وييونه هندي آري نومېرېدای شي، خو کټ

مټ، لکه په انګرېزۍ کې لاتین آري هغه، نور د پښتو د آرې ویپیانګې یوه نه بېلېدونکې برخه ګرځېدلې ده.

یوناني آرې، لکه:

(مېچن، مچنوغزه، مرغلره...)؛ خلته < عربي خریطه< الماني Karte - انګر بزي chart < فرانسي carte< لاتین charta >

یوناني chartes چې یوناني مانا یې (پېړ مقوا کاغذ وو) او په دې راروسته ژبو کې یې هرهغه څه رانغښتي چې په پېړ کاغذ یې اړه درلودې ده، لکه چارت، کارت ...؛

بلبل له یوناني babaros آره اخلي چې مانا یې نادودیال (بد وي، نا مهذب) وه او په لاتین او اوسنیو اروپایي ژبو کې یې (وحشي او ظالم) ماناوې راخپلې کړې؛ سانسکرېټ هم له نا آریایي سرچینو راپورکړې (Collinse Dic.).

((انګور)) ویې د روسي ژبې له لارې زموږ ژبو ته راغلی او دې ژبې هم پرخپل وار د لوړې زړې الماني له < wingart څخه را پورکړې چې (ګارت) یې ور (ګور) کړې دی، په پخپله اوسنۍ الماني کې weinberg شوی چې ټکي پر ټکي مانا یې (انګور غر) ده، ځکه د دوی انګور باغونه زیاتره د غرو پر ډډو او لو ړو پښتیو کرل کېږي، او انګرېزۍ vineyard ته را ړولی او دویم ټوک gart-(غر) یې انګړ، میدان (-yard) ته. په دې تو ګه، (ان-) د (مېلوې) استا زي کوي چې اروپایانو ترې ( ,vine

Wein) جوړ کړي، او مېلوې ته يې نور نومونه ټا کلي دي. په دې ډول (انگور) له آره له (ان= شراب) او (-گور= غر) يو ترنگ دی.

داسې بربښي چې (انگور) ویی له روسي یا بلې سلاوي ژبې څخه ډېر پخوا ړو مبی پارسي راپور کړی او راروسته پښتو او د سیمې نو رو ژبوته راغځېدلی دی. ډېره په زړه پورې دا چې ((سعدي شیرازي)) ان د اوومې لېږدیزې پېړۍ نیمایې شاوخوا د گلستان په یوه بیت کې له بومي اندول (رز) سره یوځای کارولی دی:

زکوات مال بدر ده، که فضلهٔ (رز) را
چو باغبان ببُرد، بیشتر دهد (انگور)

((بابا))چې په لږوډېر جولیزاو مانیز توپیر پښتو، پارسۍ او نورو لرې نژدې ژبو کې له نه اټکلېدونکي مهاله دود لري په پوره باور زړه یوناني papas او مانا يې(پلار) وه چې را روسته يې پر (ديني پلار) سېنا نتېزم راړولی؛ زړې انگر بزۍ) پاپه (papa) له همدې (ديني پلا father-in-God) مانا سره له کلیسایي لاتینه راپور کړی دی؛ په پای کې دگردو رومن کاتولیکو عیسایانو د منځۍ (واتیکا ن) د روحاني مشر ستاینوم( پاپ pope ) گرځېدلی؛ دغه راز د یوناني ار تودوکسو په گډون تر روسي او بیا بیت المقدس پورې د

گردوختيزو ارتودوکسو مشر کشيش ته هم زياتره) پاپه papa) وا يي.اوسني يونانيان يې دعربو کنيه (ابو-) په څېرد آرنامه مختاړی کوي، لکه پاپه اندريوس چې تربل هرنامه پکې ډېر دودلري.

په مسيحي لويديځ کې، د واتيکان له کاتوليک مشر پرته نورو ته پاپ pope يا الماني پاپست papst نه، بلکې بيشو پ(bishop) يا(آسقف)، پريست(priest) يا (کشيش) او نور وايي. هرګوره، هسې د درناوي لپاره دغو دوواو نورو لويو وړو ته په هره ژبه کې د پلار انډول نوم اخلي، لکه انګريزي فادرfather، المانيVater او داسې نور.

په زړه پورې بيا داچې په ارو پايي هېوادوکې يو نيم له نازو مينې( پاپه) بو لي، د افغان ملت ګوند بنسټوال (انجنير غلام محمد فرهاد (پاپا-پاپه) ستاينوم کابو ۷۰ کاله وړاندې له المانه له ځان سره افغانستان ته راوړی وو.

((بابل)) يو بل ورته کې ښېښې (پردېس پېرزژلی) ويی دی چې له يوناني(بربروسه) آره اخلي چې د نورو ژبو ويونکي يې پرې نومول، کټ مټ، لکه چې عربو نور عجم(ګونګ) بللي او رو سانو يوازې جرمنان (نيميسکي) او داسې نورې ببلګې. ناويلې دې پاتې نه شي چې ديوناني بربروسه ( بربر، بربريت-

) سپمانتېزونو هم سراسري دود موندلی دی چې تر (وحشي-وحشته) هم ډېر توند و تېز جاج ځنې اخلي!
توركي-مغولي، لكه:
ولس، جرگه، توغ، بيرغ، خان، اغا، غالی، كارغه، يرغل، يرغمل، برمته، چول، ميره، تلتك، توشك، بېلگه، بولگه، بونگه، كورت، اېنځر... ؛ بېگ (لوی) چې ټبر نوم (وزبېك) هم د لوی خان) په مانا دی، كېدای شي، له پښتو بگ (لوی) سره، لكه بگ سړي، وړه بگي سره په (ټكروييونو) كې راشي؛ په هندي پورويو (بگړی، پگړی) كې هم همدا سې درواخله.
د نورو راپښتو شويو توركي- مغولي خوراكنومونو ترځنگ يوه بېلگه ((كورت)) ده. توركي آره بڼه يې (يوغورت) او جو غورت) ده، ايرانيانويې معرب ځېل (قروت) رادود كړي او موږ ترې ((كورت)) جوړ كړي دي. په افغانستان كې چغتايي پارسۍ د (قروت) تر څنگ (جُرغات) بيا په آره مانا (ماست) كاروي چې تر لغمان او ننگرهاره خپور شوی؛ اروپاييانو هم (yoghurt) له همدې مانا سره له عثماني توركانو راخپل كړی دی.

زړويزی (archaism)
هغه ويي ته وايي چې له متنو څخه راخپستل شوی او د ليكنۍ بڼې له لارې د وييپانگې د ← اركا ييكې برخې په

چوکاټ کې کارول کېږي او له مهال تېرېدن سره يې دود ټوليزوالى مومي، لکه: هېواد، نړۍ، يون، نياو، ښاخ (غرور)، ځواک، ويي، آر، آره، لونل (نشارول). چې د پښتو خوا ته يې ګړويزي پر اړولې بڼه (نولل) بشپړ دود لري، همدا وړ (ويي) بيا د مردان خواته د (اووى، بول، قول په مانا کارول کېږي. . (ش، ر)

نويزى (neologism)

خپللاسي (رغولى) ويي يا (نيولوجېزم) هغه دى چې په ← بېلښتي يا ← ترښتي ډول د ژبپو هانو او بيا د ببلا ببلو علمي - فرهنګي ځانګوالو په ملتيا، او ترکېدو نه د يوې ټولنې، اکاډېمۍ په چوکاټ کې، د تيارو بېلګو له مخې جوړ شوي وي، لکه: ليکوال، ليکدود، ليکلار، پوهنځى، پوهنتون، ژبپوهنه، ژوبڼ، ژوپوهنه، ټولنپوهنه - ويي پوهنه، غږ پوهه او غږپوهنه، لرغونپوهنه، ښکېلاک (استعمار)، زبېښاک (استثمار)، ويشاک (تجزيه طلبي)، نيواک (اشغال)، (ټوليزې) رسنۍ، ټولنيزې رسنۍ، رسنيز، رسنوال، شپېپاڼه، خبرپاڼه، ووېپاڼه (وېبسايت)، رسنوالي (ژورنالېزم)، وزلوبه، پايلوبه، لوبډله نيولوجېزم، لکه ارکاييزم، دايلکتېزم، فار نېزم، اداپتېزم ... هم د اړوند ويي په مانا کارول کېږي او هم يې د (رغاونې) په مانا.

سیند کښنه (فرهنگنویسی lexicography)

وییکښنه، (قاموس لیکنه) دا له آره د وییپوهنې یوه څا نگوړې ده، خو نن سبا د کاروني (تطبیقي) ژبپوهنې د یوې خپلواکې څانگې په توگه پرمخ وړل کېږي او پر کار اچول کېږي. د زیات څانگپوهیز پوهاوي لپاره ← پر (پښتو قا موس، پښتو- پښتو تشریحي قاموس...) د لیکوال بېلا بېلې کره کتنې او همدا راز د حکیم هلالي یوه نیمه نیمگوړې (قاموس لیکنه).

گړویزی (واژهٔ گویشی dialectism)

هغه ویی چې په ژبه، په نورو ټکو، په اړوندو گړدودونو کې ژوندی کاربدنگ لري، هرگوره، کېدای شي، په ځینو گړدو دو کې له منځه تللی وي او چېرې یې په یونیم ځانساتي گړد ود کې ځرک ولگي، لکه: ونج (ککړک- سوررود)، تروړل (تروښل) د (اختطافول) په مانا او نولل (لونل) د (نثارول) په مانا (پېښور)، ښاغلی، پخوله، نته (انکار)، سکّته (قناعت) ... (کندهار) تون، نړی، مړېستون او داسې نور کمپېښي گړ ویزونه چې همهاله له زړویزونو سره هم اړخ لگوي.

تېرویزی (واژهٔ تاریخی یا متروک historism)

هغه زړويزی چې په زاړه متن کې راغلی وي، خو څوک يې نه رادودوي، لکه د امير کروړ د وياړنې من (اراده)، بامل (پا لل)... او که څوک يې د (اتل) په څېر رادود کاندي، بيا نو په زړويزونو کې شمېرل کېږي

نړويزی (واژۀ بين المللی internationalism)

هغه (يوناني، او لاتين) ويی يا وييونه چې د نړۍ په ټولو ژبو کې يوراز کارول کېږي او څوک يې د راژباړلو يا اندولولو ته دومره زړه نه ښه کوي،لکه: ټېلېفون، راډيو ،ټېلويزيون، هايد روجن، اکسېجن، نايتروجن، راډيوګرام، راډيواکتيف،اتوم، نايترون، پوزېترون او نور بېشمېره کيميايي (په تېره درمل باب)، فيزيکي... او د اوسنۍ خبرتيايي ټېکنالوجۍ تر نومو نو پورې. دا چې الماني، عربي، پارسي...او پښتو يې يو نيم راژباړلی يا راخپل کړی، په سمندرکې يو څاڅکی هومره ګڼل کېږي. د نورو نا اروپايي ژبو يو نيم نړويزي هم دود موند لی، لکه جاپاني sunami چې دا هم ايرانيانو (دريا لرزه)کړی او موږ هم د سيالۍ او ترېګنۍ له مخې(سمندر رېږده)؛ فېنلانيدي sauna.(ښند تودوبی) يا (بخار فينلاندی) چې وييپانګيزه مانا يې(ډبره)ده او داسې نور.

ژباړويزی (loan translated word)

د دې راز وييونو شمېر په تېره په علمي، تخنيکي او فرهنګي ډګرکې خورا ډېر دی، لکه واخلې (-لوجي) روستاړي والا نو مونه چې پارسي له (-شناسی) او پښتو له (-پوهنه) سره پور ژبارلي: جامعه شناسی- ټولنپوهنه، باستانشناسي- لرغونپو هنه، جانورشناسی- ژوپوهنه او داسې نور.

## سرغړويزی يا توشيحي کلمه (acronym)

هغه ويي ته وايي چې د ګړنۍ او ليکنۍ سپما او لنډيز په موخه د دوو يا زياتو وييونو له سرغړو څخه رغول شوی وي. انګرېزي بېلګې، لکه:

UN (United Nations),UK(United Kingdom of Britain), USA (United States of America)... .

انګرېزي ان ډېرکاری ويی okay (هوکې) له آره (no killed) اټکلېږي چې په جنګ کې يې د شېفر يا رمز په توګه په (o.k.) بڼه رالنډ کړ شوی وو، اوسنی ليکدود يې هم دوه ډوله ( ok, okay) دی،او. په ترخ کې يې پر← نومکړ (to okay) هم راړو لی دی.

په دغه لړکې د (Eur- News) تلويزيون دارسنيز سپمايي نوبښت په زړه پورې دی چې د

( The news from north,east,west and south)

**ويي پوهنه** | **نوموني**

پرځای يې له خپل ځانګړي نوم (News) څخه د ←
سرغړوېزي کاراخېستی دی.
ترکوم ځايه چې راڅرګنده ده، په پښتوکې د اروپايي ژبو پر
پليونی، تر اوسه متې درې ببلګې رامنځته شوې دي، لکه:
م.م (ملګري ملتونه) يا.م. م.م. (د ملګرو ملتو مؤسسه)؛ د مو
مند بابا هڅوب(کلتور) چې د (هغه+ څه+ولسونه+ ببلوي يا
(هغه څه چې ولسونه ببلوي) او د بي بي سي د پخواني پښتو
وياند ګوهر رحمان ګوهر (هښخنا= هښځ+نا)، په نورو ټکو، تر(
پينې ياکايناتو بهر)) په مانا
عربي، پارسي، پښتو، اردو او نورې ژبې چې ورته عربي
ليک کاروي، دغه راز وييونه، په بله وينا، لنډيزونه دومره
رادود ولای نه شي او له وړاندې روسته وييونو سره يې جړه
او ټکر راځي.
ترکوم ځايه چې راڅرګنده ده، په پښتو کې د اروپايي ژبو پر
پليرنی، تر اوسه متې درې ببلګې رامنځته شوې دي، لکه:
م.م (ملګري ملتونه) يا.م. م.م. (د ملګرو ملتو مؤسسه)؛ د مو
مند بابا (هڅوب =کلتور) چې د (هغه+ څه+ولسونه+ ببلوي يا
(هغه څه چې ولسونه ببلوي) او د بي بي سي د پخواني پښتو
وياند ګوهر رحمان ګوهر (هښخنا= هښځ+نشته)، په نورو ټکو،
تر( پينې ياکايناتو بهر)) په مانا

پدلويي (تحريمي کلمه taboo,tabu)

هغه ويي يا نوم ته وايي چې په اړونده ژبټولنه کې يې له دوديز، فرهنګي يا ګروهيز پلوه، نومولی څيز،وګړی، ژوی... ناګڼلی او پر يادونه يا کارونه يې بنديز لګول شوی وي، لکه په اسلامي ټولنوکې خوګ، خنزيراو غوښه يې چې يوازې په کنځا (د خوګ بچيه!) او قسم (پر ما دې د خوګ غوښه شي) کې کارول کېږي. په پښتوکې يې بدل نومونه يا همماني‌زونه (بدځناور، بدلېوه،سرکوزی) د (تحريم) له لامله رامنځته شوي دي.

وييپانګه (vocabulary)

ويي پانګه يا وييزېرمه تش د ((دود)) له مخې د يوې ژبې د←ازادو ګړونو (مورفيمونو)، په نورو ټکو، دوييونو (لغتونو) ټولګې ته وايي، که نه، له ژبپوهنيز پلوه ګرد در بګوني ډوله (ازاد ، نيم ازاد او تړلي) ګړونه په ګډه يوه ټولګه رغوي.

وييپانګه څلور ډلې وييونه (←.ګړويزونه، زړويزونه، نويزونه او پورويزونه) رانغاړي.

کړ (فعل verb)

کړ یو داسې ← ویی دی چې له مهال سره په تړاو کې یو جاج مانا راڅرګندوي او له همدې کبله یې الماني مهالویی (Zeit-wort) هم بولي؛ د لاتین انډول (verb) آره مانا هم (ویی) دی او دوه پېژنده لري (۱) د دوديزې پښویې له نومونپوهنې سره سم د یوې ژبې د وییپانګې هغه ستره ډله ده چې د یوې پېښې یا یوه کړن ترسره کول، د یوه څه شتون یا اکر (حالت) او داسې نور څه راڅرګندوي، او (۲) په نومهاله سپنيزه ژبپو هنه کې کړ (فعل) یو داسې ویی یا ویي ډله یاوییغونډ دی چې د یوې ← غونډلې د ← کړوالغونډ (مسند، خبر) په توګه یو چار پر ځای کوي، په بله وینا، یو کړوالغونډ را پېژني (Collins Dic.).

کړنوم (deverbative)

کړنوم (فعلي اسم یا صفت) چې بنسټيز ګړ (مورفيم) يې يو کړ (فعل) وي. په دې ډله کې د کړ نومي يا ناپای (مصدر) او (حا صل مصدرونو)ګردې نوموالې رغاونې (اسمي مشتقات) را ځي، لکه: خوړل، خوړنه، خوړنګ؛ خوړونکی، خوړلی، خو ړه، خواړه، خوراک، خوراړه يا خوړونکې (جذام) ...← ۴- څپرکی، لومړی پړوکی: کړ بېلنګونه (فعلي اشتقاقونه).

نومکړ (denominative)

نومکړ هغه کړ (فعل) ته وايي چې بنسټيز ګړ (مورفيم) يې يو ستاينوم، څيزنوم، يا شمېرنوم (اسم صفت يا اسم ذات) او

سي، لکه (لويول-بدل)، (پړول- بدل)؛ (اوبول-بدل)، (لوبول-بدل) يا (شلول-بدل)، (پېنځوسول-بدل)، (سلول-بدل).... همدا راز← ترښتي کړ، او← ۴-ځپرکې، دويم پړوکی: نوم ببلنگو نه (اسمي مشتقات)... ترې+روبسن ۱۰۵

## گړپوهيزه رغاونه (ساختار واژشناختی)

## morphological construction

گړپوهيزه يا صرفي رغاونه هغه ژبنۍ توته ده چې له نوموال-کړوال گردان څخه منځته راځي، نوموال، لکه: هلکان د هلک نجونې د نجلۍ، پښتانه د پښتون ډېر گړی (جمع) ...؛ کړوال، لکه له (خوړ-) څخه: خورم، وخوړ، خوړلی او داسې نور.

ځنگه چې دغه اوړون (گردان) له آره (په لرغو ني (ارکاييک) ډول) له وييونو سره د نورو ازادو گړونو (وييونو) يا تړليو گړونو (مختاړو، منځتاړو، روستاړو) په نښلونه دود موند لی، نو صرفي رغاونه د وييرغاونې اوسنی نه، بلکې يو لر غونی ډول بللای شو.

## تاړی (وند affix)

تاړی هغه ← تړلی گړ(مورفيم) دی چې له يوه ← ويي سره په نښلونه يو ببلنگ(مشتق) رامنځه کوي، که د ويي په سر پورې ونښلول شي، مختا ړی prefix) يا (پيشوند) يې بولي، که په

منځ کې يې راشي، منځتاړی (ميانوند (infix) او چې په پای پورې يې ونښلي، روستاړی (پسوند) ورته وايي. دوديز- عربي ژبپوهنه يوازې د مختاړي لپاره (سابقه) او د روستاړي لپاره (لاحقه) نومَونه لري.

له مانيزاو جوليز پلوه تاړی، په تېره روستاړی هم بېلابېل ډولونه لري:

کړنومروستاړی، نومکړروستاړی؛ ځيزنومروستاړی، ستاينومروستاړی، مانانومروستاړی، چارنومروستاړی، اړيک- نومروستاړی، ځاينومروستاړی، مهالنومروستاړی، کوشين- نومروستاړی. ← داړوندو بېلنگونو پړوکي او څپرکي.

آره يا ريښه (ريشه root)

آره، ريښه يا جرړه (root) يا (√) د يو ويي (کړ، نوم) هغې برخې يا (ازاد) گړ (مورفيم) ته وايي چې ترې د ټولواوړوني (گرداني) او رغاو نيزو ← تاړو له هيسته کولو روسته راپاتې شي، لکه له (ا خېستل، واخېست، اخلم، اخم...) څخه (اخل-) يا (اخ-√)، يا لکه، له (ژوی، ژوندی، ژوندون...) څخه (ژو-) او داسې نور، سېمبول يې هم د شمېرپوهنې جذر نښه (√) ده.(٣- پښنويه١٠).

په يوناني يې ابتيموس (etymos←) بولي چې د لوګوس

(logos) په ملتيا يې ترې (etumologia) رغولې او لاتينايز شوی انډول يې (etymology) دی؛ نو موږ يې هم پور ژباړه (آرپوهه) غوره بللې، او پارسي ژبپوهانو يې (ريشه شناسی) ستېه (ستاک، تنه stem)

د يوه ويي (کړ،نوم) هغې بنې يا برخې ته وايي چې له اوړوني او رغاونيزو ← تاړو څخه د يېکي يوه ← فونيم، ← مونيم، يا لږ تر لږه يوه ← تړ خپلواک په وسيله جلا کېږي، لکه اخېست- چې له رېښې (اخ-) او اوړونيز (ګرداني) او د تېر مهال توکي (- ست) څخه د تړخپلواک (- ي -) په منځګړ يتوب رغېدلې ده؛ له ويپرغاونيز پلوه، لکه له (کوره کی) څخه (کوره-)، د غلته (ه a) د نومستې(کور-) او کوشين يا تصغيري تاړي (-کی) ترمنځ يو تړ توکی يا← تړخپلواک (thematic vowel) بلل کېږي؛ په (کورنی، کورنۍ، غرنی، غرنۍ...) کې هم (زوره) يا (زورکی ə) شته، خو ليکل يې دود نه دي؛ د رېښې په تړاو هم ورته توکی راتلای شي.

هرگوره، اړينه نه ده چې ر يښه او سټه هرومرو ويېزه مانا (lexical meaning) ولري (هماغه ۱۵۱).

## ترخپلواک (thematic vowel)

زموږ پښتو انډول د الماني (Bindevokal) پور ژباړه ده. په دې مانا چې دغه توکی د پښتو په گډون په گردو هندو اروپا يي، سامي او نورو اوړېدونيو (متصرفه) ژبو کې شتون لري. ترکوم ځايه چې راته پته لگي، پښتو گړپوهه او ويېرغاونه ورسره ډېراړاوتړاو لري او له دې لامله مو د ويېپوهنې په دې دويم چاپ کې بېلابېل ډولونه ورونومېرل او پرگوته کړل، د ساري په توگه، لکه (زور او زورکی -ə-، -a-) ، په بلول -bal a-w-ə́-l)، بلوم (bal-a-w-ə́-m)؛ کړل (kṛ-ə-l)، کړم (-kṛ-ə m)؛ کورنی (kor-a-náy)، وړکی (waṛ-a-káy)... کې، يا خجن لنډ-و په وړوکی (waṛ-ú-kay)، لروکی (lar-ú-kay) او اوږد- و په (tind-ó-ṛay) کې او داسې نور.

## منځخپلواکونج (Ablaut)

دا له الماني څخه يوه رادود شوې مورفو- فونولوجيکي ونج (بدلون) دی چې د يوه ويي (کړ، نوم) يا يې د ستې په منځ کې پر يوه خپلواک (واوبل) د بل او بنتنې ته وايي. داچې مانا يا پښوييز چار ورسره بدلون مومي، نوځکه يو مورفو – فونولو جيکي بدلون گڼل کېږي. د نورو هندو اروپايي ژبو په څېر د

پښتو نوم اوړون او کړ اوړون (اسمي او فعلي ګردان) او بیا وییرغاونې یوه په زړه پورې لیاره ګڼل کېږي او موږ له همدې پلوه پر (منځخپلواکونج) راژبا ړلی دی (اولر یښ ۹ ؛ ۲-پښویه۴۰).

په دې ترخ کې کېدای شي، یو کړ یا نوم داسې اوړون ومومي چې هېڅ پایلې (خاتمې) ته هم اړتیا پیدانه کاندې،لکه د (کټل) د تېر مهال (کوت) لپاره د ولې (کټ -kat) منځخپلواک -a- پر-o- اوښتل، یا د (ټوپک) او (دښمن) ډېرګړی (جمع) د روستیو څپو-a- پر زورکي-ə-اړونه رامنځته کېږي؛ خوږ، سپور، لمونځ، پښتون او داسې ورته نومونه بیا پر دغه ونج سربېره نورې اوړوني پایلې هم په ځان پورې نښلوي، لکه پښتون – پښتانه - پښتنو (پښتنه – پښتنې - پښتنو)... (۳-پښویه۱۰۱-۱۱۲) او د کړ اوړون په تړاو ۱۲۳).

دغه راز یې په وییرغاونه، په تېره بېلښتي هغه کې د منځتا ړي پر ځای یو نیم منځخپلواکونج (Ablaut) برخه اخلي٬ لکه له (خور -√xor) کړ ریښې څخه په رغېدلي کړ نوم (خور xwar) کې د ریښې (خور- -xor)، اوږد -و (-o-)پر(-wa-) (همدا راز: کړ بېلنګونه ، او ۱-پړوکی.اوښت (خورک xwar-ák)،(خور-که xwar-a-ka) ...کې. ← دویم پړوکی، نو مبېلنګونه؛ د نوم اوړون (اسمي ګردان) په تړاو

ويي غونډ ( syntagma )

د ← constituent هغه ډول دی چې تر يوه ويي زيات وييونه او وييکي را نغاړي، مانا دا چې constituents ټوليزوالی (عموميت) لري او کېدای شي يو ويي (نوم) واوسي، يو نوموالغونډ، يو کړوالغونډ، يا يو کړولغونډ. د کړولغونډ په توگه، لکه: نن گهيځ، لا تراوسه، لږ تر لږه، ورو ورو، ژر تر ژره؛ بشپړن (متمم)، لکه: له کندهاره، تر کابله، له کندها ره تر کا بله، په ژمي کې، په اوړي کې، په منډه، له ملگرو سره.د يوه يا څو نومونو په توگه، لکه: سنک يا سنک او ببرک.چې د.غونډلې← نوموالغونډ يا ابښوني (مسند اليه، مبتدأ) رغوي.

جوتغونډ (ثابت عبارت)

هغه← غونډ دی چې له آره يې د غونډلې د يوه ازاد رغنده توک ← وييغونډ ( syntagma ) په توگه پښوييزې نښې نښانې پرځای پاتې وي، خو د وييرغا ونې له پلوه يو سست ترنگ بلل کېږي او د نُومونو او نومَونو (ترمونو) په توگه لکه← ترنگونه کارول کېږي، لکه د ځاينوم، علمي، فر هنگي او فني يا تخنيکي نومَونې، يا هم د سرليک او سر ليکې (سرلوحې) په توگه، لکه: د افغانستان بانک، د کابل پوهنتون، د شپې ښوونځی (شپې لېسه)، د شپې پوهنځی

چې له مهال تېرېدنې او د ( و ، د ) له لويدنې سره پر ← (تا
كندويه تړنگونو: افغانستان بانک، کابل پوهنتون، شپې
ښوونځی، شپې پوهنځی له لومړي فشار په را خپلولو سره
اضافي سربل (د)، له لاسه ورکوي. نور ورته چوتنومونه، لکه
: طب پوهنځی، اقتصاد پوهنځی، كندهار پوهنتون ... کابل
ښار (-ښاروال،- ښاروالي، - ولايت).( ، ، او په پای کې رو
ستی ټوک ته له خج لېږد) سره، پر پخو تړنگو، لکه: کورکلی
کرنه ، گوتنیو وړ، پا موړ) اړتیا وړ بدلېږي.
که په یوه جوت غونډ کې څه مورفیمیز بدلون راوستل شي،
نو هغه بیا خپله جوتیا له لاسه ورکوي او ماناونج پکې هم
راځي، د ساري په ډول که (شپې ښوونځی) پر (شپینی ښوو
نځی) واړول شي، پر یوه دود یا عادي غونډ اوړي او چارو
مانا ورسره هم ونجېږي، مانا دا چې بیا ترې د (لیلیه ښوو
نځی) جاج اخېستل کېږي. په داسې اکرکې چې (شپې ښوو
نځی) یا (شپې پوهنځی) په دې مانا دود شوی دی چې شاگرد
ان تر رسمي وخت روسته مازيگر مهال ورځي او د ټاکلي مها
لوېش له مخې ماښام ماسختن ببرته خپل کور کوډلې ته ور
ستنېږي.
اوسني نومتړنگونه، لکه پوهنتون، پوهنځی، نادرکوټ هم له
آره نحوي رغاونې (د پوهنې ځای) او (د نادرکوټ) وې او را

روسته يې نحوي (نښې نښانې له لاسه ورکړي دي: (د) او له مخنيو وييونو (پوهنې- نادر) څخه دويمو هغو (ځى - کوټ) ته د خجونو لېږد او داسې نور. داسې هم ويلاى شو: يو غونډ يا غونډله پر يوه نومترنګ واړول شي(ولريېښ [٨٠]،نوم کېد نګ (Nominalisierung.

## دغونډلې دوه غوره نوموال او کړوال غونډونه

لکه د ← (نوم، اسم) په تړاو چې ورته نغوته وشوه، هسې خو د غونډلې (جملې) دننه هره ټوټه، لږ تر لږه ديوه (ويى، نوم) په بڼه، يا له يو ويي او يوه وييکي څخه رغېدلى وي، غونډ(عبا ره ،فقره phrase) بلل کېږي. خو که ووايو، يوه غونډله پر دو وغونډ ونو وېشل کېږي ، نو موخه مو دوه غوره ← نومو ال او کړوال غونډونه دي. چې په پښتو او پارسۍ کې يې← نوموالغونډ د← اېښي (مسند اليه يا مبتدأ) په توګه لومړى راځي او کړوالغونډ يې د ← اېښوني (مسند يا خبر) په توګه ورپسې ټيکاو مومي.

## نوموالغونډ (nominal phrase)

لکه پاس چې ياده شوه، دغه غونډ د غونډلې له دوه ګونو غو رو برخو يوه، او بيا د پښتو په تړاو ړومبۍ برخه رانغاړي. نو موال يې هم په دې بولو چې زړى (هسته) يا منځتوکى يې نوم

يانومونه او يا هم داړوندانو (نوم، ستاينوم، شمېرنوم، نو مځري...) په ملتيا ، دغونډلې ايښي (مسند اليه، مبتدا) رغو ي، لكه: زمرى، زمرى او ببرى، د ګاونډي داړن سپى.

## کړوالغونډ (verbal phrase)

هغه غونډ چې کړ (فعل) يې زړى يا چورليز (محوري) توکى ، په بله وينا ، د غونډلې اېښي (مسند ، خبر) جوړوي) او پخپله (کړ ) ته هم په دې تړاو په دوديزه عربي نومونپوهنه کې (اسنا د) وايي، لکه (: ... راغى)، (...پرکار بوخت شو- شول- شوه- شوې)، (...ور پورې کړ)،( ...ډوډۍ وخوړه) او داسې نور.

## غونډله ييز يوون (constituents)

دا هغه ويي يا وييغونډ دى چې د يوې غونډلې يوخپلواک رغنده توک (متشکله جزء) ګڼل کېږي. په دې مانا چې د نورو توکيو له ملتيا پرته خپل مانيز يووالى ساتلاى او پېښوييز چار ترسره کولاى شي، لکه ګړ (مورفيم) ، ويى، وييغونډ ، اېښي (مسند اليه، مبتدا)، اېښونى (مسند ، خبر).

← غونډيز کړ (phrasal verb) ۵- ځپرکى۱ -پړوکى

## غونډلهٔ (sentence)

غونډله د ژبې د يو شمېرزنځيري ( segmental) يوونونو (يونېټونو)، په نورو ټکو، آرو ،ازادوګړونو (وييونو او

وييکو)، او ناز نځيري (supersegmental) يوونونو، لکه (خج، اهنگ، غاړې، بېلتون و پيوستون...) يو داسې خپلو اک ماناوال اوډلی ټول (کُل) دی چې يو ((غړېدونکی)) پرې يو ټاکلی بشپړ اندوجاج (فکر و مفهوم) او موخه، خبره، خبر... بل ((اورېدونکي)) ته ور لېږدولای او ورپوهولای شي؛ په دې لړکې يو څه ورڅرگند وي، يا پوښتي او يايې هم د تر سرته رسولو امرکوي او داسې نور (۳-پښو يه ۲۱۸).

## اوډله يا تگميم (tagmeme)

تگميم چې له يوناني tagma آرې مانا سره سم يې(اوډله) را پښتوکولای شو، د ويناتوکو يوه داسې ټولگه ده چې په← غونډله کې ورته پښوييز چار پرځای کولای او د اړوندې نحوي څانگوړې تگميمپوهې ((tagmemics))، په نورو ټکو، د غونډله پوهې (کوشني ترين يوون (unit) بلل کېږي.

پېژند به يې داسې راساده کړو:

يوه اوډله (تگميم) هماغه --← آره خپلواکه (يووستوې) غونډله ده چې د بل کوم لوی ويناييز- پښوييز رغښت ټوک (جزء) نه گرځي، لکه: (تنکۍ گلالۍ!) يوه خپلواکه بلنغونډله (ازاده ندايية جمله) ده، خو له اهنگ بدلون سره (تنکۍ گلالۍ) پر هسې يو غونډ (عبارت) اوړي او د يوه تگميم (اوډلې) برخه گرځي، لکه واخلې: (تنکۍ گلالۍ کور ته راغله).

نو که د غه (اوډله) وغځوو، بیا خپلو اکي له لاسه ورکوي او د یوه لوی یوون (واحد) اړوندېږي، لکه:

(تنکۍ ګلالۍ کورته راغله او پر پخلنځي ننوته).

ځکه یوه دوه ټوکیزه (غبر ګ-) غونډله شوه: لومړی ټوک یې آره او دابله یې اړو نده یاځېرمه (تابع یا فرعي) غونډله. (۲- پښنو یه ۲۴۹-۳۲۸؛ اکسفورډ سیند؛ یمین:۲۰۱۱، ۱۴۲).

# ۲- څپرکی

## همانیزوالی، څو مانیزوالی، همجولیزوالی (هم معنایی، چند معنایی...)

## Synonym, polysemy,homonym

کښل-اېستل- څکول/ سخت- کلک/ وور-وړوکی، وړکی، کمکی، کوشنی، ماشوم/لوی، ستر، غټ، غوټ؛ د یوه افغان (زوی) په توگه نه، بلکې د افغان (بچي) په توگه...

که څه هم د نومونو په تېر څپرکي کې پر دغه رازوییونو یا توليو(مقولو) لنډه لنډه رڼا واچول شوه، خو ورنده مو وبلله،

د ویپپوهنې د یوې غورې سکالو په توګه یې له یوڅه زیات سپړاوي سره مینه والو ته وړاندې کړو.

ژبه د داسې تړوني (قراردادي) غړیزو پیلامو (علامو، یا سېمبولونو) یو پرلغښتی غونډال (نظام، سېستم) دی چې د یوې ټولنې وګړي یې د خپلمنځي تړاو او پوهاوي لپاره پر کار اچوي. پیلام (علا مت، سېمبول) دا مانا چې له ځان پرته د یوه بل څه استا زي او ښکارندويي کوي، د بېلګې په توګه سور رنګ د خطر پیلام په توګه له ځانه د وراخوا ښکارندې ((خطر)) ښکارندويي کوي. د لته (سور رنګ) ښوونډ (دال)، (خطر) ښوولی (مدلول) او د ښوونډ او ښوولي ترمنځ تړاو ښوونګ (دلالت)، په نورو ټکو، (مانا) بلل کېږي.

ژبنی پیلام هغه غړ غونډ دي چې موږ یې د خپلو ویندو غړ یو (ژبې، ژبی، شونډو، غاښونو، اووریو، تالو، ستوني، کومي، چنغړک...) او له سږو څخه د بېرته راوتونکې ساهوا په مټ رازېږوو او د خپلې چار چاپېرې نړۍ (څیزونو، پېښنو او پدیو)، او همدا راز د خپلې د ننني ((ذهني)) نړۍ (اندونو، واندونو، جاجونو، ولولو، غبرګونونو، انګېرنو، نګېرنو، هیلو، ارمانونو...) د څرګنداوي لپاره پرکاراچوو. (د زیات پوهاوي لپاره: بدلمبچ ۱۱۰-۱۱۱)

هسې خو ژبه له لويه سره د دغه ((ځرګنداوي)) له پلوه يوه پر تليزه ښکارنده (نسبي پديده) او وسيله ده او بيا رغنده توکونه (متشکله اجزا) او رغاونيز (ساختاري) او مانيزې دويې (قواعد) يې هم همداسې پرتليزه ځانګړتيا لري او په دې لړ کې يې څو مانيزوالی (polysemy)، همانيزوالی (synonymy)، همجوليزوالی (homonymy)... هم دراخله.

د شلمې پېړۍ په درشل او بيا پيلامه کې د نوې ژبپوهنې پلار سويسي (فردیناند دې سوسور) او په تېره د رغښتي (سترکچرالېستي) ژبپوهنې پليونو يې پر دې ټينګار لاره چې هره ژبنۍ نښه يا سېمبول، لکه سپينه ليکپاڼه دوه مخه لري چې سره نه جلاکېدونکي دي: يو مخ يې جوله يا لفظ او بل يې مانا، په بله وينا، يو مخ يې ښوونډ (دال) او بل ښوولی (مد لول)، په نورو ټکو، هماغه پديده يا څيز چې په بهر نړۍ کې شتون لري او زموږ په ذهن کې انځور جوړوي، همدا انځور ((مانا)) بلل کېږي، موخه يې دا چې دواړه سره يو پر يو دي، يا (يو لفظ او يوه مانا) او هغه هم (يو پر يو)- امريکايي سترکچرالېستانو بيا د بلومفيلد په سرغندويۍ يوازې (جوله) نوره هم پسې را ټينګه کړه او (مانا) يې ګړ سره له پامه وغورځوله!

خو د هماغې پېرۍ د پېنځمې لسيزې په پای، او په پوره ډا ګيزه او نومېرلې توګه، په شپږمه کې فيلسوف او رياضي پوه ژبپوهاند نووم چومسکي د خپلې ((زېږندې- لېږدندې -Gene -rative-Transformative)) پښوويي يا ژبپوهنې له مخې په ژبه کې د (دال و مدلول) تر منځ تړاو يا دلالت ((مانا)) وبلل شوه او هغه هم ((يو پر يو)) نه، بلکې د دال و مدلول ترمنځ د يوه تړاو يا دلالت پرځای دويمي او درېيمي تړاوونه يا دلالتو نه هم ناشوني ونه ګڼل؛ په بله وينا د ويونکي او اورېدونکي نګېر(احساس (instituition او بلون (تداعي (association او تر ټولو روسته قرينه (context) هم د ژبنيو پېلامونو د وبله پوهاوي لپاره هم اړين وبلل.

د ساري په ډول، يو څوک له کوره په وتو کې د دې پرځای چې ((دادی ځم)) ووايي، ((زه ولاړم)) وايي چې که څه هم لاتللی نه دی، خو دی پخپله او اورېدونکی ترې د تېرمهال نه، بلکې دوسمهال مانا اخلي!

دغه ښرګندونه داسې هم څېړلای شو او هغه دا چې ((ذهني انځور)) په بېلا بېلو وړو او لويو ژبنيو توکو يا يوونونو او چاپېريالونو کې بېلا بېل رنګونه راخپلولای شي. هغه دا چې يو يوازېنی ويی ځانته جلا يو راز مانا ولري ، په يوه وييغونډ (عبارت، ترکيب) کې بل راز او بيا د ژبې تر ټولو لوی او بشپړ

## ويي پوهنه

يوون ((غونډله))کې، له ټاکلي پښوييز چارسره ګړسره يوه در بيمه مانا ښندلای شي.

چومسکي له همدې لامله تر نورو ژبتوکيو پر غونډ له (جمله) ډېر زوراچوي، ځکه غونډله د ژبې د اړوندو رغنده توکو (متشکله عناصرو) ګډې مانا او ګډ پښوييز چار، او له دې سره د ژبې د آرې دندې ((پوهاوي راپوهاوي)) ښه ترا ځلندو يې کوي او رښتيانينه وربښي.

د ښووندااو ښوولي يا نوم او نومولي د((يو پر يو)) والي ياوبله تړاو، نه ټيکاو (نه ثبات) کله ناکله له دې رامنځته کېږي چې يو څيز يا پديده د نومو لي په توګه کېداى شي، يوه جوته (ثابته) جوله ولري، خو پر وړاندې يې زموږ ذهني انځور بد لون و مومي او له هماغه يو يوازېني نوم (ښوونډ) سره مو ذهني انځور بله ښه راخپله کاندې، او د دغه ترمنځ تړاو ((مانا)) هم بدلون او رنګارنګي پيداکوي.

((سپوږمۍ)) چې د پخوا په څېر يې په جوله کې څه ونج نه دی راغلی او نه به تردې روسته راشي، خو د انسان له ورتګ سره زموږ پخوانی اخېستی ذهني انځور بدل شو او د هغې انګېر لې ښکلې او وړانګنې څېرې پر ځای يو ځمکې ورته انځور په مغزوکې راوټوکېد؛ له دې سره مانا هم چې د نوم (ويي) او ذ

هني انځور ترمنځ دوه اړ خيز تړاو نه وايي، بدلون مومي، يا په ساده ټکو، له سپوږمۍ نه هغه پخوا نۍ مانا نوره نه اخلو!
په دې توګه په ژبه کې د څومانيزوالي، همماني‌زوالي او هم جوليزالي يا همغږيزوالي ليدتوګه چې د رغښتي ژبپوهنې د لارويانو له خواله پوښتنې او خرخشې سره مخامخ شوې وه، له سره راتانده او غښتلې شوه؛ که څه هم د نورو ژبنيو ښکا رندو په څېر دغه پديدې له پرتليزوالي (نسبتيت) څخه ګړ سره پخشو (خلاص) نه دي.
د دغو دروګونو او داسې نورو ژبنيو پديدو روستی څرک په غونډله کې لګېد ای شي، د څومانيزوالي د بېلګې په توګه: ((غږ)) د (آواز، صدا) او له (فونيم) ترم يا نوموني سره يو دوه مانيز ويی دی، خو کله چې ووايو ((که څه دې په کار شو، يو غږ راباندې کولای شې!))، دربيمه مانا (مخ اړونه، مراجعه) رانغاړي او بيا په ((پاڅونيانو پر دولت غږ وکړ چې پر خپل چلند نوې کتنه وکړي)) کې (ګوابنه) او انګرېزي (اپيل) ما ناوې هم ورسرباري کېږي.

١-٢: همماني‌زوالی synonym

په پښتو کې دا وييزه (لغوي) ټولۍ (کتېګوري) د نورو ډېرو ژبو په څېر ترنورو وييزو ټوليو، لکه: څومانيزو (polysemous)، بډمانيزو (antinomys) همجوليزو (hymonyms)، آړمانيزو يا

مجازي- کنايي (metonyms)، سرغړيزو يا توشيحي (-acro nyms) نه زياته ده او څه ناڅه يې بشپړوالى (مطلقيت) هم تر پرتليزوالي يا نسبتيت (relativeness) ډېر بربښي.

دا هم د يادونې ده چې د عربي آري ليک سېستم له نيمګړ تياوو څخه يوه دا ده چې په پښتو کې همتوريزونه يا هومو ګرافونه (homographs) پرېمانه دي او د وينګ او مانا ټکر (التباس) کچه يې تر نورو ډولونو زياته ده، لکه (سره) د (با هم، مؤنث سرخ، طلا، پارو، حالت مغيرهٔ سر) لپاره په همدې يوه بڼه ليکل کېږي. همداسې لور د (داس، دختر، سو، رحم يا روا داری)... ؛ ((ولې)) د (چرا، ريشه، ميزنی، ميشويی، جو يها) لپاره يوه ګډه ليکنی يا همتوريزه (homograph) بڼه ده، لکه د ټوکو په موخه په دې رغول شوې غونډله کې: د ولې (ويالې) پرغاړه د ولې (بيد) ولې (ريشه) ولې (چرا) ولې (ميز نی) يا (مي شويی)؟

کوم سيندونه چې دغو ببلا ببلو ويي ډولونو او يا هم ببلا ببلو علمي، فرهنګي او تخنيکي څانګو او ښرانګو ته ځا نګړي شوي اوسي، په لاتين يې (thesaurus) بولي چې موږ يې د آرې يوناني مانا (treasure) له مخې ((خزانه)) يا يې د جاج له مخې ((څانګړ سيند)) او يا ((څانګسيند)) نومولای شو.

همانيزوالی د دوو يا ډېرو وييونو ترمنځ مانيزې همرنګۍ ته وايي او هغه وييونه چې سره کټ مټ يو راز او يا ورته مانا وې ولري، همانيزونه بلل کېږي. همانيز وييونه د بېلا بېلو، ګړويزونو يا ديالېکتېزمونو (ټبريزو، سيمه ييزو، ټو لنيزو وييونو)، زړويزونو يا ارکاييزمونو او بيا پورويزونو يا فار نېزمونو، اداپټېزمونو (دخيلو، مستعارو... وييونو) زېږ نده بلل کېږي، هغه هم چې د بېلا بېلو ويونکيو ترمنځ له جغرافيايي، ټولنيز، وټيز او فرهنګي پلوه يو ګړدودي ګډون او يووالی راشي، هرګوره په ((يوه-کره ليکنۍ)) ژبنۍ بڼه کې دغه پېښه پديده ښه تراسمبالتيا مومي.

د دې لپاره چې همانيز ويی (کلمه) مو ښه تراپېژندلې اوسي، لومړی به يې له يومانيزو وييونو (monosemous)، لکه پاسني (غر، لمر، لرګی، شپه، ورځ...) راپيل کړو او هغه هم په دغه لاندې يوه دوه سري غشي کې، په دې ډول:

ا (ذهني انځور)



و (ويی)

او دوه، يا څو همانيزونه داسې انځوروو:

ا(ذهني انځور)



و و و

په پښتو کې د داسې همما‌نیزونو، په بله وینا، وییونو ځرک لګولای شو چې د هر غونډ د غړو شمېر يې تر لسګونو رسي، لکه د پارسي ((کوژ پشت، قوز پشت)) پر وړا ندې، چې لیکوال يې د پښتو قاموس او ګړدودي ځېړنو له لارې تر پېنځه و یشتو همما‌نیزونه را خوندي کړي دي، نو که نوره لټه پسې وشي، تردې بریده به هم ور واوړي. ملا (چرګک) ښایي، په دویم، دښت په درېیم او شمشتۍ په څلورم کچ کې راشي او همداسې تیره او نور دروا خله.(پښتو سیندګی همما‌نیزونه؛ ویي پوهنه ، ۸-۱۰؛ باطنی۱۳۸۰: ۲۲۳-۲۳۲)

داهم هېرول په کار نه دي چې په رامنځته شوې ګړدودي او بیا کره لیکنۍ بڼه کې د ژبې د یوه بل آر (تقابل contrast ) وي له مخې همما‌نیز وییونه سره لږ و ډېر ما‌نیز او کارونیز بدلون راخپلوي او په پایله کې له پرتلیزوا لي سره مخا مخېږي ، په نورو تکو، بشپړ همما‌نیزوالی پر ورته ما‌نیزوا لي اوړي. نو بیا هله وا یو چې همما‌نیز وییونه، د څو اړخو له پلوه همما‌نیز دي، نه د ټولو اړخونو له پلوه .که یو خوا يې څو

اړخه سره همرنګ دي، نو نور يې سره ناهمرنګ دي ؛ په دې توګه هممانيز وييونه په دوده عربي نومونه (مترادف) نه، چې (متشابه) نومول په کار دي او موږ يې ((ورته مانيز)) بللای شو.

هممانيزونه يوازې د ګړدودي يووالی او ليکني کره والي د بهير په هماغه پيلامه کې رښتيني او بشپړ هممانيزونه بللای شو، خو راروسته پکې د بل ژبني آر يا ښکارندې، ((مخاوي contrast)) له مخې نيمګړتيا راځي، او پر ورته مانيزونو اوړي، هغه هم له دې لاندې لارو څخه، لکه:

۱) ښايي، دوه يا زيات هممانيزونه هرچېرې يو دبل پرځای ونه کارول شي، لکه کلک او سخت؛ کښل (اېستل، باسل) او څکول. د ساري په ډول، وايو: سخت (شديد) باران دی، يا پلانی سخت (ممسک) دی؛ دپوال کلک دی... نو که ((دپوال سخت دی)) وويل شي، مانا يې پارسي کېږي؛ همداسې که په ((تماکو څکول بد دي)) کې د (څکول) پرځای (کښل، اېستل، باسل) وويل شي، پارسي رنګ راخپلوي. بچی / زوی په ټولیز او روږدي ډول هممانيز بلل کېږي، خو په ((زه د يوه افغان بچي په توګه د چا بلواکي منلای نه شم)) غونډله کې يې پر (زوی) بدلول ټولوته ناسم يا ناولوليز (غير عاطفي) بريښي.

هن ،که (تور زما د زوی پرځای دی) پر (تور زما د بچي پرځای دی) واړول شي، ولولیز یا عاطفي اړخ يې پیاوړی راځي!
۲) ښایي، د یوه همما نیز دکارونګ ډګر، په تېره بیا په یوه کره لیکني هغه کې تر بل یا نورو یو څه ارت وي او ډېر کارو نځایونه ولري، لکه: تیږه یا ډبره د کاڼي، ګټې، غرګي... یا کمر پر وړاندې. بیا هم په بېلا بېلو ګړدودو کې بېلا بېل غوراوي ولري، د ساري په توګه د کندهار خواته (ډبره)، د ننګرهار خواته (تیږه) او د پېښور خواته (کاڼی) ډېره دود لري او داسې نور.
۳) ښایي، یو تر بل یا نورو لنډ، اسان یا خوږغږی وي، لکه: جګ تر لوړ، هسک، پورته، دنګ.. اوچت؛ کنځا تر ښکنځا، ښکنځل، ښکانځې، زورلې... یا زېږې؛ بړبکی تر بوړبوکی، بړبوکی، بړبښکی، ګرګلې، ګردلې، دوړدوړکې...
۴) ښایي، یو تر بل یا نورو له رواني پلوه زیات تونډ و تېز، لمسوونکی او پاروونکی وي، لکه: ویرژلی تر ویرجن، غمجن، اندېښمن، خپه... یا پرېشان؛ لوی او ستر تر غټ یا غوټ ← ۷)، همداسې سخت، کنجوس، بخیل .سوکړ، سوګت، لړو ختو... هم در واخله.

۵) ښايي، يو پکې کره- ادبي وي او بل يا نور يې عاميانه وي، لکه تالنده او تنا د غورزي، غورغوري،... پر وړاندې. تاسې او ستاسې د تاسو او ستاسو پر وړاندې.

۶) ښايي، يو له بل يا نورو سره په شعر و ادب کې زيات د دې جوگه وي چې د آرې مانا ترخنگ په مجازي، استعاري، کنا يي يا سېمبوليکه مانا هم وکا رول شي او ورسره ورسره يې ډېر پېښنې او کارونگ هم زيات وي، لکه: بيابان، سارا يا بېديا د ډاگ، دښت، دښته، ولخه يا د تورک- مغولي(چول، ميرې)... پر وړاندې.

۷) ښايي، يو تر بل يا نورو زيات درنښت يا بېلابېلې پوړۍ (درجې) ولري، لکه: پياوړی تر (غښتلی، ځواکمن... يا سېکور)؛ مېرمن د (wife) په جاج تر (ماندينه، ماينه← ماد ينه، خانمه، کډه، کور، کوروا کې، کورودانه، کورودانې، ايال، ايېل، کوړ مه، ټبر (ډبر)... يا د بچو مور)؛ مېرمن د نومهالي ستا ينوم (lady) په جاج تر (ښځه، ښځمنه، تور سرې، سياسرې يا زنانه)، او د واده ښځې (منکوحه)په جاج مېړوښه يامېړوښې تر(جگه، جيگه، ژگه، نکاح ښکلې، کا وين ښکلې) خخه؛ مېړه د (شوهر) د انډول په توگه تر (خا وند،

ښبنتن، سړی... د وړو پلاړ)؛ غټ (سړی)، لوی (سړی) او ستر (سړی)← ۳).

۸) ښايي، د يوه ولوليز (عاطفي) اړخ مثبت وي او د بل يا نو رو منفي، يا هم عادي، خنثی،لکه: په (ګړندی، چالاک او چا بک) کې لومړی مثبت، دويم منفي او دريیم عادي همماني ستاينوم دی. په (←وړکی يا کمکی، کوشنی، ماشوم) کې (وړکی) په (و) ګړنۍ پښتو پورې تړلی بريښي او (کوشنی) په ليکنۍ او ادبي پښتواو (ماشوم) بيا زيات ولوليز (عاطفي) جاج راخپلوي؛ بچی) د (زوی) پر وړاندې هم همداسې در واخله.

په دې تړاو بشپړ راخپل شوی عربي آری (ماشوم) چې په شمال ختيزه پښتو کې يې يو مخيز د (کوشنی) ځايناستی شوی او کوم ولوليز (عاطفي) اغېز نه لري، په نورو ګړدودي ډلوکې بيا د←کوشني، وړکي يا کمکي تر څنګ د يوه ولوليز څېل په توګه کارول کېږي؛ لکه څنګه چې هڅاند ليکوال حبيب نثار هم ورته په يوه ليکنه کې نغوته کړې ده.

۹) ښايي، يو تر بل يا نورو اخلاقي، ديني او يا دوديز پلوه زيات ارزښت ومنښت ولري،لکه:ارامځای تر (مړيستون، قبر، ګور، ډوريه ... ياګورنډې)؛ مسجد ، جماعت تر (مزدک، مزګت) يا راپښتو شويو (جومات، ماجېت)- (مزدک) بيا په

کره لیکني پښتوکې د غبرگ مانیز (مسجد ، معبد) په توگه ښه ترا دود موندلی دی؛ امېدواره تر (بلاربه، دوه ځانې، پر ځندانه، شگاره، تنده، ډډه، ورله...)، چې وروستي دري بې د سپکاوي له مخې ویل کېږي، په تېره ((ورله)) چې له آره په (خرې) او (بلاربه) هم زیاتره په نورو ژویو اړه لري.

۱۰) ښایي، یو له دوو ویېونو څخه د سېمانتېزم (مانا ونج) له لارې یوه پوهنیزه یا ورهنیزه نومونه (ترم، اصطلاح) گرځېد لی، په بله وینا ، پکې یو کارونیز بدلون راغلی:وي،لکه چا پېریال د چاپېرچل پرورانډې چې د آرې مانا (محیط) تر څنگ یې د پارسي (محیط زیست) او لاتین (environment) مانا ته هم ورغځول شوی او بیا چاپېریالي (ستونزې)، چاپېریالپو هنه (ecology) هم ځنې رغېدلي دي؛ همدا سې برېښنا د پېلبو پر وړاندې او داسې نور.

۱۱) ځینې له رواني پلوه د څو نړه پښتو همانیزونو له شتون سره سره هماغه پردی انډول خوښوي او کاروي، د بېلگې په توگه، د دې پرځای چې (ښکاري- څرگندېږي- جوتېږي- برېښي- ابسي) ووایي یا ولیکي،((معلومېږي، پر نظر راځي، مبرهنېږي...) وایي او لیکي.دا ښکا رنده له آره یو رواني یا سا یکالوجیکي لامل لري، لکه : لوښه (عادت)، ناغېړي، ځانساتي، بې توپیري... او په سرسرکې ځا ښوونه، ځان

غتاوي يا (فضل فروشي) چې زياتره يې په جوماتي او دوديزو ليکوالو اړه درلودلې او لا لري يې.
خدای ښنليو دوديزوالو ځانته ان دا رښتنه هم ورکوله چې نه يوازې نيولوجېز مونه سانسور کاندې، بلکې د کمپيښنو دا يلکتېزمونو او ارکاييزمونو د دودولو د مخنيوی يې هم کاوه، که بل چېرې به يې لاس ونه رسېد ،د پوهنتوني پوړی لپاره به چې ورته څوک استاد اړشو، يا به چا پښتو ښنبير (اثر) جايزې ته وړاندې کړ او يا څېړنغونډې ته ليکنه، د زاړه پالی، گرومونه (کمپلکسونه) به يې پرې يخ کړل!
۱۲) ځينې وييونه، په تېره همريښنه وييونه ډېرو ته لږ و ډېر همماني‌ز بريښي، لکه واخلې (ووړ، وړکی، وړوکی)، څوکه په ځير وکتل شي، بېلابېل پښوييز (گرامري) چارونه او کارو نځا يونه لري: (ووړ) يو ستاينوم دی او د پارسي (خورد، کو چک) انډول، وړکی يې کوشينه (تصغيري) رغاونه ده، او وړوکی پر دې سربېره يو نوم هم دی چې له (← کوشني، ما شوم) سره يې دا اړخ گډ دی؛ کمکی هم (ووړکی، وړکی، وړه کی) ورته رغاونه ده، خو د نورو ستاينومونو په څېر يې ډېر گړی (کمکيان) لکه (کوشنيان) نوموال چار راخپلوي.

۱۲) هغه همما نيزونه چې له پور ويېونو او آرو (ارکاييزمونو، دايلکتېزمونو او نيولوجېزمونو) ويېونو څخه رامنځته شوي دي، پر بېلا بېلو ډولو وېشل کېدای شي:
يو: له پورويزونو (دخيل، مستعار يا مفغن) او آرو ويېونو سره زياتره بشپړ همما نيز يا همما نيزونه په پښتو، په تېره په (يوه ليکنۍ پښتو) کې پرگوته کولای شو چې په هر کارون- ځای کې يو د بل پرځای وکارېدای شي، لکه وطن، ملک، مملکت- هېواد- ټاټوبی؛ فخر، افتخار- وياړ؛ مننه، کورو دان- تشکر- شکريه؛ مينه-عشق- محبت؛ (ټوليزې) رسنۍ- رسانه ها (-ی همگا نی)، دنيا- عالم، نړۍ- جهان؛ کارونځای ، لکه واخلې ((نړۍ)) په دې ځايونو کې: پر دې نړۍ او هغې نړۍ (پر دې دنيا او هغې دنيا)، يوه نړۍ مننه (يوه دنيا- عالم تشکر) او داسې نور.
دوه: له پورويزونو (دخيلو، مستعارو يا مفغنو) او آرو ويېو نو ...ره يو شمېرداسې رغېدلي همما نيزونه هم شته چې له پور تنيو پور ځانگړتياوو او شونتياوو سره سره پکې پور اندولو نه تر خپلو هغو زيات گړنی او ليکنی دود لري. دک و لامل يې دا دی چې کورني هغه ورسره له لږ مهال راهيسې غاړه غړې شوي او لا بلدتيا او روږد تيا ورسره دومره پرمخ نه ده تللې، لکه: سکالو د (موضوع، مضمون)؛ ونج د (تبديل يا

بدلون، تغيير؛ عوض) په مانا وو يوځه دود شوی، خوله در پيمې مانا (مېز) سره نه، کوشينه بڼه (ونجړی) يې د وړکي مېز په مانا هم دروا خله.

په همدې يوه لړۍ کې وينه، ښکالوه د (بحث، مباحثه)؛ مننډوی او پا سللی د (شکر گزار- شاکر- مشکور- ممنون، احسانمند، منتبار)؛ لمونځغا ړی د (لمونځگزار- لمونځ کوونکی)؛ چلند، چال چلند يا کړه وړه د (رفتار- برخورد- سلوک)؛ مين او مَينه د (عاشق (معشوق)؛ بلهار او بلهاري د (قربان، قرباني)؛ ويی، گای د (لغت- کلمه) پر وړاندې....

په (← کوشنی، وړکی، کمکی... ماشوم) بېلگه کې يوازې کوچنی (کوشنی) له راخپل شوي پورويي يا اداپتېزم ((ما شوم)) سره د ځايناستۍ جوگه دی چې د لرو پښتنو تراغېز لاندې يې تر نورو ښه ترا کړه- ليکنۍ پښتو ته لار موندلې ده، هغه هم د کره ((کوشني)) ځېل پر وړاندې. په دې کې د رسنيو، په‌ تېره ((بي بي سي)) ونډه او اغېزه پوره ثرگنده ده چې ان ((غلط مشهور)) نويزونه يې په لږ مهال کې د پورويز ونو ځايناستي کړي دي.

ولسمشر د جمهور رييس پر وړاندې چې کره يې هېواد مشر راتلای شي، يا د لومړۍ وزير د صدراعظم (يا وزيراعظم) پر وړاندې چې لنډ او کره يې (سر وزير) راځي او په ژبه کې يې

تياري مخبېلگې هم شته دي، لکه: سروال، سربنوونکی، سر لیکونکی، سرځارن... په (برېښنا، پېلبو، برق، بجلي) کې، هغه هم له ترمينا لوجيک پلوه لومړی دا په بره پښتو نخوا کې د (برق) او په لره کې د (بجلي) پروړا ندې دومره دود نه لري.

درې: په (ډېر، زيات، پرېمانه) کې، لومړي دوه همانيزونه ښايي ۹۹٪ هومره يو د بل پرځای وکارول شي او درېيم دا يې زياتره د ښندې (مبالغې) لپاره، ((زياتره)) يې پر وړاندې پوړيز ستانوم (صفت عالی)، په بله وينا، د پارسي (زيادتر، بيشتر) په توگه نه، بلکې د کړول (قيد) په توگه د (بيشترينه، اکثراً، غا لباً) انډول راځي چې ځينې پارسي ځپلي ليکوال او رسنو ال يې دغه توپير نه شي کولای او د پارسي (زيادتر، بيشتر) تر اغېز لاندې راځي!

همداسې ((لاسته راوړنه)) چې اروانباد استاد رحيم الهام نژدې څلوېښت کاله پخوا له پارسي ((دستآورد)) څخه را ژباړلې او نن سبا، لکه د ځنگله اور خوره وروه شوی، په داسې ترخ کې چې (پق) شپېته کاله وړاندې راخوندی کړی ويی (بريا) له (ما حصل، دستياب شده) مانا سره د لنډ او نږه انډول په توگه ډېر لږ کارول کېږي؛ (برياينه) يې هم يو بل

همماني‌ز دی او لا ځيني يې بيا له (بري) سره هممانيز انګېري او کاروي!

څلور: د (يون) په څېر دوه يا څو مانيز آر ژړويزونه (ارکاييز مونه) يا نويزونه (نيولوجېزمونه) چې له پورويزو سره يې هممانيزونه رارغولي، يوازې د يوې مانا له مخې د ځايناستې جوګه شوي دي، په دې ډول يون تر اوسه لړو ډېر د (سفر) ځايناستی شوی، نه د ((حرکت، رفتار)). په دې لړکې پښتو د سياسي او ټولنيز ترم له را خپلولو سره دوه نويزونه (خوځون، خوځښت،) د (حرکت) ځايناستي کړي دي، نه د عادي مانا پر بنسټ، لکه (( د ګاډي خوځښت يا خوځون پر درو بجو دی)) نه شو ويلای، په غونډله کې ((خوځېد -)) د کړ په توګه د (حرکت کول)) ځای نيولای شي، لکه: پر درو بجو (را-در-ور)خوځېږم يا وخوځېدم ...)) او داسې نور.

په دې لړۍ کې د خپلو نړه وييونو پرځای د پورووييونو کارو نګ زياتره په ګړنۍ پښتو او بيا نالوستو او کم لوستو اړه لري، لکه: روغتون- شفاخانه (شپاخانه)- هسپتال؛ درملتون- دوا خانه؛ ناروغ، ناجوړ، ناسازه، رنځور- مريض- بيمار؛ پخلنځی - پخليځ- پخليځی- آشپزخانه؛ ښوونځی- مکتب (منتب)؛ پوهنځی –فاکولته؛ تمځی، تمځای (stop)- اډه (station) ؛ زېږنتون- زايشګاه؛ له ليدن- ديدن، ديدار څخه

داسې بربښي چې له ستر (خوشال) پرته، نورو پخوانو او او سنيو ويناوالو او ليکوالو پسې هېڅ سر نه دی گرځولی، که نه، تر پارسي يې پښتو کړوالې ستې ريښې زياتې دي، لکه: ليدل، کتل، کسل، وينل، گورل.

گاډی- موټر؛ ځانگاډی (اوتو، شخصي موټر)، چمگاډی (ترامواى)، اورگاډی (ترېن، رېل)، بربښنا گاډی (ترولي بوس)، وورگاډی (ميني بوس)، سپرلۍ يا سپرلو گاډی (د مسافر برۍ موټر)، بارگاډی- لارۍ؛ زغرگاډی- زره پوش موټر... چې د غلته په سرچپه ډول زياتره نالوستي (اورگاډی) کاروي او لوستي يې انگرېزي انډول (ترين، رېل).

د ټوليو (کتېگوريو) نورې بېلگې، لکه: څپوڼی- دسمال، دسپاک، رومال؛ الوتکه- طياره؛ چورلکه- اليکپتره- څرخي طياره...؛ پلې لار، پللار- پياده رو؛څلورلاري، څللاري؛ کاليزه (نه کليزه)- سالگره - سالگرد، سالروز؛ ايرنۍ - خا کستر داني؛ خوږنۍ- قند داني؛ توښۍ، تودنۍ- بخا رۍ؛

څڅۍ، تره (raٟt)- ناوه؛ رېبځ، ربځ- جارو، برس (د مانا و

نجي يا سېما نتېزم په توگه) او داسې نور.

## ۲-۲: څو مانیزوالی (polysemy)

په ټولیزډول د پښتو په ګډون د څومانیزو یا ډېر مانیزو (polysemous) ویيو نوکچه تر بله مانیزو (antinoyms)، همجولیزو (hymonyms)، آړمانیزو یا مجا زي- کنايي (metonyms)، سرغړېزو یا توشیحي (acronyms)... څخه زیاته ده،او څه ناڅه یې بشپړوالی(مطلقیت) هم تر پرتلیزوالي (نسبتیت) ډېربرېښي.د پښتو په تړاو د دودیزې ابېڅې په چو کاټ کې د همجولیزو غوندې د څومانیزو نومېرنه هم ګرانه ده

څو مانیزوالی یا ډېر مانیزوالی دېته وايي چې د یوه ښوونډ (دال) یا نوم د څو ښوولیو (مدلو لونو) پر وړاندې ټېکاو و لري، په بله وینا ، یو ویي څو ذهني انځورونه او بیا تر دغه منځ څو تړاوونه ((ماناوې)) راونغاړي. د دې لپاره چې څو مانيز ویی (کلمه) مو پېژندلې اوسي، لومړی به یې له یو ما نیزه (لکه: ونه، غر، لمر، لرګی، شپه، ورځ...) راپیل کړو او هغه هم په دغه لاندې یوه دوه سري غشي کې.دغلته په یوه سر کې ((ا)) د ذهني انځور ښکارندویي کوي او په بل سرکې یې ((و)) د ویي یا کلمې ښکارندویي، او د دغو دواړو ترمنځ دوه اړخیز تړاو د یوې ((مانا)) ښکارندویي. پایله داچې د یوه

یواز ښي (ویي) پر وړاندې یو (ذهني انځور) ټیکاو لري او خبره یوه پر یوه ده. لکه په دې لاندې دوه سري غشي کې:

و (یوویی)



ا

(یو ذهني انځور)

نو د دې لپاره چې څو مانیز (ویی) مو هم ښه ترا ښوولی وي، په څو ورته غشیو کې یې ښیو، لکه: تور؛ گوډی؛ هڅه؛ تولنه؛ دریځ؛ لار، شوبله...)، په دې ډول:

و (ویی)



ا ا ا

(درې ذهني انځورونه)

هرگوره، لکه چې وویل شول، د هغو نورو دوو پدیدو په څېر څومانیزوالی هم یوه پرتلیزه (نسبي) پدیده ده، نه بشپړه (مطلقه). په دې مانا، کوم ویي ته چې موږ دوه مانیز (ذو المعنین) یا څومانیز (کثیرالمعاني) وایو، اړوندې مانا وې یې سره هرومرو بېخي یو رازوالی (عینیت) نه، بلکې ورتوا

لې لري. ورتوالی (مشابهت) په ژبه، ادب او هر هنري او پو هنيزې او طبيعي ښکارندو (پدیدو) کې په دې جاج ومانا چې د څوار خونو د دوو څيزونو او پديدو تر منځ يو برخيزه همرنګي بلل کېږي او بشپړه او هراړخيزه همرنګي بيا (عينيت) دی، نه مشابهت. ژبنی پرتليزوالی هغه مهال ښه ترا راڅرګيزه کېږي چې د خپلې او بلې ژبې تر منځ يو متن يا وينا راژباړو، په دې لړکې، سيند (قاموس) کښوونکي بيا، په ځانګړي ډول له ستونزواو تېروتنو سره مخا مخېږي.

د څو مانيزو په لړکې له داسې بېلګو سره مخامخېږو چې د يوې يا څو ماناوو له پلوه ډېر کارونګ او کارونځايونه لري او د بلې يا نورو له پلوه لږ، لکه وا خلې، شوبله چې پټ له پېنځو ماناوو سره راخېستی، نن سبا د جنګي اکر له پلوه له دوه (تانک جنګی) او (تانک تېل) ماناوو سره تردررو نورو هغو ډېر کارېدنګ لري.

پښتو د اروپايي او ښايي نورو ژبو په پرتله، د څومانيزونو د شمېر او بيا د هر څو مانيز د ماناوو د شمېر له پلوه په هېڅ ډول د سيالۍ جوګه نه ده، غوره لامل يې دا دی چې هغو ژبو د ببخرته علمي، فرهنګي او تخنيکي نومونپوهنو (ترمينالو جيو) په لړکې د نيولوجبزمونو ترځنګ پر ماناونجيو (سېما نتېزمو) هم پوره زور اچولی دی. که تاسې د ساري په توګه د

اکسفورډ څو ټوکیز سمندر (comprehensive dictionary) وګورئ، تر اویا مانیزو وییونو پورې پکې موندلای شئ!
غبرګ مانیز ویی (ذوالمعنین) په په اروپايي ژبوکې په ورته جاج کوم انډول نشته او په ډېر مانیزو وییونو کې یې راولي. هرګوره، ټکي پر ټکي (تحت الفظي) انډول یې انګرېزي ambiguous، الماني (zweideutig)...د (مبهم) په مانا کاروي، او په دې توګه پر ویي سرببره، د هغې خبرې یا متن لپاره هم کارول کېږي چې ګو نګوالی (ابهام) راولي.
یوه ځانتنۍ غبرګمانیزه بېلګه په دې اړ (چیستان) وزمه لنډۍ کې مومو چې (پیدا) یې د (موندنې) او (زېږېدنې) په دوه ماناوو راخېستی دی:

د پلار زانګو مې زنګوله
ناڅاپه غږشو چې نیکه دې (پیدا) شونه

دویمه تیپیکه بېلګه:
پښتو دوه مانیز (غوښتل) له (خواستن) مانا سره د (پالیدن) هغې په پرتله ډېر کارول کېږي. دغه دوه مانیزکړ ویی له مانا سره هرکله او هر چېرې د (خواستن) انډولېدای شي، خو له (پالیدن) سره په دغو څو بېلګو کې راڅرګندېږي،لکه: د ننګر هار خوا ته په ((سرغوښتل)) کې چې زیاتره په ښځمنو اړه لري، که یوه د بلې په سر کې سپږې لټوي، مور د لور یا زوی

او کله هم د خپل مېړه په سر و ږيره کې يا هم ښايي د نارينه وو تر منځ دا چاره چېرې په سفري، عسکري زنداني انډيوالی کې پېښه شي.

بل کارونځای يې: ((چې غواړې، پرې واوړې!)) متل دی چې د عربي (من طلب فقد وجده) (من طلب شيئاً وجده يا من جد وجد) او پارسي (جوينده، يابنده است) يو په زړه پورې انډول راځي؛ درې درېيمې لسيزې پخوا رفيع صاحب يې پورژبا ړه ((لټونکی موندونکی دی)) کړې وه چې ښايي، دغه متل يې پرياد نه وو او يا هم د ((غواړې)) دويمې مانا ((لټوې)) ته يې پام نه وو شوی!

يوه ځانتنۍ ډېرمانيزه بېلگه:

(لگول) کړ چې له هندي، په نوموړلي ډول، له نژدې گاونډو هندکو، اردو او سرا ييکي ژبو يې آره اخېستې، تر بل هر خپل و پردي ويي ډېرې ماناوې او رغاونې يې رامنځته کړې دي. مخينه يې هم لږ تر لږه تر خوشال پېړه رسي او د نورو ډېرو هندي آرو وييو غوندې وار له مخه د شمال ختيځ له لارې پښتو ته راگډ شوی دی. پق ورسره شپږ پارسي ماناوې راخېستې، لکه: (در دادن) (به کار مقرر کردن)، (صرف نمودن، خرچ کردن)، (اتصال دادن، تطبيق کردن)، (به جنگ انداختن) او (تصادم نمودن)؛ همدا راز يې په (اوبه لگول) څرگندنه کې

د (آبیاری کردن زمین) په مانا. اړوند بېلنګونه يې له بېچار انډول (کېډل) سره، لکه د نږه کړونو په څېر لړو ډېر ښوولي دي. د یادونې وړ ده چې له لومړنۍ پارسي مانا سره يې باید (آتش، چراغ، شمه...) کښلي وای او همدارازیې (به جنګ انداختن) له (لاس لګول) سره انډولېدای شي، لکه څنګه چې کوزه خوا ترې یو پوخ ترڼګ (لاس لګی) د (دست اندازی) په مانا رغبېدلی دی. بېلنګ (لګوونی) يې هرګوره له سمې مانا (درګران) سره ښکلی دی. د دربیم ناپای (لګاوول) د (مصرف کردن) ترڅنګ (لت کردن و مضروب ساختن) مانا يې هم په زړه پورې ده. (لګاوېدل) بېچار انډول يې بیا یوازې (لت شدن و ضرب خوردن) ماناکړی چې د شمال ختیځ خواته يې د دواړو بڼو څرک نه لګي. اشنغري علیخان بیا له رنګ (نیل) سره هم کارولی دی.

د دې لپاره چې مو (لګول - لګېدل) او لاسته راغلې ګرداني او ویېرغاویزې بڼې يې له بېلابېلو ګړنیزو او څرګندیزو ماناوو او کارونځایونو سره ښه ترا ښوولې اوسي، په غونډلوکې يې را نغاړو:

۱): د (چسپاندن - چسپیدن، جور آمدن، تصادم کردن، تماس کردن) په ماناوو:

توغندي پر کور ولګېد (ومبنتی)؛ د سنک او خوازک سره نښه لګېدلې ده؛ د دوو کورونو دېوالونه سره لګېدلي دي؛ سر پر سر و پرېدې ولګوه؛ خپله ګوته، مُهر یا ټېکټ ولګوه؛ پام چې لاس دې پرما و نه لګي....

۲) د (مصرف کردن - شدن) په مانا:

پر کور مې ډېرې پیسې ولګولې؛ شګه او سمېنټ مې لږ ولګول او ختټه ګټه ډېره....

۳) له (اوبه) سره د اوبخور، پنې (آبیاری) په مانا:

پر پټي مې اوبه ولګولې؛ باغ و کروندو اوبه لګونې ته اړتیا لري....

۴) له (لاس) سره د نښتې یا جنګ جګړې په مانا:

دواړو ورونو سره لاسونه ولګول؛ لاس لګول (لاسلګی) سم کار نه دی....

۵) له بوټو، نیالګو، توخم... سره د زرغونېدا یا تېغ وهنې په مانا:

کوم بوټي، نیالګي مې چې ایښي ول، لګېدلي دي؛ ګندنه لګېدلې او باټینګڼ نه....

۶) له بادو شمال سره د (وزیدن) په مانا:

باجوړه جان جان - یخ شمال لګېږي؛ یو باد راالګېدلی ما له ځانه سره وړي (ا. ننګیال)....

۷) لگاوول يا لگاوکول د ( ټپي کول، وهل ټکول) په مانا :
تور زمر لگاو کړ يا يې لگاووي؛ زمرک د هر چا له خوا لگاوېږي او داسې نور.

۸) اور لگول - بدل، لکه په لنډۍ کې:

زما او ستا چې پرې وعده وه

بېگا په هغه ځای کې اور ولگېدنه

۹) پر جامو رنگ لگول يا رنگول، لکه څنگه چې عليخان هشنغري (اورلگول) او (نيل لگول) دواړه په خپل شعر کې کارولي دي:
ولې دې پر سپينو جامو نيل ولگاوه...
او بيا... :

د نورو کم مانيزو او څومانيزو په لړکې له داسې بېلگو سره مخامخېږو چې د يوې يا څو ماناوو له پلوه ډېر کارونگ او کارونځايونه لري او د بلې يا نورو له پلوه لږ، لکه پاس چې پر پېنځمانيزه (شوبله) رڼا واچول شوه.

(کړکۍ) له آره يېکي يوه مانا او يو کارونځای (د کوټې کړکۍ) درلود ، خو په دې روستيو کې يې د کمپيوټري (windows) او همماله يوه انځوريزه (مجازي) مانا (د امبد کړکۍ- در يڅه) هم را خپله کړه او داسې نورې بېلگې.

ناویلې دې پاتې نه وي چې یو ځومانیز ویی، لکه سخت (کلک، شدید، ممسک ←) هممهاله له همدغو وییونو سره هممانیز هم بلل کېږي. همدارنگه یو ځومانیز ویی، لکه گوابن (قهر، اقدام، اخطار، تهدید، تور بربښ) یوازې په یوه مانا (قهر) کې له (ځاځ) یا (خښم) سره هممانیز راځي.

ناویلې دې پاتې نه وي چې یو ځومانیز ویی، لکه سخت (کلک، شدید، ممسک ←) همماله له همدغو وییونو سره هممانیز هم بلل کېږي. همدارنگه یو ځومانیز ویی، لکه گوابن (قهر، اقدام، اخطار، تهدید، تور برېښ) یوازې په یوه مانا (قهر) کې له (ځاځ) یا (خښم) سره هممانیز راځي.

## ۲-۳: همجوليزوالی (homonymy)

په هره ژبه او بيا پښتو کې ښايي، دا ښکارنده د څو مانيز والي له کچې دومره توپير ونه لري. دا پېښنه هم لکه څو مانيز والی او هممانيزوالی د ژبني پرمختيايي بهير د را روسته پړاوونو، يانې دګړدودي او بيا ليکني يووالي په پړاويا پړاوونو کې رامنځته کېږي.

همجوليزونه يا همجوليز وييونه چې په ادبي فنونوکې يې (لغات متشابه) بولي، هغه دوه يا ډېر وييونه دي چې (د خج په ګډون) له غږيز يا ګړني پلوه سره يوه جوله ولري او ماناوې يې سره بېلا بېلې وي.

د ساري په ډول له (لور-lor داس) سره (لور- lor طرف) هله همجوله شوی چې په يو لړ ګړدودو کې يې واوبلي پايله (-ی) له لاسه ورکړې ده، دک دليل يې همدا چې په ځينو ګړدودو کې يې لا خوندي ساتلې، ((لوری)) او (لورئ) يې وايي.

د آرو او پورو وييو ګډې جوړې هم لږو ډېرې موندلای شو، لکه: ميره (مادراندر)- ميره (دشت)؛ بوره (شکره)- بوره (د ارې بوره) چې د روستي ويي نړه پښتو انډول ((د ارې بور bur)) دی.

له سوېلو پدیزو پرته د نورو دروګونو پښتو ګړدودي ډلو د بېواکوړېو (کلسترو) له ماتونې سره د هممانیزو غونډې د همجولیزو، لمنه نوره هم پسې غځېدلې ده، د غورځن (کا هش) او اوړن (قلب) له لامله د همجولیزو کچه یو څه زیاته ښکاري، لکه: خور (خواهر) - خور (خپو ر) - خور (ښو - د مېږیو او مچیو ځاله)؛ خپور - خور، لوَست - لُوست، ګوَټ - ګُوټ، سور (سپور)- سور (پسور) - سور (سُر)؛ یا کته (کښته، ښکته، خکته) او د خره (کته) او داسې نورې بې شمېره بېلګې.

خجونج (فشار بدلون) د همجولیزوالي یو بل لامل دی چې په دې تړاو یې پر سوېل لوېدیځ سربېره، د سوېل ختیځ (خوست) خوا ته هم له بېلګې نیمې سره مخامخېږو، لکه: بنه د

(پر) په مانا په ړومبي خج (báṇa) او د (شکل) په ما نا په رو

ستي خج (baṇá) ویل کېږي، همداراز (ونه) په پیلخج (درخت

او په پایخج (قد) هم دروا خله؛ (لاره) په پیلخج (راه) او په پا

يخج (نغمه) ښايي، له سوېل لوېديځ پرته بل چېرې ونه موندل شي.

# ۳- څپرکی

## پښتو ويي پوهنې ته يوه لنډه کتنه

څومره چې تراوسه جوته ده، پښتو وييپوهنه (lexicology)، هغه هم زياتره، له زده کړيزې- پښوييزې (گرامري) څېړنې او سيند کښنې (lexicography) سره د اتلسمې پېړۍ له نيمايي راهيسې راپيلېږي. هسې خو په نومېرلې توگه، د پښتو ويي پوهنې او ويي رغاونې (word formation) او همهاله د آر پوهنې (etymology) پيلامه له جېمزدارمستېتر سره د نو لسمې پېړۍ د نهمې لسيزې په روستيو کې رانښلي.

پير محمد کاکړ د اتلسمې پېړۍ په نيمايي (۱۱۹۵ س ل) کې د معرفته الافغانی په نامه يوه ښوونيزه (تعليمي) ډوله پښو يه کښلې ده چې د گرامري وييونو ترخنگ يې يو بشپړ

(لسم) څپرکي د بېلابېلو (يوستوو، بېلبنتي او ترښتي) وييو ليکلړ ته راڅانگړی کړی او ډلبندي کړي دي (پيرمحمد کاکړ معرفته الافغاني، د ننگرهار مجلې د ۱۳۵۲ کال خپرونه).

الماني گويلدن شتېت (J.A. Güldensteadt) تراوسه لومړی ختيځپوهاند بريښي چې تر پيرمحمد کاکړ څخه يې ۲۰- ۲۵ کاله روسته په خپل الماني اثر (Reisen durch cauaca sischen Gebirge in Russland) کې د روسيې له لارې قفقاز غرلړۍ ته يونونه) نومي فرهنگ کې د دوه گونو اوسېتي گړد ودو (الاني او دېگوري) وييونو تر څنگه ۲۱۵ پښتو وييونه کښلي دي. د اکتاب لومړی ځل د ده تر مړينې لس کاله روسته پر ۱۷۹۱ ز. کال په پيترسبورگ کې چاپ شوی دی (د گويلدين شتېت د فرهنگ- پښتو برخه- د پوهاند رشاد په سريزه، اد بپوهنځې ۱۳۵۲).

پر ۱۲۲۱ (۱۸۰۲) کال د نواب محبت خان رياض المحبت فرهنگ ډوله پښويه.

پر ۱۲۲۵ (۱۸۱۰) کال د محمد ارتضا خان (د نواب امان خان زوی) د (فرهنگ ارتضايي) په نامه يو څلور ژبی (عربي، پارسي، اردو او پښتو) قاموس دی او پر همدغه کال د کلا پروت گرا مرهم د يادونې وړ دی.

پر ۱۲۲۸ (۱۸۱۳) د الله یار خان (د نواب محبت خان ورور) عجایب اللغات او په هغه پسې (کتاب خیالات زمانی در لغت و زبان افغاني)، دغه راز یې د (آمد نامۀ افغانی) په نامه د کړ ګړپوهې (فعلي صرف) یو بل کتاب چې یو ویيلړ (لغت نامه) راخلي، د نولسمې پېړۍ په سرکې کښل شوی ښکاري.

ایوریسن پر ۱۸۲۳ کال پښتو ویي کښلي چې په پارسي، تاري، جرمني او روسي ژباړل شوي دي.

پر ۱۸۳۹ د جرمني پوهاند ایوالد (افغاني یا پښتو) د ختیځ د خبړنې په مجله کې) او د دورن پښتو پښویه د منتخباتو قا موس برخه او پر ۱۸۲۷ کال یې جلا پښتو انګلیسي فرهنګ خپور کړی دی. پر ۱۸۲۰ کال د مېجرلیچ ګرامري رساله. پر ۱۸۵۵ کال د کیپتان واګن یو انګریزي - پښتو ژبې سیند کښلی دی.

پر ۱۸۵۵ د راورټي ګرامر چې اتم څپرکی یې په ځانګړې توګه لیکزیکي برخه راخلي او په دې لړکې راز راز بېلنګونه (اشتقا قونه) او ترنګونه (ترکیبات) ترسپړنې او شننې لاندې نیسي، دغه ډېرکاري انګرېز د پښتو پښویې او نورو اثارو ترځنګ پښتو - انګلیسي سیند پر ۱۸۶۰ کال په لندن کې له چاپه راښتی دی (زیار: ورمه، ۱۳۵۲ کال، څلورمه ګڼه).

هنري والتر بيليو تر راورټي وروسته دويم سړی دی، چې پښتو پښويه کتاب يې له سيند سره يوځای پر ۱۸۷۲ کال په لندن کې چاپ شوی ده، سيند يې دوه ټوکه دی: (پښتو - انګر يزي) او (انګريزي - پښتو). پښويه يې دويم وار پر ۱۹۸۳ کال په لاهور کې او په پېښورکې د سيد کتاب ټولنې له خوا خپره شوې ده (ترړی ۱۱۱-۱۳۲).

جان ګوردن لاريمر د وزيرو پر دودونو جالونواو ګړدود يا وزيری پښتو او و ييپانګه يوه پر لغښتې څېړنه کړې وه. بل همنومي او د برکاري انګريز د بوېد لوکهارت لاريمر د پښتنو او پښتو وييپانګې په تړاو د ليکنو څېړنو په لړکې د وګړنی غونډله پوهې (يا عاميانه پښتو نحوې) په نامه د ګړ پوهې او څه ناڅه اواز پوهې په ګډون، يوه بشپړه، (او پخپله وينايې) تر راورټي، ترومپ او بېليوروسته،کره پښتو پښويه کښلې دی.

د دغې پښويې لومړی برخه يې پر ۱۹۱۵کال د اکسفو رډ په کلرنډن چاپخونه کې چاپ کړې ده. له بده مرغه يې پښتو ژباړه چې د فرهنګ وزارت له خوا پښتو ټولنې ته چاپ او خپراوي لپاره سپارل شوې وه، پرخپله مخه ولاړه او د عامه کتابتون او د کابل پوهنتون په هغه کې يې آره چاپي نسخه د

نورو کمپښنو بهرنيو او کورنيو پښتو پوهانو له گټورو چا
پي اثارو سره د تورتم لارويانو پوپنا کړه.
الماني ارنېست ترومپ پر ۱۸۷۳ کال په تيوبينگن کې خپله
پښتو پښويه له چاپه راوايسته چې په هغه کې يې راز راز
پښتو ترنگونه او بېلنگونه تر څېړنې لاندې نيولي دي، (زيار
پښتو نومترونگونه ۱۷ مخ برن ۱۹۷۴).
پر ۱۸۹۲ کال په پنجاب کې د مولوي محمد اسماعيل چاپ
شوی ۱۱۲ مخيز اتاليق پښتو (پښتو ښوونکی) د غونډلو او
وييونو د انگريزي پارسي او اردو ژباړې او لاتيني ليکاړې
(ترانسلېتربشن) له پلوه زمونږ له دغې تار يخچې سره تړاو
مومي.
روسي ختيځپوهاند ايفيموف د (پښتو ترجمان) په نامه هم
يو کتاب ليکلی چې (۲۰۰۰) وييونه او (۲۵۰) گړنيزي
غونډ لې راخلي او پر ۱۹۰۷ کال په تاشکند کې له چاپه
وتلی دی.
پر همدغه کال ميرزا سيد احمد انگريزي پښتو ويي ليکلي
چې په راولپنډۍ کې چاپ شوی دی.
يو بل روسی ختيځپوهاند تامانوويچ پر پښتو يو کتاب
کښلی چې د گرامري برخې ترڅنگ قاموس هغه يې روسي

ژباړه لري او پر ۱۹۰۸ کال په تاشکند کې پر چاپ رسېدلې دي.

جېمز دار مستېټر James Darmsteter نولسمې پېړۍ د نو ميالو اروپايي پښتو پوهانو په لړ کې لومړی سړی وو چې د نوې ژبپوهنې په هماغه پيلامه کې يې پر ۱۸۸۸ کال د پښتو د خپلوۍ شخړه يوه مخيزه پای ته ورسوله او هغه يې د او ښتا همتېرې، په نورو ټکو، باختري (آرياني) جوته کړه.

دغه لومړي پرانسی پښتو پوهاند د دغه جوتتيا او زباد لپاره د نورو خبرو په لړ کې پرپښتو ويي رغاونه (بېلنګونو او ترنګونو) يوه تاريخي رڼا اچولې او هغه يې له اويستايي او نورو آرياني انډولونو سره پرتله کړي او په دې توګه يې د پښتو آر پوهې بنسټ هم ايښی دي (دوکتور روان فرهادي: تاريخ تلفظ و صرف پښتو، په تېره ۱۲۱ تر ۲۰۲ مخ دادب پوهنځي د ۱۳۵۲ کال خپرونه).

ويلهېلم ګايګر W.Geiger له يوه بل الماني آريانپوهاند (کون سره له ۱۸۹۵ – ۱۹۰۲) پورې (دارياني ژبو بنسټونو) په لړ کې پر پښتو آرپوهه او غږ پوهه يوه رساله وکښله چې د آرپو هې په برخه کې يې ۳۸۹ پښتو وييونه له اوېستا او نورو خپلوانو لرغونو ژبو سره پرتله کړل. په دې لړکې ده د دار مستېټر پر پښتو آرپوهه يوه کره کتنه او زياتونه وکړه په دې

توګه ګايګر د دواړو (نولسمې او شلمې) پېړيو د اروپايي پښتو څېړونکواو بيا پښتو ويي پوهانو او همماله آر پوهانو يو پول ارزول شوی دی.

همدغه د ګايګر ويپوهنه او بيا آرپوهنه ده چې استاد مورګنستيرن پسې نوره هم کره او بشپړه کړه او د همغه خپل درانه استاد په نامه يې ډالۍ کړه (دوکتور روان فرهادي، ۲۰۲ مخ)

استاد ګيورګ مورګنستيرن د خپل استاد ګايګر پرپښتو آر پوهه (۱۸۹۸ - ۱۹۰۱) باندې نوې څېړنې ور زياتې کړې او د پښتو د ا تمولو ژيکي قاموس په نامه يې پر ۱۹۲۷ کال په اوسلوکې چاپ کړی دی. د ژوند تر وروستۍ سلګۍ (د ۱۹ ۷۸ د مارچ دريېمې پورې) د نورو هر اړخيزو څېړنو په ترڅ کې پر هغه پښتو آر پوهه باندې نوې کتنې او بشپړونې وکړې خو د چاپ ارمان يې له ځان سره ګورته يووړ.

هرګوره، هغه کتاب تر مشر استاد راروسته دويم پښتو پوهاند او شاګرد د يو ډ مکنزي ترلارښوونې لاندې د کيمبريج پوهنتون استاد ايلفنباين له هغه ټولو يادښتونو او خپلو زياتونوسره پر ۲۰۰۳ کال له چاپه راوکيښ (←زيار: آرپوهيز سيند ګی).

د ( ۱۳۰۰ ه.ل ) په شاوخوا کې د محمد اسلم لوڼ زاړه پښتو لغات او پر ۱۳۰۰ ل. کال د پښتو مرکې (يواځې پښتو).د يادولو وړ بريښي

پر ۱۳۳۵ ( س ل ) کال د قاضي خيرا لله پېښوري قاموس چې په پېښور کې چاپ شوی او يو ټوک يې د پښتو ټولنې په کتابخونه کې خوندي دی.

همدا راز د امير شير علي خان له مهال راهيسې عسکري نو مونې د پښتو نوې ويي رغاونې له پلوه خورا ارزښت لري، د پښتو مرکې (پښتو - پارسي او ( دري - پښتو) قاموسونه او پر ۱۳۰۲ لمريزکال د عبدالرحمن لودين لوی پښتو - پارسي سيند د يادونې وړ دی چې ويل کېږي، د محمد گل مومند (پښتو سيند) له هماغه څخه راچاڼ شوی دی (!)

نور دوه ژبيز پښتو-پارسي قاموسونه، لکه ذ لعل محمد کاکړ او عبدالحی حبيبي سپيڅلې پښتو ( ۱۹۴۰ کال چاپ ) د محمد اعظم ايازي اس زره لغات ( ۱۳۲۰ س ل چاپ ) او پر همدغه کال د محمد گل نوري پښتو اصطلاحات او محاورې او بيا د راحت زاخيلې لس زرو ويز پښتو- اردو قاموس زموږ له ويينې سره اړخ لگوي.

د محمد گل نوري دوه ټوکيز پښتو – دری قاموس ( د پښتو ټولنې ۱۳۳۰ او ۱۳۳۳ کلو خپرونه ) د عبدالله افغاني نويس

د (۱۳۰۰ ل) په شاوخوا کې د محمد اسلم لوڼ زاړه پښتو لغات او پر ۱۳۰۰ ل. کال د پښتو مرکې (يوائې پښتو).د يادولو وړ بريښي

پر ۱۳۳۵ (س ل) کال د قاضي خيرا الله پېښوري قاموس چې په پېښور کې چاپ شوی او يو ټوک يې د پښتو ټولنې په کتابخونه کې خوندي دی.

همدا راز د امير شير علي خان له مهال راهيسې عسکري نو مونې د پښتو نوې ويي رغاونې له پلوه خورا ارزښت لري، د پښتو مرکې (پښتو - پارسي او (دري - پښتو) قاموسونه او پر ۱۳۰۲ لمريز کال د عبد الرحمن لودين لوی پښتو - پارسي سيند د يادونې وړ دی چې ويل کېږي، د محمد گل مومند (پښتو سيند) له هماغه څخه راچاڼ شوی دی (!)

نور دوه ژبيز پښتو-پارسي قاموسونه، لکه د لعل محمد کاکړ او عبدالحی حبيبي سپيڅلې پښتو (۱۹۴۰ کال چاپ) د محمد اعظم ايازي اس زره لغات (۱۳۲۰ س ل چاپ) او پر همدغه کال د محمد گل نوري پښتو اصطلاحات او محاورې او بيا د راحت زاخيلې لس زرويېز پښتو- اردو قاموس زموږ له ويپنې سره اړخ لگوي.

د محمد گل نوري دوه ټوکيز پښتو - دري قاموس (د پښتو ټولنې ۱۳۳۰ او ۱۳۳۳ کلو خپرونه) د عبدالله افغاني نويس

دري ټوکيز پارسي - پښتو افغان قاموس ( د پښتو ټولنې ۱۳۳۵ او ۱۳۳۷ کلو خپرونه ) د اوسنيو روسی پښتو پوهانو له خوا چاپ شوي قاموسونه لکه د زودين کوشنی پښتو- روسي قاموس ( د مسکو د ۱۹۵۵ کال چاپ ) د ليبيديف دوه کوشني پښتو - روسي او روسي- پښتو قاموسونه (د مسکو د ۱۹۶۱ او ۱۹۹۲ کلوچاپونه ) او همدا راز يې لوی پښتو- رو سي قاموس (د ۱۹۷۳ کال چاپ).

نيکولای دوور يانکوف پر ۱۹۶۰ کال په خپله ( پښتو ژبه ) کې پر پښتو ويی رغاونه يو خپرکی لري، د دغه پښتو پوها ند په گروهه د پښتو ژبې په ويي رغاونه کې تر ټرنگونو بېلنگونه زياته برخه لري چې په اتم خپرکي کې د← ټرنگونو په تړاو پرې رڼا اچول شوې ده.

د ا.شافيف د پښتو پښوېي په لنډاو ټلاين کې د دغې ژبې پر وييرغاونه يوه دوه مخيزه څېړنه کړې ده، چې اخځ يې د رښتين( اشتقاقونه او ترکيبونه) بريښي، د شافيف د دغه کتاب انگليسي ژباړه په ۱۹۶۲ کال د امريکا د انديانا پو هنتون له خوا چاپ شوې ده.

د استاد اسلانوف او د دوريانکوف لوي پښتو - روسي قاموس ( د ۱۹۶۶ کال چاپ ).

د شاه عبدالله بدخشي اته ژبيز قاموس ( د پښتو ټولنې د ۱۹۲۰. کال خپرونه ) د بهادر شاه ظفر کاکاخېل (ظفر اللغات) چې يو شل ژرويېز پښتو- اردو قاموس او بيا د پېښور د پښتو اکېډيمۍ څو ټوکيز قاموس چې له ۱۹۲۵ راهيسې يې تراوسه تر لسو ټوکو چاپ شوي دي، د يادونې وړ برېښي.

د دوکتور دولت محمد لودين شماري (قاموس احصاييوي (د پښتو ټولنې د ۱۳۵۳ کال چاپ ) او لغت پوهنه (د همدغې ټولنې د ۱۳۵۵ کال خپرونه

همدا راز زما پښتو ترنګونه د ادبپوهنځي د ۱۳۵۵ کال کچه چاپ)، پښتوآرپوهه چې تر، ژ ، پورې د وږمې مجلې ( ۱۳۵۱ - ۱۳۵۴ ) په ګڼوکې خپره شوې او تر همدغه توري پورې يې په پښتو- پارسي - جرمني- انګليسي د ژبپوهنې نومونې د يادونې وړ دي.

انګليسي- پښتو قاموس د پښتو ټولنې د ۱۳۵۴ کال چاپ. چې لسيزه راروسته يې چېه بڼه د پوهنو اکاډيمۍ په اډانه کې خپره شوې او تر اوسه يې دواړې بڼې بېلابېلو خپرندويانو له پېښوره تر اروپا او امريکا پورې بې له کومې اجازې پوښتنې په خپل خپل سر هو بهو چاپ کړې او د پلور وپېر بازار ته يې وړاندې کړې دي.

## ويي پوهنه

د افغانستان د علومو اکاډمۍ ((پښتو- پښتو تشريحي قاموس)) نومی سيند په څلورو ټوکو کې د ۱۳۵۸ - ۱۳۷۰ ل. کلو تر منځ په خطاطي بڼه ټوک ټوک عکسي چاپ کړی چې د ډېرو نګه پښتو وييونو پرځای يې هسې په ناړينو پور ويز ونو پرسولی دی. هرګوره، عبدالقيوم مشواڼي يې د (دانش خپرندويې ټولنې) په هڅونه له څه ناڅه للو ناونويزونو سره په يوه يوازېنې ټوک کې راټولکلی او له چاپه راکښلی دی.

۲۱۰۰ وييزه روسي- پښتو پارسي قاموس زموږ د دغې کتنې وروستی برخه جوړوي چې د څلورو وييپوهانو (کبدا يتنې، ليبديف، پاڅبويچ او ميتروخينا) له خوا پر ۱۹۸۰ کال په مسکو کې له چاپ راوتلی دی:

ليکوال (زيار) پر دغه (وييپوهنه) سرببره نور نښيرونه په لاندې ډول کښلي او خپاره کړي دي:

- په الماني ژبه د دوکتورا پوهنليک ياتېزس ((پښتو نومتړ نګونه Die Nominalkomposita des Pashto)) چې پر ۱۹۷۲ کال تر دفاع دوه کاله روسته، پر ۱۹۷۴ کال د برن پوهنتون له خوا چاپ شوي دي

- پښتو- (پارسی) پنډوپېر فرهنګ چې د پر ۱۳۵۳ ل. کال يې کښلی له دروګونو نسخو (کاپيو) څخه يې، يوه په پوهنتون،

دويمه په اکاډمۍ او دريمه په کورکې د تور خونړي اړودوړ بلهاري شوې دی.

همدا راز د ليکوال:

- پښتو سيندگی (هممانيزونه). سرحد چاپخونه، پېښور ۱۹۹۴ز. کال.

-انگرېزي- پښتو سيندگی (سربلونه + وستربلونه، گړنې او ځرگندنې). ساپي پښتو پراختيا مرکز، پېښور ۲۰۰۰ ز. کال.

- پښتو ليکلار ښود له (سيندگوټي سره). دانش خپرندويه ټولنه، پېښور ۲۰۰۷ ز. کال.

- پښتو سيندگی (نويزونه)، لومړی چاپ د پښتو پرمختيا مرکز له خوا

۲۰۰۰ ز. کال؛ دويم کره او غځېدلی چاپ د دانش خپرندوی ټولنې له خوا پر ۲۰۱۲ ز کال.

- پښتو آرپوهيز (اېټېمولوجيک) سيندگی، لومړی ټوک (ا- ټ). دانش خپرندويه ټولنه، پېښور ۲۰۱۱ ز. کال.

استاد صديق الله رښتين د لومړي دوديز پښتانه ژبپوه په توگه پر ۱۳۲۶ ل (۱۹۴۷ز) کال ((د پښتو اشتقاقونه او ترکيبونه)) چاپ کړل چې د پرکلونه يې ترې د ادبپوهنځي د پښتو څانگې د لوست کتاب يا لوستليکي په توگه کار واخېست. دغه کتاب د دوديزې عربي- پښتو ژبپوهنې د

نورو ډېرو ليکنو څېړنو او اثارو غوندې تش د اومو توکو او تاريخچې له پلوه يو څه ارزښت درلوداى شي؛ کټ مټ، لکه ګرامر او نورو زړو ببولالو يې چې نوې ژبپوهنه او ژبپوهان مو لا نه درلودل، تش تاريخي چارو نقش لوبولى دى.

د جولې- مانا او پښوييز چار- مانا، توري- غږ، د ګړپوهيزې (صرفي) او بيلښتي (اشتقاقي) رغاونونه توپيرول، (مصدر) له رينښې او ستې سره ګډول (التباسول) او بيا يې پرځاى کار ول، او همدارنګه د غونډله پوهيزو (نحوي) اوويېزو (لغوي) ترنګونو اخښل راخښل او يا د بېلابېلو نوموالو او کړوالو ټو ليو (کتيګوريو) ګډول ...غږپوهنه خولاخه کړې چې نن سبا د هرې ژبنۍ څېړنې بېخ و بنسټ بلل کېږي، په ټوليزه عربي- پښتو ژبپوهنه کې له ((اصلي او کومکي توريو)) تېرى نه کوي ....اوپه پاى کې ناسمه ډلبندي او نه پرلغښتيا يې دا را زباد وي چې له نوې ژبپوهنې او وييپوهنې او بيا علمي تخنيکي - مېتوډولوجۍ سره د اسمان و ځمکې هومره واټن لري. په کار ده، له نورو دوديزو لوستليکيو سره يوځاى نور له ښوو نځيو او پوهنځيو څخه ملي سراسري کتابتون او خونديځ (آرشيف) ته ولېږدول شي چې تش د کومې کمپيښنې اړتيا له مخې ورته څېړونکي يو لاسرسى هومره ولري!

دا ، تر هر څه وړاندې، پخپله د استاد له سپکاوي پرته بله موخه مانا درلودای شي چې د نوې ژبپوهنې داوه ګيره، خو پلېونې لورېې دغه پاتوړې د وخت له ناخوالو په ناوړه ګټه اخېستنه بيا له سره چاپوي او په ټوله سپين سترګۍ يې، زما په نويو و يېپوهنيزو آرونو ،دويونو (اصولو ،قوا عدو) او نو مهالي څېړندود سره د کښلې (وېي پوهنې) د ځايناستۍ بې سروبوله منډې ترنډې کوي؟

ويل کېږي چې د لغمان د چارباغ (سيد قاسم پاچا) تر استاد رښتين څه ناڅه يوه لسيزه وړاندې د اوږده بند په شپو ورځو کې هم (( پښتو اشتقاقونه او ترکيبونه!)) کښلي او زوی يې سيد مسعود پوهنيار راخو ندي کړي دي. له بده مرغه تر اوسه د ښاغلي پوهنيار ځرک نه دی رالګېدلی چې د نورو ډېرو سياستوالو او فرهنګيالو غوندې چېرې جلاوطن شوی دی!

په هر ډول، د ليکوال (زيار) د دې نومهالي ځانګپوهيز نښير له لا زيات کرولي او غځولي چاپ او خپراوي سره په هېواد کې د جنګ وجهل توره کمبله نوره راوبلېښل شي او له وړکتونه ترپوهنتونه زموږ ګرد زده کړيز نظام يو وار بيا خپله نومهالې پوهنيزه پر مختيا يې لاره پر مخ واخلي!

# ۴- څپرکی

## ويیرغاونه يا نو رغاونه (Neologism)

د کره ليکنی پښتو ويیپانگې (Vocabulary) له څلورو برخو يوه برخه (۲۵٪)

پسرغښتی ژبپوهنې له زېږندويه (generative) ليدتوگې سره دا رازباده کړه چې د نړۍ هره ژبه د دويونو (قاعدو) يوه لنډه تنگه ټولگه ده، خوناپايه زېږنده پټتوان (پوتنسيال) لري اړوند ويونکي يې په خپل ټولنيز چاپېريال کې تر ۵-۷ کلنۍ پورې د ناگاهانه پېښنو (تقليد) له لارې زده کوي او خپلو مغزو ته يې سپاري.

له همغو لړ شمېر وييونو څخه د ورسره تړليو دويونو په مټ له
هر مهال وچاپېريال او نويو اړتياوو سره سم، نيم اګاهانه او
اګاهانه غځېدا او پراختيا مومي او لوی اوواړه پښوييز او
ويپوهيز رغښتونه را منځته کوي
رياضي پوه، فېلسوف او ژبپوهاند چومسکي هغه لړ شمېر
وييونه له لسو بنسټيزو شمېرو (١٢٣٤٥٦٧٨٩٠) سره پرتله
کوي چې د جمعې او ضرب له قاعدې سره ناپايه غونډونه
رامنځته کولای شي او همدغه غونډونه همغسې غونډلې دي
چې موږ يې له پښوييزو او ويپوهيزو دويونو له مخې ځنې
بې شمېره غونډونه، بېلنګونه، تړنګونه او غونډلې رغولای
او کارولای شو.
۴۲ کاله پخوا زموږ د ژبني- فرهنګي غورځنګ په هماغو لو
مړيو کې د پښتوټولنې روستني ټيکه وال راسره ((شوروی))
کانديد نووک (حکيم هلالي) ښکر پر ښکرکړی وو، او د هغه
خوارکي په چانټه کې د نورو اپلتو تر څنګ يوه داوه چې
((ښوونه، روزنه، ليکنه، څېړنه: د ليکوالو جوړونې دي!))
هرګوره، موږ يې هغه دوپاړه د رغښتی ژبپوهنې او ويپو
هنې له ليد توګې سره سمه پر مخ ورويشتلې وه.
د پسرغښتې ژبپوهنې پليونو د دې لپاره چې د نويو نويو
جاجونو او ورپورې تړلو وييونو بوج يو څه راسپک شوی

اوسي، د پښوييز اركاييزم پر ځای پر وييپانگيز هغه، او ورسره ورسره پر نيولوجېزم ډېر ټينگار كوي.

# لومړی: پړوکی
## له سيالۍ تر ننګونې

۱- ويیرغاونه (نيولوجېزم) د پښتو د نومهالې سيالۍ اړينتيا او مخته پرتې ستونزې داسې څېړو: ويیرغاونه، لکه د نورو دوديالو ژبو په څېر د کره ليکنۍ پښتو ويیپانګې يا ويیزېر مې (لغوي ذخيرې Vocabulary) له څلورو برخو يوه (۲۵٪) برخه را نغاړي. درې نورې (ګړدودي- زړه- پردۍ) څڅه يې پروړا ندې ۷۵٪ کېږي.

په دې ډول يوازې ژوندۍ برخه په عادي ګړنۍ (ګفتاري) پښتو، او بيا تر هر څه وړاندې په نالوستو پرګنو اړه لري، او زده کړه وال، د پوهې او فرهنګ څانګوال، ليکوال، رسنوال، وينا وال، وياندان... له څلورواړو برخو سره کار لري؛ له وخت

تېرېدنې او د ليکلوست، په نورو ټکو، د ښوونې روزنې له ټوليزوالي سره اړوند توپير او واټن ورو ورو له منځه ځي. هر ګوره، دوه ګونی (ګړنی - ليکنی) وېش، ښايي، هېڅکله يومخيز له منځه ولاړ نه شي.

۲- لکه څنګه چې په ((مورنۍ ژبه ۵۵)) کې مو يادونه کړې، د نړۍ ګردې ژبې له پرلپسې مانيزو او توکيزو پر مختګونو او ورپورې د تړليو نويو نويو جاجونو (مفاهيمو) له رازېږېدو سره وييپانګيزې غځېدا ته ورځکول کېږي او ژبپوهان اړ وځي، د دغه پرلپسې غټېدونکي او درنېدونکي بوج د زغمښت د لارو چارو په لټه کې شي.

يو خوا تر وسې وسې له لنډو او اسانو نيولوجېزمونو او ورسره له رياضي - ساينسي او کمپيوټري ورته ګړنيو او ليکنيو لنډيزونو او سېمبولونو پر سپارښتنه ټينګار وکړي او بلخوا د (و) ګړنيو ژبښو له پرلپسې رامنځته کېدونکې پښوييز- رغاونيزې نويوالي، ساده والي او اسانوالي سره پښويي (ګرامرونه) په پرلغښتي ډول هممهالي update کاندي.

په نورو ټکو، پښوييز لرغونوالې (ارکاييزم) نور له پامه وغورځوي او پرځای يې وييپانګيز ارکاييزم تر رو ستي

بریده راخپل او رادود کړي او له دې لارې وییپا نګیزې پراختیاوې او پېچلتیاوې یوځه راسکینده (جبران) کړي.
په دې توګه، زموږ د (یوې-کره لیکنۍ پښتو) بهیر هم د همدغو دوو هممهالو ښکارندو (پښوییزې اسانتیا - وییپانګیزې پراختیا) په رڼا کې پرمخ بیول کېږي.

۳- د ځلورګونې وییپانګې د یوه رغنده توک په توګه. ځلور ګونی وېش اله ماله په دې مانا نه دی چې هرومرو دې هره برخه په تول تللې ٪۲۵وي، بلکې موخه یې تر هرڅه له مخه د پورپانګې (مستعارې او دخیلې) هغې پر وړاندې د درې ګو نې سوچه (ګړدودي - زړې - رغولې) ٪۷۵پانګې وړاندېینه او کارونه ده.

په دې توګه ځلور واړه برخې سره په خپل منځ کې کمې زیاتې کېدای شي. د ساري په ډول په یوه کیسه ، ننداړمه (ډرامه) کې یوازې ګړدودي پانګه زیاته وکارول شي. په یوه رسنیزه (ژورنا لیستي) لیکنه کې د ګړدودي پانګې ترڅنګ رغولې او پورپانګه څه ناڅه یو برابر، په یوه فلسفي هغه کې ورسره زړه پا نګه زیاته او په یوه پوهنیزه او بیا ساینسي لیکنه څېړنه کې خو لا ښایي، پردۍ یا پور پانګه ترګردو درنه وخېژي او داسې نور.

۴- ويیرغاونه د ژبپوهانو او بيا وييپوهانو (Lexicologists) له ځانګيزو واکونو څخه ګڼل کېږي او په دې توګه پکې نور څوک په خپل سر او يوازې سر د لاسوهنې رښتنه نه لري. دبلې هرې پوهنيزې او فرهنګي څانګې والا هرګوره خپلې اړوندې نومونې، په بله وينا، نومونپوهنې (ترمينالوجي) يوازې د ياد شويو پوهانو په ملتيا او لارښوونه، يا لږ تر لږه د اړوندو لارښودونو په رڼا کې رامنځته کولای شي.

۵- که ويیرغاونه ونه شي، داژمندويي (تضمين) څوک کولای شي چې پر دي ويیونه او نومونې (اصطلاحات) دې په يوه ژبه او ليکدود پښتو ته را و لېږدول شي؟

(علم الجامعه، اجتماعيات) کاروي، بل به (جامعه شناسي)، دريیم به (سوسيالوجي)، څلورم به (سوسيولوژي)، پښنځم به (سوسيولوګي)... او بيا د اژمندويي يا ګرنټي چې خپلسرې رغاونې به نه کېږي او هغه هم څو څو ډوله، لکه د ازاديپال پرځای: حريت پسند ، ازادي خوښی او ازادي خوښوونکی؛ د بنسټپال پرځای: انتهاپسند او افراط خوښو ونکی؛ د اروا پوهنې يا سا پوهنې پر ځای: نفسيات او روح پېژندنه؛ (پېژ ندنه) د پارسي (- شناسی) ټکي پر ټکي اړونه ده، کره پښتو انډول يې ( - پوهنه)راځي،او داسې نور ژبنی انارشېزم!

۶- له دين و سادين ناخبرو ناګاره او لنډ اندي بنسټپال پښتو ويېرغاونه د عربي ژبې او بيا اسلام پر تاوان بولي. ان تردې چې د کفر ټاپې را لګوي. حال دا چې له قرآن او حديث پرته نور عادي ويېيونه او ترمونه راپښتو کول، نه کفردی،نه ګناه!

لکه: جمهور رييس (هېواد مشر يا يې ناکره: ولسمشر)، حاکم (ولسوال)، مدعی العمول (څارنوال)....

هسې خو د (ولسمشر) مخبېلګه (ولسمير) ده چې د ځانګړ نوم په توګه دود لري او (مير) هم له (کاسمير) نه تر (ميرويس) پورې.

په هر ډول خندا وړه خو دا ده چې بنسټپالو ته د کوزې خوا انګرېزي ((سکول)) کفر نه ښکاري او د برې خوا ((ښوونځی)) کفر ګڼي. له توركيې نه تر ماليزيا او اندونيزيا چې لاتين ابېځې (الفبې) يې د عربي پر ځای له هماغه لومړي سره رامنځته کړې، يا يې راروسته ورځايناستې کړې او د خدای او پيغمبر سپېڅلي ويناوې هم ورسره ليکي او لولي، په هر ډول، خو امريکايي مسلمانان چې ډېری يې ګړ سره له انګرېزي ژباړې څخه کار اخلي، همدوی يې په کافرانو کې شمېرلای نه شي!

۷- پارسي دعربي او اروپايي ژبو په لړکې تر هر څه له مخه،ان په مخ - ځمکواکي پېرو پړاوکې د ادبي - فرهنګي غورځنګو

نو په مټ، کره ليکنۍ بڼې راخپلې کړې دي. که تش په رسميت او قانونيت کېدی شوای، پښتو له ۱۹۳۲ تر ۱۹۷۵ پوره درې لسيزې د هېواد د يوازېنۍ ملي - رسمي او راروسته هم د لو مړنۍ ((ملي- رسمي)) ژبې په توگه له گردو هلوځلواو لگښتو نو سره سره تر اوسه له پارسي (دري) سره د ملي سيالۍ جوگه شوې نه ده.

پښتو کټ مټ، لکه د نويو ازادو اسيايي او افريقايي هېوادو ژبې چې خپلې گړنۍ او گړدودي بڼې يې د ورپاتې برلاسو ښکېلاکي ((انگرېزي، فرا نسي او نورو ژبو پر وړاندې سيمه ييزې (local languages) پاتې شوې دي، د پارسي غوندې د (دويمې مذهبي) او هم ښه ترا (غورېدلې فرهنگي ژبې) له يوې زرۍ راهيسې تر زيبښاک لاندې همدا سې تېريزه - سيميزه، په نورو تکو، گړدودي پاتې شوې او ليکنۍ يووالی او بيا و ييپانگيزه پراختيا او پر مختيا يې په برخه شوې نه دي

په دې مانا، پښتو پېړۍ پېړۍ له پاملرنې او کارونې بې بر خې پاتې ده او له دې لامله همدومره مهالپېر پر هېوادنې او جهانې کچ پر لېسې له رامنځته شوو نويو نويو علمي، فر هنگي، تخنيکي او نورو گردو مانيزو او توکيزو ښکارندو پديدو او جاجونو (مفاهيمو) له را خپلونې گوښې ساتل شوې

او پرځای يې د هماغو واكمنو ژبو اړوندې نومونې (ترمونه) او نويزونه (نيو لوجېزمونه) پرې هغسې برلاسي پاتې دي.

۸- كه پښتو كومه لړه كې ادبي - فرهنګي مخينه درلودلې هم ده، په سل كې اتيا - نوي د همدې تربرې ژبې تر اغېز لاندې پاتې شوې ده. ځ بر پښتانه له دې لاس پر لستونې ژبې سره نه برابري او نه سيالي د سركار ناغېړۍ او د كورنيو او بهرنيو پښتني ضد لاسوهنې يوازېنی لا مل ګڼي، او له دې ترخه وا قعيته ځانونه نه خبروي چې پښتو له ژب - ټولنپوهنيز، په نورو ټكو، له سيمه والۍ او ټبروالۍ له پلوه، د هغو په خبره (زبان محلي local language) پاتې ده.

د لنډاندو پښتنو زده كړه والو سر پردې نه خلاصېږي چې پښتو تر هر څه له مخه له اوسني اكربكره د راوتو لپاره د پارسي ژبې په څېر د يوه ((غورځنګ)) له لارې له بېلا بېلو ټبريزو - سيمييزو رنګارنګيو څخه ((يوې - كره ليكنۍ ژبې)) ته لوړتيا مونډلاى او هله د سيالۍ او برابرۍ لار ېږمخ اخېستاى شي!

۹- داسمه ده چې د نورو دوديالو ژبو په څېر پښتو نيولوجېزم د پېړيو په پوړيوكې د بېلا بېلو شاعرانو او ليكوالو له خوا تر سره شوی او پردولتي كچ يې يو څه هم لومړی ځل امير شېرعليخان (۱۸۶۸ز.) له پوځي - اداري نومونپوهنې (تر

مينالوجي) سره ټوليزه (سرکاري) بڼه ورکړې او له اماني او بيا نادري - ظاهري پېر راهيسې ورته د پښتو مرکې او پښتو ټولنې په چوکاټ کې څه ناڅه کار شوی دی.

هرګوره، د رغول شويو وييونو هماغه برخه ليکنی او څه ناڅه ګړنی پښتو ته لاره موندلې چې د برابری له مخې يې له او سنيو ژبپوهنيزو آرونو سره لږو ډېر سمون درلودلی دی، خو ډېری يې د خپلو او پرديو د ټوکو او ملنډو لوبڅي ګرځېدلي دي، لکه: سترتوب (رياست)، ټوپنی (نړۍ)، ټوپن څرګند (شهرهٔ آفاق)، پاس پاس (اسمان، هسک)...او لنډ اندو پښتنو او د ښنو يې په پېښنو لا بترې رامنځته کړې دي، لکه واخلې کړې وړې خو رې (ځلوبی)، ړغ ډبلی (راډيو)، شرنګ سوټی (رباب)، د رڼا کڅوړه (د برېښنا څراغ يا ګروپ)....

۱۰- په ټوله مانايو پرله غښتی علمي - تخنيکي پښتو نيولو جېزم په کابل پوهنتون کې زموږ د ((يوې يوازېنی- کره ليکنی پښتو)) غور ځنګ له منځته پيلامې (۱۹۷۲) سره را نښلول کېږي. په دغه څه له پاسه ځلوېښت کلن مهالپېر کې د بېلا بېلو پوهنيزو او فرهنګي څانګو زرګونه نومونې (اصطلا حات) رغول شوي او تر اوسه يې زياته برخه دود شوې او پا تې هغه يې هم پرلپسې دود مومي.

د دوکتور نجيب الله په واکپېرکې د پوهنتون چارواک دېته راوهڅول شول چې د دواړو رسمي ژبو ببلا ببلې نومونپوهنې (ترمينالوجۍ) د يوې رسمي پروژې په ترڅ کې زموږ پر دوه درو زرو پښتو نومونو، څو زره نورې ورزياتې شي. خو له بده مرغه چې تور توپان هغه هر څه له نوموړي واکمن سره هممها له خپل تورتياره کومي ته وسپارل، او دا دی، نن سبايې پخپله پښتوژبه له ۵- ۶ کروړو پښتنو سره يوځای د چورلټ ورکاوي له ننګونو سره مخامخ کړې ده!

۱۱- بيا هم لس پېنځلس کاله راروسته، د هغو ښاغلو او اغلو له نابانديۍ او ان ځانګړې (شخصي) دښمنۍ سره سره چې د ځانساتې (محافظه کارانه)، زورپالنې، ناپوهۍ، ناګارۍ، يا بلې هرې سايکالوجيکي لوښې (خصلت) له مخې د هر راز بدلون او نوي کېدون غوندې نوې وييرغانه (نيولوجېزم) د ژبپوهنيز دوی (قاعدې) او نړيو ال ټولمنلي دود پرخلاف پر پښتو نه لو زوي، د ځوان کمپيټري پښت له راټوکېدو سره، بيا يو بشپړ ډېری ليکوال، شاعران، پوهان او رسنوال دغه ستر کار ته را وهڅېدل.نه يوازې يې زموږ د رغاونو دودونې، چې لا ترڅنګ يې يومخيز او هر اړخيز نيولوجېزم ته هم اوږه ورکړې چې ليکوال يې داړ وند لسکلن سيندګي دويم غځېدلي خپراوي ته اړېست.

دا نو، نن سبا د څانګپوهو سیند کښونو (قاموس لیکونکو) پاره ده، د بېلا بېلو پوهنځانګو پرلپسې رامنځته کېدونکې پښتو ترمینالوجیو د اړوندو لاربښودونو او لاربښوونو په رڼا کې په بېلا بېلو سیندګیو او بیا سره یوځایي په ((لومړني بشپړ پښتو سمندر)) کې راونغاړي، لکه څنګه چې د ډېرکاري پښتو مین (احمدولي اڅکزي) ورته وار له مخه متې رانغښې دي.

۱۲- هرګوره، له دې ټولو بریاوو سره سره بیا هم پردې زیات ټینګار په کار دی چې د پوهې، فرهنګ او تخنیک په ننني نړۍ کې ویيرغاونه د څانګوېش او کاروېش د زرین آر له مخې له خپل نومهالي علمي څانګوال او ورسره ورسره ژبپوهنیز څانګوال او لاربښود پرته ترسره کول نه یوازې تاوان لري، بلکې د دودېدنې کابو یې هم راکموي او ترمینالوجیکي او لېنګوېستیکي انارشېزم رامنځته کوي. پر دې سربېره زاسمې رغاونې څانګپوهیزو سیند کښونکیو (مسلکي لېکزیکوګرافانو) ته د بیا سمونې او کرونې له پلوه یو بېځایه سر خوږی هم ور سرباري کوي.

۱۳- ځینې پوهیال او فرهنګیال پښتانه د دې ورانپوهاوي ښکار شوي چې ګوندې زړې دودیزې او نوې نړیوالې ورځنۍ نومونې زموږ په یادشویو ډګرو او په ځانګړي ډول، فرهنګي

هغوکې نه راځي او له دې لامله يې را پښتوکول ببځايه يا نا ړين دي، لکه : پخلنځی، پخاوو يا پخليکار، سهارنۍ (بر بځر)، غرمنۍ، ماښامنۍ، لمباځی، لاسولونې (دستشو يه)، ځانوچونی، لاسوچونی، مخو چونی، يا ځانځپونی، لاسځپو نی، مخځپونی، جببځپونی، پزځپونی ... اوداسې نور.

۱۵ - د ادابو يا چال چلند نومونې، لکه : مننه، خوښنه! هرکله! هيله کوم! هرکله راشې - راشئ! ښه راغلې- ښه راغلاست! تر بيا (ليدو پورې)! وښه - وښئ! ښښنه غواړم! په ښښنه! مهربانه شئ! مهرباني وکړئ! (د لطفاً يا له تېلېفوني زنګ سره د بلې! يا هلو! پرځای، او د يوځه غوښتنې پر وخت)، سهار يا ګهيځ ښه! (نبکمرغه!) شپه ښه! لوهه يا اشتها ښه! روغ! يا روغتيا! (د پرنجېدا په غبرګون کې او داسې نور. په دې لړکې کولای شو، په ولس کې يو شمېر تياري ببلګې هم له نومهالي ليکلړ سره راخوندي کړو، لکه : ستړی مه شې! ستړي مه شئ! خوار مه شې - شئ! زهير مه شې- شئ! کور ود ان! پرمخه مو ښه!

داچې دغه برخه وروسته زموږ د ټولنيز دود دستور يوه برخه ګرځي، نو اړ وند ځانګوال يې بايد په رغاونه کې پر لنډون، روانۍ،اسانۍ او نورو تخنيکي آرونو سربېره ټوليز فرهنګي او اروا پوهيز خورمنځ(سليقه) هم په پام کې ونيسي.

۱۲- تر ټولو د کونو دليلونو روسته د څلورګونې وييپانګې په چوکاټ کې رغولي وييونه يا نويزونه (نيولوجېزمونه) او بيا کارونه يې د پښتنو دا فرهنګي ګرومونه (عقدې) پرانېزي چې ترهر څه له مخه ورسره په نومهالي ورځنۍ ژبپانګه کې مخامخېږي، د ساري په توګه د ((ادابو)) په ګډون نوره اړتيا وړه پانګه، لکه: روغتون (شفاخانه، بيمارستان، هسپتال)، درملتون (دوا خانه، دوافروشي)، زو- يا زېږکاليزه د (زاد روز، سالروز تولد، سالګره، سا لګرد (birthday)، او داسې نور نومهالي فرهنګ يا ژوند و ژواک منځته راوړي وييونه. ان تر تازه اوونۍ نومونو (لومړۍ، يونۍ، دونۍ، درنۍ...) پورې. که نه، پردۍ دا وکاروو، مانا به يې دا وي چې دا نوې ښکارندې مو لا را خپلې کړې نه دي او يا يې لا ګړ سره جوګه شوي نه يو!

# دویم - پړوکی

## د ویيرغاونې تولیز آرونه او دویونه

## (اصول او قاعدې)

نوې ویيرغاونه یا بیا رغاونه (نیولوجېزم) په بنسټیزه توګه، په ګړنۍ ژبه کې د لنډو ګنډو (محدودو)، خو زېږنده تیارو شتو توکو او مخبېلګو له مخې چې ویونکیو یې د پېړیو په پوړیو کې له اړتیا سره سم، خو په نا اګاهانه توګه را منځته کړې دي، د اړوندو څانګپوهانو له خوا په دوو غورو بېلښتي (اشتقاقي) او تړښتي (ترکیبي) ډول ترسره کېږي.

ړومبني ډول وييونو ته ← بېلنګونه (اشتقاقونه) او دويمو هغو ته ترڼګونه (ترکيبونه) وا يي.

د وييرغاونې دواړه بنسټيز وييي ډولونه سره په لاندې توګه توپيرولای شو:

(۱) بېلښتي ويي (واژهٔ اشتقاقی) يه په لنډه نومونه هغه دي چې له يوه خپلواک ګړ (مورفيم آزاد)، په بله وينا، ←ويي او ورسره د يوه ← مختاړي (پيشوند) يا روستاړي (پسوند) اوپايلو په نښلونه رامنځته شوی وي، لکه: پر+مخ=پرمخ، مخ+ور= مخور، مخی، ښځينه، ښځنوک، ښځوک، نارينه، نرينه، نارينتوب، بې خولې، بې سترګو، ناروغ، ناڅاپه...؛

(۲) ترښتي ويي (واژهٔ اشتقاقی) يا په لنډ نامه ترڼګ (ترکيب هغه دی چې له دوو يا څو خپلواکو ګړونو (وييونو) او لږوډېر، د ← مختاړو، منځتاړو او روستاړو او يا بېلابېلو وييکو (ادا تو) او پايلو په ګډون، له يوه يا څو ناخپلواکو ګړونو (اداتو) رغېدلی وي، لکه:

اجلځی، کټمل، نورمېرمن، غويمنډ، لمرخاته، لمرلوېده، لا سوهنه، سرخوړلی، ښځګله، نرګله، توره پانه، ليکپانه...

د هغو تخنيکي ځانګړتياوو په لړکې چې د دواړو رغښتونو ترمنځ ګډون لري، هغه پر روستي رغنده توکي (ويي، وييکي) د يوه يوازېني پياوړي خج ټيکاو موندنه او دويمه ګډه

ځانګړتيا يې د پښوييزو پايلو (صرفي او نحوي خاتمو) راخپلونه ده.

په دې لړ، په تېره ترښتي رغاونه کې له نورو آرونو سره سره که پر روستي رغنده توک پياوړي خج را نه شي، يو پوخ ترنګ پر يوه سست ترنګ اړوي، لکه: کره کتنه، مخکتنه، سرليک، سرليکنه... او ياهم کورټ پر يوه غونډله اوړي، لکه: پرېکړه (قطعه، فيصله) او پرې کړه! (قطعه يې کړه) او داسې نورې ډېرې نوې او زړې ترښتي بېلګې درواخله؛ هسې خو خج په ټوله کې د پښتو له ارزښتمنو (رېلپوانتو) نازنځيري فونيمونو څخه ګڼل کېږي او بدلون يې مانيز او پښوييز بدلون راولي..

(۳) په بېلښتي او ترښتي دواړو ډولوکې خپلواک (واوېل) زيا تره غورځي، لکه: ټولنيز، نه ټولنه يز-ييز، ژوبڼ، نه ژوى بڼ، همداسې برخليک، برخوال، پانګوال، ځمکوال، پو هنځى، پړهنتون... يوازې په هغو رغاونوکې نه غورځي چې مانيز ټکر رامنځته کوي، لکه ((سوله ييز))، که ((سوليز)) شي، له سول (عقل) سره تړاو مومي، ډله- ډليز هم کوم ټکر نه پېښوي او ((سيمه ييز)) هم که ((سيمييز)) شي، له ((سيم)) سره يې بېلتون راتلاى شي، لکه څنګه چې يو نيم ليکوال همدا سې رادود کړى دى.

هرگوره، د دې مخبېلگې هم په (و)گړنۍ پښتو کې کمې نه دي چې د دوارو غورو رغاونيزو ډولونو مخني توکي واوبلې پايلې غورځول کېږي، لکه په ښځوک او ښځگله کې.

→ پرتلوييونه (انالوجېزمونه) او → ماناونجيزونه (سېمانتېزمونه) او داسې نور د نيولوجېزمونو په څېرمه، يا بشپړاندو ډولونو کې راځي چې پر خپل خپل وار ترڅېړنې لاندې نيول کېږي. (همدا راز→۱- څپرکی، بيا وييرغاونه)

په نوې رغاونه(نيولوجېزم) کې د پورتنيو آرونو (اصولو) په رڼاکې دا لاندې څېرمه سپارښتنې هم اړينې دي:

۱) تر وسې وسې په کار ده، په نوې وييرغاونه کې له ← همماني‌زوالي، ← ډېر ماني‌زوالي، ← همجوليزوالي او داسې نورو ورته ښکا رندو څخه وار له مخه ډډه وشي چې مانيز او جوليز ټکرونه (التباسونه) را زېږوي.

۲) تر کېدونه، نوې رغولي (ترښتي يا بېلښتي) ويي تر پرديو انډ رلونو څخه که لنډ نه وي، اوږده نه خو اوسي. همدا راز لکه چې يادونه وشوه، له رواني، اسانۍ، خوږ غږيۍ، ادبي، ټولنيز، فرهنگي او گروهيزپلوه د منني وړ اوسي، که نه د دودونې وړتيا او چټکتيا يې خرخشنولای او اغېزمنولای شي..

په دې تړاو يوه ټېپيکه بېلگه د (زلزله) لپاره پق (ځمکرپږدله) ترنگ راخپستی او موږ رومبی (رېږدله) بېلنگ ته رالنډ کړ او راروسته مو وليدل چې بيا هم يادې شوې ځانگړتياوې يې پوره نه بربېښي، نو (رېږده) مو غوره وگڼله؛ (رو ښانفکر> روڼ اندی> روښان اندی> روښاندی> روښاند)، بربېښناليک مو بر بېښليک ته رالنډ کړ او د لرو ليکوالو پر پليونۍ مو پرا نېستنه (پرانېسته) کړه او (ليدنه کتنه) مو پر (ليده کاته) را واړوله او داسې پسې نورې بېلگې هم درواخله.

کله چې ايرانيانو sunamy (د ريالرزه) کړ، موږ هم په اسانه دوه انډوله (اوبرېږده) او (سمندررېږده) وروټاکل. گوندې دا يا هغه د ځمکېږاندانو يا رېږدپوهانو او نورو مينه والو له خور منځ سره سمون ولرلای شي.

په (و) گړنۍ پښتوکې د لنډون، اسانۍ ترځنگ د خوږغږۍ او بدلگۍ توپير هم له پامه نه دی غورځېدلی او له پارسي متل (هر سخن جايی و هر نکته مکانی دارد) سره سم يې ببلا ببل ټولنيز اړخونه او نزاکتونه پکې سمبال کړي دي، د ساري په ډول، د (زنچه) يا هغه نارينه لپاره چې ښځينه خوی بوی او کړه وړه لري، درې همماني‌زونه رامنځته کړي چې کوم يې چېرې او چا لپاره وکارول شي، لکه: ښځوکی، ښځنوک، جنوتاری او جنو ټاری!

۳) تر وسې وسې، ترنګونه او ببلنګونه له داسې پایلې سره راشي چې ستا ینومیز او نور روستاړي ورپورې په اسانه ونښلول شي، لکه: وګړی - وګړنی (یا وګړنیز)، پوهنه - پوهنیز، رغښت - رغښتیي (رغښتیز، رغښتواله - رغښتوال، مخرغښتواله - مخرغښتوال، پسرغښتواله-پسرغښتوال، پوهنتون - پوهنتوني، پانګه - پانګوال (پانګواله، پانګوالي، پانګواک - پانګواکي)، ویېپانګه - ویېپانګیز...د (ختیځ - ختیز او لویدیځ - لویدیز) پر ببلګه بیا چې د کابل پوهنتون په ادبیاتو پوهنځي کې پرې ۳۰-۴۰ کاله پخوا سلا شوې، (پوهنځی- پوهنیز) نه شو کولای او داسې نورکړنیز روستاړي (ول-بدل) بیا نومکړونه او نومکړ ببلنګونه را منځته کوي.

۴) د یوې ژبې ببلنګونه، په تېره ترنګونه، که د ← ویي رغښت په بهیر کې له اړتیا سره سم د عادي ویونکیو له خوا، لکه ← یووستوي ویېونه، په نابېره یا ناګاهانه او یا د لیکوالو له خوا په اګاهانه ډول رامنځته شوي او کېږي، له آره د غونډونو (عبارتونو) او غونډلو (جملو) جولیز (لفظي) لنډیزونه دي او د جاج و مانا له پلوه د ژبنۍ ببخبنا په توګه، هرومرو کوم ادلون بدلون نه را منځته کوي. د ساري په ډول: (غرنی) له (د غره) څخه آره اخېستې او (کتمل) له( د کتې مل)

ځخه همدارنګه د (مېړتون) غوندي ترنګ کېداى شي له (د مېړيو تون) غونډ او يا هم له ((هغه ځاى چې مېړي اوسي)) غونډلې ځخه سر چينه اخيستې وي.

په دغه لړ کې ((کورنۍ)) له هغو بېلنګونو ځخه ګڼل کېږي چې له (-نۍ) روستاړي سره يې د يوه رغېدلي ببلنګ په توګه ګړ سره ستاينوم نه، بلکې يو ځيز نوم (فاميل) رامنځته کړې دى، پر وړاندې يې (کورنۍ) بيا د پخواني غونډ (د کور) مانا ښه ترا خوندي ساتلې ده -غلنۍ د يو ځاينوم په توګه هم همداسې دروا خله؛ لوښنومونه (ايرنۍ، خوړنۍ، تودنۍ...) خو زياتره په ورته روستاړي له کړستو او نومستو ځخه رغښت مومي.

نور ببلا ببل ځانګړي رغاونيز آرونه او دويونه او دويې (اصول وقواعد) په اړوندو څپرکو کې پر خپل خپل وار وړا ندې کېږي.

# ۵ - څپرکی

## بېلنگونه (اشتقاقات)

## Derivations or Derivatives

بېلښتي يا اشتقاقي (derivative) وييرغاونه پر دغو لاندېنيو آرونو او د ويو (اصولو او قواعدو) تېيکاو لري :

(۱) لکه څنگه چې پاس وويل شول، د ترڼگ غوندې بېلنگ هم په (و) گړنۍ ژبه کې د تياري شتې مخبېلگې پر بنسټ او بيا پرتلې له مخې له يوه خپلو اک ويي سره د مختاړي او روستاړي په نښلونه رامنځته کېږي ، لکه پوهنتون د مېږتون پر بنسټ، له پوهنه (پوهن-) + تون، مېلمستون د مړيستون (مړ ستون) پربنسټ له مړي (مړ-) + ستون څخه؛ تشيال (فضا ،

خلا) د چاپېريال يا شكونيال (د شكنو غار) له مخې او دا سې نور.
(۲) په وييرغاونه، په تېره بېلښتي هغه کې د منځتاړي پرځای يونيم خپلواکمنځونج (Ablaut) برخه اخلي، لکه له (خور ‎-xor√) کړ ريښې په رغېدلي کړنوم (خور xwar) کې د ريښې (خور-xor ) ، اوږد-و (‎-o-) پر (‎-wa-)...(همدا راز: کړ بېلنگونه، او ۱- پړوکی د اولريښن سيندگی ۹ ).او پر چار نوم او لوښنوم اوښتي ، لکه په (خورک .xwar-ák)، (خور- که xwar-a-ka) ...کې. ← دويم پړوکی.
(۳) لکه چې پاس وويل شول، په روستاړي والا بېلنگ کې د اړوند ازاد گړ(ويي) واوبلي پايله زياتره غورځي، لکه په مېږی - مېږتون، ژبه - ژبور...کې؛ د پای- بېواک (کانسوننټ) غورځن بېلگې يوازې په زړو بېلنگونو کې مخې ته راځي، لکه: سترگه - سترغلی، د خپلواک او بېواک دواړو (-گه) په غورځن سره؛ چر(گ) بانگ، چر(گ) خول يا تربندار، وربندار، ترله...، ترور (آرپوهيز سيندگی).
(۴) په نوې يا خپللاسي رغاونه (نيولوجېزم) کې د ورانپوها وي د مخنيوي په موخه له ورته کړن (لنډيز) څخه تر ډېره ډډه کېږي او پرېښوول کېږي، يومهال په ناخبري ډول پخپله لنډ

يز ومومي، لکه: چرخول، چربانګ، نه څارنتون (بيطار خانه) د (څارويتون) پرځای!

داسې بېلښتي (اشتقاقي) بېلګې هم شته ناڅه پيدا کېږي چې له آره ترنګونه ولي اوسي، لکه: غوبل، کوربل، سربل، وستربل، دربېل، څلوربول يا څلوربولې، ګهيځ، ختيځ، لوېديځ، وريځ، دريځ... (مينځ) چې نن سبا يې (-ي-) هم غورځېدلې، له آره (ميان + ځای) وو او پښتې خزانې هم د (ميانځ) په بڼه راخوندي کړې دی؛ نورې بېلګې، لکه: تربور(تره+بور)، ترله (تره +لور)، سپوږمۍ(سپينه+وږمۍ) ، تروږمۍ(توره+وږمۍ)، وبله(يو+له+بله)... ؛ بلمنګه(بې+ مالګې) بيا په داسې رغاونو يا وييو کې راځي چې پخوابېلښتي او اوس ← يوو ستوي وييونه بلل کېږي..

داچې مو وويل، يو بېلښتي ويی له يوه خپلواک ګړ(ويي) سره د يوه ← مختاړي يا روستاړي او يا هم لږوډېر د ← ترخپلواک او پښوييزې(صرفي يا نحوي) پايلې په ملتيا رامنځته کېږي، خو داسې مختاړي هم شته چې د ازادو ګړو په توګه ← ترښتي وييونه هم رامنځته کوي، لکه: پرې(غوڅ، قطع) او پورې(اغاړه، پورې کړی-شوی...)... چې اړونده رغاونې يې ترنګونه(ترکيبونه) ګڼل کېږي، لکه پرېکړی(غوڅ کړی) ، او( پر

ہوتی، پرہښی...) او (پورہو تی، پورہوهلی...)
بیاببلنگونه(اشتقاقونه).
همدارازدې په← (۱- څپرکي) کې اړوندې نومونې او په←
(۶- څپرکي) کې(کړببلنگونه او نومببلنگونه) هم وکتل شي.
(۵) له ټولیزې دویې (قاعدې) سره سم ډېری ببواکپای ستاینو
میز ببلنگونه د روانۍ اوخوږ غږۍ لپاره لږو ډېر (زور- پایله)
را خپلوي، لکه: ببکوره، بې ډبه، بې سره، ناروغه، ناجوړه،
نارامه، بدنامه،بې ننگه، بې پته، ببخونده،بې غو ره، بې
پامه، غړنده،گرځنده، خوځنده، کارنده، پاینده... خو که نو
موال دریغ راخپلوي او له ښځینه پایلې سره یې ټکر راځي،
نو بیا له خوږ غږۍ نه ډډه کېږي، لکه ناروغ په نوموال چار
(نقش) کې؛ (خوځنده) هم که پر نوم (خز نده) واوړي، یا هم پر
خپل اکر پاتېږي.
(۲) د اړوندچورلیز (محوري) توک (ویي) خج د ببلنگ د (پیا
وړي) خج په توگه سست پاتېږي، لکه راخلې په ببکوره، نا
جوړه....
(۷) لکه په ټولیزو آرونو او آړونو کې چې نغوته وشوه، د
ترښتي رغنده ټوکو په څېر، د یوه ببلښتي ویي یا ببلنگ
سته ویی او تاړی دواړه هم باید نږه اوسي، لکه (ببلیکه) د
(ببسواده) پر وړاندې؛ (مصرعیز- مسره ییز)، د دولت لودین

((لغت پوهنه - وييپوهنه)) او تازه بېلګه يې (وېپپانه-
ووبپانه) او داسې نورې.
د دې لپاره چې پښتو بېلنګونه (اشتقاقونه) مو ښه ترا ښه څرګند شي
وي، پر راتلونکو دوه بېلا بېلو څپرکو يې ويشو:
کړ بېلنګونه او نومبېلنګونه.

# ۲- څپرکی

## کړ بېلنگونه یا بېلښتي کړنومونه (فعلي اشتقاقونه)

## Verbal derivations

الف- د کړ (فعل) ډولونه

دلته تر هر څه له مخه اړينه برېښي، له ويپيرغاونيز پلوه کړونه ← ريښې، ستېې او رغښتي تاړو (افېکسونو) پر بنسټ د گر داني اړخونو (وجهو) له مخې- ډلبندي کړو.

هرگوره، د تېرمهال- ناتېرمهال، لېږند- نالېږند (لازمي- متعدي) او چاروال- بېچار (معلوم - مجهول) د اړوندو بېلنگونو (کړنومونو) څخه د ستېو (-ېد -ed/-و-aw-) له مخې له ورايه

راځو ګند ېږي ← منځخپلواکونج ،← تړخپلواک خو کړ اوړ

ون او کړ بېلنګ دواړه رانغاړي . مانا او پښويېز چار هم د هر بېلنګ له رغندو توکو څخه راجوتېدای شي.
په دې توګه درې ډوله کړونه (نه مصدرونه!) پر پېنځو غورو ډولو وېشل کېږي :
(۱) يووستوی کړونه (ساده افعال)، (۲) بېلښتي کړونه (اشتقاقي افعال)، (۳) تړښتي (ترکيبي)، (۴) نومکړونه او (۵) غونډېز کړونه (عبارتي افعال).
يووم : يووستوي کړونه (simple verbs)
يو يووستوی کړ (ساده فعل) هغه دی چې بنسټ يې له يو ګړيزې (يو مورفيمي) ولې يا ريښې څخه جوړوي او اوړوني (تصريفي) مختاړی او روستاړی ورپورې سيده يا د تړ خپلوا

ک په مټ ← نښلي، لکه لېږند ناتېرمهال: (خور-) په (خورم - خورو ، خورې - خورئ، خوري)، يا تېرمهال: (وخوړ- وخوړل، وخوړه ) او يا هم نالېږند ناتېرمهال: (خوځ-) په، (خوځم - خو

ځو- وخوړې ، خوځې- خوځئ، خوځي) او تېرمهال (وخوځېدم - وخوځېدو ، وخوځېدې- وخوځېدئ، وخوځېد- وخوځېدل، وخوځېده - وخوځېدې)؛ د زړو (ارکاییکو) بېلبنتي کړونو (پا ځول ، اچول...) په ولی ، په بله وینا ، سته کې، کټ مټ لکه (اوسني) بېلبنتي هغه، اوړوني منځتاړي هم راخپلوي، لکه: پا- نه- ځولم،پا- نه- ځېدم ، پا-به- ځېږم، پا - به – نه - ځېږم ... ؛ سوېل لوېدیځ خوا ته له دغه منځتاړي دومره کار نه اخېستل کېږي ، د ساري په ډول (ونه پاځولم.وبه نه پاځېږم ...) وايي.

دویم: بېلبنتي کړونه (derivative verbs)

یو بېلبنتي یا اشتقاقي کړ دا دی چې سته یا بنسټ یې له یوګړیزې ولی او کوم تاړي (افیکس ) څخه جوړوي، داسې چې د کړ ولی جاج ( مفهوم) او پښوییز چار د یوه مختاړي په ملتیا بشپړېږي، تاکل کېږي او یا توپیرېږي. دغسې یو تاړی چې د کړ رغاونې په تړاو (مخکړ preverb هم بلل کېږي)، د چارو مانا له مخې د کړ ولی، نه بېلبدونکی توک ګڼل کېږي او که له کړ ولی یا ستې لرې کړ شي، تا کلی جاج او پښوییز چار یې اوړي او یا یې کورټ له لاسه ورکوي. په دې توګه بېلبنتي کړونه د بېلا بېلو مختاړو له مخې دا لاندې څېرمه ډولونه را نغاړي:

۱) له (كښې-) سره چې د يوه كړ چار له (پورته) مخكښته او د يوې نيمې كړستې په ملتيا له زور (فشار) سره راڅرګندوي، لكه په: (كښېناستل - كښېنول)، كښېوتل كښېستل، كښېښو ول، كښېكښل، كښېمنډل، كښېختل (شرمېدل، سپكېدل) كې. د دغه مخكړ اروپايي انډول زياتره (بېلېدونكى) سربل يا كړول راڅي او په دې توګه ساده كړ پرغونډيز كړ (sall verb phra) اړوي، لكه د (كښېناستل) انګرېزي انډول (sit down) يا الماني (niedersetzen)...؛ په پارسي نشستن-نشاندن) كې (ن-ne) نه بېلېدونكى (بېلښتي) مخكړ دى؛ په پښتو (نغرل، نمانځل، نغوتل، نجتل ...)كې ښايي (ن-) پار سي ورته اركاييک مخكړ يا يې پاتشونى اوسي!

۲) له (پرې-) سره چې د (كښې) يوازې دويمه ځانګړتيا (فشار) راښيي او دويم توپير يې ورسره دا دى چې كه له يوې نيمې كړستې وغورځول شي، چارو مانا يې دومره نه اغېزمنېږي. لكه په: (پرېمينځل- مينځل، پرېبولل-وللل) كې، چې پر وړاندې يې په (پرېښوول - ښوول) يا (پرېښوول - اېښوول)، (پرېوتل- و تل)، (پرېكول - كول)، پرېستل (پرېوستل) - ابستل) - ، (پرېبل - بل) كې چارو مانا دواړه بدلون مومي؛ هرګوره، له (پرې) سره يې د يوه ازاد ګړ او بيا ستاينوم (غوځ، قطع) په توګه ګډول په كارنه دي.

۳، له (پرله-) سره چې په دې روستيوکې يې د پرلپسې په بېلګه، د مانيز يووالي پر بنسټ له اړوند نوم سره يوځای کښل دودول بېځايه نه برېښي، اړوند بېلښتي کړونه يې، لکه: پرله غښتل (منسجمول)، پرله اوښتل (سرپرځنې کېدل؛ معکوسول)، پرله وهل (غښتلی کول)، پرله پېيل (تنظيمول)، او ترې رغېدلې بېلښتي ستاينومونه يا کړولونه له جلا او يو ځای کړو ليکدودونو سره، په دې ډول دي: پرله غښتی- پر لغښتی، پر له وهلی- پرلوهلی (غښتلی؛ پلونړ)، پرله پېيلی- پرلپېيلی (منظم؛ پيګير، پيهم) چې د ليکوال ګړدو دي څېل (پله بله) يې ګړسره کره نه برېښي؛ (پرله او ښتی) بيا ګډ ليکل مانا خرخشنوي.

۴) له (ترله-) مختاړي سره (پق) تش(-وتل) کړ رانبوولی ، او هغه هم له همدې يوې نالېږندې (لازمی) بېلګې (ترله وتل) له (عصبانی شدن، به قهر و غضب شدن؛ بهم آمدن؛ برای مهمان خرج زياد کردن) مانازو سره.

۵) له دروګونوپلوي وييکو او پلوي نومځرو يا سمتي (ضمير ونو (را-در-ور) سره: د دروګونو وګړو (متکلم - مخاطب - غا يب) د پلوي وييکو (سمتي اداتو) په توګه، لکه په : را- در- ور (پا ځول - پاځېدل)... کې چې که له کړونو وغو رځول شي، دومره څرنګيز (کيفي) توپير نه پېښوي؛خو د پلوي وييکنو

مځرو (سمتي - اداتي ضميرو) له چار سره ، لکه په: راغلل- درغلل- ورغلل؛ راتلل، درتلل، ورتلل؛ را کول- درکول- ور کول...کې له غورځن سره، مانا او پښوييز چار ګړ سره اوړي.

را-) په (رانيول)← څرګندنه کې په استثنايي توګه، تش

(نيول) د (اخيستل، پېرل) اندولوي او په همدې يوه نه بېلېد ونکې بڼه د درو وارو وګړو لپاره کارول کېږي، لکه:
په تېرمهال کې چې له ټوليزارګاتيف سېستم سره سم، کړ د کړي (مفعول) اړوند ېږي: ما- مور، تا- تاسې،ده (دې)- دوی کړ (کور رانيو ،(کورونه رانيول)، (خولۍ رانيوه - رانيوې)...؛ په وسمهال کې: (رانيسم- رانيسو ، رانيسې- رانيسئ، را نيسي او داسې نور.

## دريېم: ترښتي کړونه (ترکيبي افعال )

يو (پوخ) ترښتي کړ هغه دی چې له يوه يووستوي کړ سره يو

← ازاد ګړ (ويې) مختاړی شوی، په نورو ټکو ، ملګری شوی

وي. لکه واخلې: (پورې-) په (پورېوتل، پورېستل، پورې و

سرته رسېدل - رسول، لاس ترلاسه نیول، لاسته راوړل، ترل اسه کول، پربښي یا کېښ لاس تلل، ترګوتو کول، ګوتې سره ماتول، سره غاړې وتل، له لاده باده غورځېدل- غورځول، او به په ډانګ بېلول، ډانګ پېیلي ویل، پر یو- دوه نه پوهېدل، په نه سترګو موندل، پاتې راتلل، ښنګه ګتل - هسې څتل، له ځان سره کرل وربېل)، له خولې سپېن نه ختل،له چاسره سترګې جنګول یا مخامخول...

له مرستیالکړونو سره د ← نومکړونو غونډېز ډولونه، لکه: ترسره کول - بدل ، بښځه کول،واده یاکوژده کول، مړی کول، مړی (او) ژوندی کول، سر پر څنې کېدل - کول، غاړه تازه کېدل - کول، خاورې پر سر با دېدل - بادول، له خا ورو سره خاورې کېدل- کول،له مرګه کېدل - کول یا پاتې کېدل-کول، زمری یا همدا راز زمری زمری کېدل،ځان زمری زمری کول، نبغ نبغ کېدل، ځان نبغ نبغ کول،پردی پردی ښکارېدل (حمزه دړ واخله، سړی کېدل - کول، له چا سره کورکلی کېدل-کول، لور په لوته تېره کول( پلمه کول) او نور (د زیات پوهاوي او بېلګو لپاره: ۲-پښویه، خوا پرخوا یا سست تړښتي کړ ۱۹۴؛ همدا راز ← جوتغونډونه).

ب - کړ نو مونه او کړ نو مستي

کړوال بېلنګونه یا کړ بېلنګونه چې په نوي ژبپو هنه کې کړ نوم (فعلي اسم verbal noun) بلل کېږي او په ډو ډیزه نومونه کې هماغو يو څو ته چې له (مصدر) سره همانيز برېښي، (حاصل مصدرونه) وايي، لکه (پق) چې د (خوړل)، ترځنګ (خوړنه، خوړنګ، خوړونه، خوړانه، خوړونګ،خورونګ)، (خوړ بدنه) همداسې نومولي؛ خوړونکی (صفت فاعلی)، خوړلی (صفت مفعولی)، خور ند، خورندی .. صفتونه او داسې نور يو کړ بېلنګ له يوې کړ ستې يا ريښې سره د روستاړي په نښلونه رامنځته کېږي؛ هرګوره، ورپسې د ← نومکړ (- dc nominative)، لکه (لويول- بدل، اوبول - بدل) اړوند ← (نومکړ) بېلنګونه د همدې پړوکي يوه څېرمه برخه رغوي همدا راز ←۱-څېرکې: کړبېلنګ.

د پښتو کړنومونو بېلښتي ډولونه چې په بېلګه يي ډول يې د (خوړ- ) ريښې او ستې يې راپيلوو، او د نوروکړ ستو هماغه بېلګې راچانوو چې په دغه بېلګه يي کړ ريښه يا سته کې يې څرک نه لګي، په اړوندو لښتيليکونو (جدولونو) کې، هرګوره، د يو ګڼ شمېر کړستو بېلګې له پارسي ژباړې سره وړاندې کېږي.

،خوړ - ، رېښه له آره د برسېرن جوړښت له مخې خور- xor ، ده او ژباټره د د وېمې یا تېرمهالې ستې په توګه کارول کېږي او ممدا راز د ،ویل - ویول، تر څنګ يې لېږند چار یا توسنکړ ،کوزا تيفه، ګرداني بنه ،خوړول، ،۳- پښتویه ۱۲۱-۲۲، په همدې خېل ژبات دود لري په خواکې يې ← خپلواکمنځونج ،Ahlaut، والا خهل ،-xwar، یا ،xwar، هم لږو ډېر مخې ته راځي.

دغه ګړ اواز پوهېزه ،مور فو - فونیمیکي، پښنه، لکه چې په لومړي څپرکي کې يې رڼاوي وشو، ګرده پښتو ګړپوهه او و پیرغاونه ترخپلې ولکې لاندې راولي، لکه په ،پښتون -پښتا نه، پښتنه- پښتنې، پښتنو، کې نوم اوړون لښتیلیکونه ( هما غه اثر ۱۰۱-۱۱۲).

د ،خوړ-، اړوندې بېلګې په لاندې ډول دي:

۱، خوړ+ل - خوړل، چې موږ يې ( ناپای infinitive، او ،کړنو ی، بولو، د کړ نو نونو په سرسرکې راځي ،او له کړ رېښې سره د ،-ل، روستاړي په نښلونه، هغه هم د تر خپلواک - زور

کي ،-the -⍰- matic vowel، په منځګړیتوب ،xwar-⍰-l-⍰

رغاونه مومي په هر ډول (مصدر) نومول یې همدومره بې
سروبوله دي، لکه غږ او وییکي (حرف) بلل!
نورکړ نومونه، لکه:
۲) خوړ + ن - خوړن؛ خوړ + نګ = خوړنګ (-ګ، له تاریخي-
غږ پوهیز پلوه یو ډېرن یا اړېشن بلل کېږي)، خو دا چې، یو
خوا په سوېل لویدیزه ګړودي ډله کې دود لري او بلخوا د
وییپانګې پراختیا او لیکنۍ یا سبکي رنګارنګي هم پکې
نغښتې ده، نو تولیزول یې اړین برېښي.
د پخواني پښتو بې بې سي ویا ند (ګوهر) دغه څیز نومیز
(اسمي) پښتو بېلنګ له انګرېزي وسمهالکړ ستاینوم (صفت
فاعلي) یا (gerund) لکه (living, doing, making... ) سره
انډولاوه، له دې ناخبره چې د جولې او رغښت له پلوه، ښایي
ورسره اړخ ولګوي، خو د چارومانا له پلوه، له درو اړخو څخه
یو دا سمون در لودای شي.
پښتو -نګ ang- بېلنګ له کړ نومیز چار (فنکشن) سره یو
مجرد نوم رغوي، لکه: په انګرېزي (ملت رغاونه - nation
building) غونډ (عبارت) کې؛ خو دغه انګرېزي انډول یې پر
همدې چارومانا سربېره، دوه نور دا هم لري: د یوه
وسمهالکړ ستاینوم یا فاعلي صفت ( present participle or
gerund په توګه، لکه په (زه ودانوونکی یم یا ودانوم I'm )

building او هم د څيزنوم يا اسم ذات (substative) په توګه، لکه په (دا يوه وداني ده It's a building)کې.

په هرډول، انګرېزي ing- او همدا راز الماني ung- والا کړ بېلنګونه له دوه درو چارو ماناوو، يوازې يوه دا له پښتو (- انګ) والا بېلنګو سره همغږې يا انډولتيا لري او بس.

۳) خوړ + نه = خوړنه (خورش ، خوراک).

۴) خوړ+ انه = خوړانه، ډېر خوراک (پرخوری)

۵) خوړ + ون = خوړون (خورش، خوراک).

۶) خوړ + ونی = خوړونی. چې لږ ډېر د (-ونکي) هغه غونډې وسمهالکړ ستاينوم (فاعلي صفت) اوچارنوم جوړوي، خو زيا تره د ناوګړي (غير شخص) لپاره کارول کېږي،لکه : خوړونی سپی(= خروړی).

۷) خوړ+ ونکی = خوړونکی چې چاروال ناتېر مهال کړستا ينوم (فاعلي صفت).بلل کېږي او لکه ښوونکی، پالونکی، ليکونکی، څېړونکی سره پر تړښتي ← چار نومونوا ړي.

۸) خوړ+ لی= خوړلی (خورده، خورده شده) چې بېچارتېرمها لکړستا ينوم (مفعولي صفت) بلل کېږي او د لنډ تېرمهال (ما ضی قريب) او لرتېرمهال (ماضی بعيد)،اوهمدا راز په تېرو نا تېرمهالي بېچارکړاوړون کې له مرستيالکړونو (کېدل-استل)

خوړل سره برخه اخلي، لکه: ما ناک خوړلی دی - خوړلی وو؛ خوړل (-ی) شوی یا کېږي (۳- پښتویه ۱۲۴-۱۹۷).

۹) خوړ + ښت = خوړښت (خورښت!) چې د خوړن او خوړنګ د همانیز په توګه شمال ختیځ خواته لږو ډېر دود لري؛ (-ښت) له نومونو او ستاینومونو څخه ورته نانګېر (مجرد) نومونه رغوي ← (نومبېلنګونه).

۱۰) خوړ+ ه = خوړه، هغه ډوډۍ چې په غم و ښادۍ کې ورړ اندې کېږي، او هم هغه خوراکتوکي چې د واده د خوړې لپاره د هلک له کورنۍ اخېستل کېږي؛ کرلاني يې (شومه) او ځيني نور يې بيا (ناری)....بولي.

۱۱) خوړ + ين= خوړين (شاريده)، هغه خوراک يا مېوه چې ډېره پخه شوې وي، او په اړولې (ګړنيزه) مانا له (زخم، زړه...) سره هم راځي.

همدا راز (خوړګه xú ṛ-ga) چې پق یې یوه مانا (کالای

فرسوده) کښلې، د (خوړ-) ستې بېلنګ برېښي.
له وسمهال (حال) ريښې ((خور-)) سره:

۱۲) خور xwar-Ablaut + xor خور(آش) چې خرمنې ته ورکول کېږي.

۱۳) خور+ ند (٥)- خورند (٥)، د کړ روستاړي - ونکي، -اند، - ندي يا -ي والا بېلنگو له ورته ښنديز جاج سره.

۱۴) خور + ندی = خورندی (نه يې پخپله خوري، نه يې خور ندي ته ورکوي)؛ دويمه (اړولې) مانا يې هم (د مېوې په تړاو نوی رسېدلی بڼ)

۱۵) خور+ ندوی = خورندوی، په پورتنۍ مانا..

۱۶) خور+ اک = خوراک (غذا ، meal)، هغه څه چې وگړي يې (پر خپل خپل وخت) خوري...

۱۷) خور + اند = خوراند ، ډېرخورنده چې د عربي (صفت مبالغه) جاج ښندي

چې د چارنوم (بډيخور) په توگه هم دود لري؛ بل انډول يې (خوړه مار) دی، که څه هم،(- مار) له آره د نوم بېلنگ په روستاړو کې راځي. د خوراند پخوانی بېچار (پاسيف) ځېلونه، لکه: ځلاند، ژړاند، بربښاند...؛ نوې چاروالې او بېچارې بېلگې، لکه:وياند، بلاند...؛ تاند، لالهاند يې هم ارکاييزمونه اټکلېدای شي.

۱۸) خور+ اوی- خوراوی، لکه عربي (تناول) هغه خوراک چې ډېر او ډليز خوړل کېږي.

۱۹) خور+که = خورکه (xwar-á-ka) د (کاسه ګی، کنډولګی) په مانا یو (لو ښنوم یا اسم آله) چې هم یې په ستنه کې ← خپلواکونج راغلی او هم د دغې ستنې او روستاړي ترمنځ ←

تړ خپلواک (-a-) راغلی، چې په ورته روستاړي رغېدلي نوم

(مښوکه) کې بیا لنډ -و (-ú-) د تړخپلواک دنده پرځای کړې ده.

په ← خوراک (یایې همانیز) خورک، خورکي (خوردنی)، خور من (اشتها)، خور منځ (مزاج، سلیقه)، خورنده، خورندی... کې هم دوه غبرګ بدلونونه لیدای شو.

۲۰) خور+ اړه = خوراړه (جذام)؛ بل همانیز خوړونکې (جذام) یې، لکه راتلونکې (آینده) ښځینه بېلګه ده چې له بده مرغه رسنوالواو ویاندانو نرینه (راتلونکی) کړی، له دې ناخبره چې په پښتو کې یوازې ښځینه ستاینومونه د نوم کېدنګ (sub stantivisation) وړتیا درلودای، یا په نورو ټکو، پر (ځیز) نومونو اوښتای شي.

۲۱) خور+ و = خورول چې پق د (خوړول) تر ځنګ د پارسي صناعي مصدر (خوراندن) د انډول په توګه راخوندي کړی،

خو د شمال ختيز (خورول) پرخای يې د سوېل لويديز او منځني ځېل څلور بېلنگونه (خوړونه، خوړونگ، خوړونکی، خوړولی) راخپستي دي! ← (۳- پښتويه، توسنکړنوم ۱۲۱-۱۲۲).

۲۲) خور+ ی - خوری (xwar-áy) د ← خورنداو خوراند په مانا، لکه چې وايي: دا غويی ډېر (خوری) يا (خوراکي) دی.

۲۳) خَر(و) + کی - خروکی (نوې رسېدلې مېوه)، په ليندیو کې نيولی (و) د ريښې (خور-) د منځونج پايله برېښي.

۲۴) خر(و) +مه- خرومه (xromá)، لکه پاس له ورته غږونج سره (رزق، آزوقه) مانا لري چې پق يې (زرمنه) همانيز هم راخوندي کړی دی.

۲۵) خور+ نه - خورنه xwar-ə́-ṇa (گوشت خوره

۲۶) خوراړه (جذام).

۲۷) خروکی (شخوند).

دا دی، په بېلگه يي (لبړند) کړ (خوړل) پسې نور داسې ژو ندي او نيمژواندي لبړندې او نالبړندې (متعدي او لازمي) او هم چاروالې او بېچارې (معلومې او مجهولې) کړ بېلگې هم

(ښکل، ښکلل) لا ژوندی کارېدنگ لري- ستر خوشال: کښلی (اېستلی) او کښلی ښایسته) سره همجوله (تجنیس) کړي هم دي؛ خو د (سپېڅلی هغه (سپېڅل) ښایي، په ارکاییزمونو کې راشي؛ د (ناولی) هغه (ولل) هم، لکه (غښتل) لا په گړویزونو کې شمېرل کېږي ← لیکلړ.

(۴) د← نوم بېلنگونو (گرېوان، تېران، اتېران، ډېران، پېز وان...) ورته یو کړ بېلنگ سم له لاسه، رېږدان (لرزه) پق راخوندي کړی دی. په دې لړکې استاد رښتین (گرېوان) له (-وان) والا بېلنگو څخه انگېرلی، خو د (پېزوان) بېلگه ترې زیاته باوري برېښي.

(۵) له ارکاییک کړوال او نوموال روستاړي (-ځ) سره، دواړې ډوله بېلگې یې، لکه: اوریځ، ترخځ، میځ، ختیځ او لویدیځ، دریځ، زېلانځ (زهدان) چې اوس یې له مخې اخځ (ماخذ)، ولنځ، پخلنځ، لوبیځ، چورلیځ) او نور جوړشوي دي. د ځاینو مونو تر څنگ مهالنومیزه زړ: بېلگه یې سم له لاسه (گهیځ) نو مېرل شوې ده. رېبځ یا ربځ (جارو) بیا لوښنومیزه بېلگه چې ماناونجی (سېما نتېزم) یې (برس، برش) هم رادود شوی دی ښځینه بېلگې (ښځه، غولانځ) هم د ورته لړۍ بېلگې اټکلولای شو.

(۶) د ← خوړوني پر بېلګه د (-وني په روستاړي له يو لړ نورو کړستو څخه د -ونکي غوندې کړندستاينوم (فاعلي صفت) جوړوي او همدا شان لوښنوم: رودنې يا رودونې د رودونکې او ګروونی د (خميرتراش) او چڼوونی يا چاڼوونی د (فيلتر) په مانا دړواخله چې چاڼځی (الايشګاه، تصفيه خانه) ترڼګ يې هم رغول شوی دی.

(۷) په (-نا) روستاړي والا کړ نوميزې بېلښتي بېلګې، لکه له (ابش-) څخه ايشنا، له (وي-) څخه وينا او له (بربښ-) څخه بر ښنا چې ښايي نورې به هم وموندل شي.

(۸) د ← (خوړون) پر بېلګه، لکه ژوندون له (ژو-) ستې څخه؛ نورې زړې او نوې بېلګې: تړون، بلون، وژون...؛ وژلون بيا له نومکړ بېلنګو (خرځلون، اخلون، غبرګلون...) سره همغږې ښيي.

(۹) د ← (خوراک) پر بېلګه په ورته روستاړي (-اک) له يو ګڼ شمېر نورو ژونديو اونيمژواندو، لکه: څښاک، ژواک، تپاک، پخساک، غلياک(شبخون)، تاړاک (چورو چپاول)...؛ نوي، لکه: څکاک(تدخين، تمباکو کشی)، ښکېلاک، زبېښاک، نيواک، بلوساک، وېشاک(تجزيه طلبی).

(۱۰) بهير هم له (به-) کړستې څخه له (-ير) روستاړي سره اتکلولای شو، که څه هم اړوند کړ (بهېدل) هندي آری دی؛ له

پارسي سره ورته بېلبنتي رغاونه (زهير)، له (زه-) د لنګوال په مانا، ودېر، له نومستې (ود-) (ځخه له ځه نا ځه ورته بېلنګ اړکلېږي چې اړوند نوم (وده) يې نړه پښتو دی؛ د وردګو وهير (وير) او وهېر (هېر) هم همداسې درواخله؛ ننبير (اثر، تاليف)، د لطيف بابي نويزی چې له (ننبه) ځخه يې په پرتليز (قياسي) ډول رارغولی دی.

(۱۱) د ← (خورين) پر بېلګه، خو د ستاينوم پرځای يو نيم بېلبنتي کړ ځيز نوم موندلای شو، لکه له (تل-) کړستې ځخه تلين (د مرينې کالورځ او اړوند دودو دستور) چې سوېل-لوېديز ځېل يې (تلينه) راځي ← نومبېلنګ ليکلړ.

(۱۲) د (- نا) روستاړي والا کړنومونو يا کړ بېلنګونو بېلګې لږې بريښي، لکه په ايشنا (وينا او برېښناکې چې ښايي نورې به هم وموندل شي؛ تنا (رعد) له (تنېدل) کړ ځخه ورته رغاونه برېښي چې د کړستې /ن/ د روستاړي /ن/ سره مدغم شوی وي، که نه، د (-ا) روستاړي په ډله کې راځي.

(۱۳) د (- اونه) روستاړي کړ بېلنګونو هم دومره نه دي پلټل شوي لکه: (رغاونه) چې تر (رغونه)، رغښت، رغاو، رغاوه...) پروړاندې لکه (ساختمان، عمران) د ډېرښت جاج رانغاړي؛ تيکاونه لکه تيکاو د برابرونې، برابری، ثبات په مانا له زړو

او کمپېښنو کړ (یا نومکړ) بېلنګو څخه شمېرلای شو ←
نومبېلنګ لیکلړ.
(۱۴) د ← خور + ند (ه) پر نوم اوښتې زړې بېلګې، لکه: لوېړند
(تیارخور، طفیلي)، ولېړنده یا لوېړنده (د کوشني د ککرۍ
پسته برخه، او شقیقه)، پوونده (مالدار، کوچی)..... ←
کړبېلنک لیکلړ.
(۱۵) د ← خوراوي (خوړاوي) په بېلګه، لکه: خپراوی،
سپړاوی (تفصیل، شرح و بسط)، رغاوی... ← اړوند
لیکلړ. (همداراز ← نومکړبېلنګونه).
(۱۲): د ← (خوری =پرخور) پر بېلګه، لکه: نوسی، له (نیس-)
یا له منځونج (نوس-) څخه؛ همدا راز: زوی او هممانیز (زی)،
له (زې-، زو-)، ژوی، له (ژو-)، ژوندی، له (ژو+اند-)، پېیوی،
له (پېي-) یا (پېیو-)، ویی، له (وي-) څخه د (لغت) او د احمد
شاه بابا په شعر(... دا ویی د تنعم دی-لااله الا الله) کې. ان د
(کلمۀ طیبه په مانا هم راغلی؛ نور ورته، کړ بېلنګونه لکه:
مَنَی (منونکی)، بهی (وبا)، رپی (بیرغ)، غربی (سګک)، او
بیا توغندی (را کټ) چې د ورته بېلنګونو یوه نوې رغول
شوې بېلګه ده او د چار له پلوه دربواره لوښنومونه (اسمای
آله) بولو؛ همداراز غورځی (توپ، تپی (رټه)، تا لنده)، په لو
مړی مانا ،لکه په (غورځي پرځي (جست وخیز، تپ

ومانګ،کوی، نګو ښی یا نګښی ،چنګک، لیکښه کامه، پر
ریو، دریو، بو ځی   همدا لړی جوړوي ← لیکلړ
۱۷، تانده او ژانهانده هم ښایي، همدا راز کړ نومونه ایسي چې
فعلي ژنی او ګردان به یې له مینځه تللی وي، پرمختیایي
بڼ یې لکه: د یو پر اخځ په غپاندي، غباندي، غپانده او
تپانده کې په نیمه ژواند-ه ترنګ کې هم د «اند» روستاړی
دی ځو له نومترنګ «روښان اندي» سره یې چې «روښ+ اند -
روښانه» ته راننه شوی، ګډول په کار نه دي
۱۸، د خوړند پر بیلګه راز راز نومونه، لکه ژوند، له «ژو-»،
خوړند له «خوړ-» یا «خړ-»، ویند له «وي-»... کړند له «کړ-» کړ
ستاینوه او د سونجویزي یا ماناونجي «سیمانتیزم» په توګه
فاعل، ... او داسې نور...
۱۹، کړسته ی - بیلا بیل نوم جوړونه لکه:
سهي «زغمناک، برده بار»، له «سه-» څخه، سهل «زغمل» سم
له لاسه بوارکیېزم اتکلیدای شي. یونیم بل ورته زدړ کم
بیښی بیلنګ هم چیری ومونډل شي
۲۰ کړسته ی = زیاتره ځیز نومونه. لکه څڅی «ناوه-تره»،
نړی، تپی: د «نړی» اړوند کړ «نړل» اتکلیدای شي، ژوندي
تیوبلونه یې «نړول-یدل» او «نوړل-...» او بل ژوندی بیلنګ
تړ: جوړ به ضد، د پیښیوړ خواته دود لري چې ستر خو

شال هم کارولی دی او پخپله (نړۍ) د ځاینوم په توګه د اکوړه خټک او اټک تر منځ يو کلی نوموي

(تنې) بيا په څه زيات باور له (تړ-) څخه رغېدلی، ځکه /ن/ او /ړ/ سره له آره بلغړونه (الوفونونه) دي، اوسنی بېلګې يې په (ښېګڼه- ښېګړه)، (پونې- پوړۍ) ... کې ليدای شو؛ همدا راز ټبرنوم (تنی) د (تنې) نرينه ځېل اټکلېدای شي.

(۲۱) د ← (خورند) پر بېلګه يو شمېر کړستې له (ند) روستاړي سره لکه (- و نکی) علمي-فرهنګي نوموني او چارمونه (نومن اېجنت) جوړوي، لکه: لېږند (متعدي)، کړند (فاعل، ښوونډ (د ښوونکي ترځنګ د (معلم، استاد) يو لنډ او اسان همانيز چې د لوړو زده کړو انډول يې (ښوواند) کېدای شي؛ پېژند (تعريف)؛ (ژوند) هم له آره له زړې کړستې (ژو-) څخه د همدې لړۍ يوه رغاونه ده چې يوه کمپېښې ګرداني بېلګه (ژوه!) يې د (زنده باد! په مانا (پق) راخوندي کړې ده.

(۲۲) د ← (خورندی) په بېلګه نوي او زاړه ګړ بېلنګونه، ژو ندی، بېلګه، لکه (ورندی) په دې متل کې پګڼ چې ورندی شئ، ترټې ډ کوي (کاندو مزينه) او زړې، لکه غرندی (چنغړک، حنجره) چې (غرنده) هم بلل کېږي، ګرندی، ژو ندی، (ښځينه ځېل) غيندی (بد لمنې) هم همداسې دروا خله.

(۲۳) د (خوړښت) پر بېلګه نوې رغاونې، لکه: تړښت د ترکيب او بېلښت د اشتقاق په مانا د ژبپوهنې د نومونو (اصطلاحا تو) په توګه هم دود شوي دي مګر کارښت (دستګاه، او تکړ ښت د سپورت په مانا چې پښتو قاموس د لاسي وييونو په توګه کښلي، دومره دوييز (قانوني)او سوليز (منطقي) نه بر ېښي. دا چې (يادښت) د (يادونې، نوټ، نوټېشن) په مانا ځينې ليکوال، دا استاد رشاد په پېښو د پارسي (يادداشت) د اډاپټېزم په ګومان (يادداښت، يادانښت) کارېږي،يوه تېروتنه ده، ځکه له (-ښت) روستاړي سره (ولسي) کړ ببلنګونه (خوړ ښت، (و)ورښت، منښت، لګښت...) او نوم ببلنګونه (جوړ ښت، سازښت، ټينګښت ...) وار له مخه شته ول؛(يادښت) پو ره دود لري لا د ننګرهار خوا ته د (يادو) په مانا هم کاروي ((زما په يادښت دومره ورښت کله نه وو شوی)).

د نورو ډېرو روستاړو غوندې په (-ښت) پورې بل روستاړی هم نښلول کېدا ی شي او ← (دويمې رغاونې) رامنځته کوي، لکه: تړښتي (ترکيبي)، بېلښتي (اشتقاقي)، لګښتي (مصر في،استهلاکي) او نور.

(۲۴) په -وی، لکه: روی، ژوی، زوَی د (زوی يو ګړدودي ځېل)، خوری (پرخور)، لووی (ګواه)، ويی، لوې (ګاو دو شيدنی).

(۲۵) په اوږد- و(o-) روستاړي، لکه: لامبو، ښکالو، زانګو... يا اټکلي ارکاييزم پېلبو(برېښنا)، پاسو(متواضع، خاکسار)، جړامبو(چيزی سست و کشال)، جړانګوú(فلوس، مسهل معروف(جړ= زهر قاتل)؛ مجنون بيد)،.

(۲۶) د (-او) په روستاړي، لکه: لګاو، ګړاو(رنج)،(يوڅپېز کړاو (مشق، جېمناستيک)، اړاو، تړاو، ارتاو (پرتاب، بيشتر در ارتباط پراشوت)، رغاو، ټيکاو، چړاو د (ټولو ژله) يا (قتل يا کشتار عام) په مانا، چلاو (ګذاره، معيشت؛ ريسمان ګِلکشی کاريز)، جړاو(مرصع)، بنډاو ...هم ښايي له همدې ډلې کړنو مونو څخه وي، پرتليز ببلاو د بېلتيا تر څنګ (مميزه)؛ په خرڅلاو کې(-ل-) د خوږغږي د يوتوک په توګه را منځته شوی دی.

(۲۷) اوو، د ښندې يا شدت له جاج سره، د کړ ستاينوم او چارنوم (نومن ايجنټ) او آلي روستاړي په توګه، لکه: پېښدارو، ګرباوو(پرګرنی)، لړاوو (جنګړه). چلاوو(ګذاره کننده؛ صرفجو)، لګاوو يا خرڅاوو (خراج)، ګپاوو، ګړاوو (زحمتکش)، کړاوو(باسکون اول: مشاق؛ ورزشکار)، کړتا وو، ټرتاوو، ډراوو، غرتاوو، .غراوو، پنډاوو (پنډ چرګ).

(۲۸) په (راوه) روستاړي ، لکه (رغاوه، صنعت او تخنيک په
مانا چې افغان قاموس راخيستی دی، جراوه(نوعی زيور مر
صع)؛ کناوه، هم ښايي همدا سې يو کړنوم اوسي
(۲۹) په (-گنه) روستاړي ، لکه استوگنه له است-(استول)
ستې څخه؛ د خپلواک (-و-) په منځگړتيا سره
(۳۰) په (-وزه) يا (-زه) روستاړي، لکه استوزه (پيغام) له ورته
کړ ستې څخه؛ دلته هم لکه په — (مښوکه کې) (و) د کړ ستې

است-) د څخېدا ښکارنده او يا هم تړ خپلواک ( thematical

(...) اوسي

(۳۰) په (-ازی) روستاړي، لکه استازی له ورته ستې څخه
چې همدنيز يې استوازی هم پق را خوندي کړی دی، هغه هم
(از پرځی نه څ سره؛ دغلته هم لکه پاس يوه له دوو پښو
څخه (منځته شوې ده؛ همدارنگه متيازې(مبتازې،
مبنيازې نه مت-) کړستې څخه دکړ بېلنگ ورته بېلگه ده.

(۳۳) په (-ګه) روستاړي، لکه: استوګه (استوګنه)، درګه (د کړکو، دورموټل)، مرزګه، غوړګه، څلګه (تیرک آب)، سپلګه (ابرک)، دغه راز (نړګه) د استاد صمیم پر اخځ د ګلو بوټو رو زنځی (نرسري) په مانا؛ که څه هم اړینه نه ده، دغه او نورې ورته بېلګې دې ګردې توني چار و مانا ولري، بلکې کېدای شي، کو شیننومونه وي، په نورو ټکو، یو نومرغنده توکی اوسي!

(۳۴) په (-ګ) روستاړي، لکه: تګ، مرګ، برګ، ګرګ هم اټکلېدای شي.

(۳۵) په (-وب) روستاړي، لکه: پړسوب، ننوب (چاڼ، چاڼو وني فېلتر)؛ که چېرې دغه روستاړی د (اوبه) نوموالاستړه وي، بیا نوګڼ ← نومبېلنګونه رانغاړي، لکه: خړوب (سیر اب)، ځلوب (سراب،) سروب (خوناب)، نروب (آشک آبګین)؛ یا یې غځېدلې بڼې، خړوبی، سروبی، ځړوبی (شرشره، آبشار)، ګرړوبی (بلغم)...بنځینه ځلوبۍ هم د (جلبی) اندول کېدای شي.

(۳۶) په (- هار) روستاړي، چې زیاتره په انګینومیز (صوتي) فعلي ولیو پورې نښلي، بېلګې یې، لکه: چپهار، ګړزهار، غړزهار، دربهار، برهار، پشهار (دمارغړ)، شنهار، ترهار، کړ

سهاو ... ګرهار، چې د ګفتار په مانا له ګړ (پدل) سته جوړ شوی، هم په دې تولي کې راځي.

(۳۷) په - ر لکه: تتبار (مسګر) او وستار (سیمسار) چارنو مونه م رغوي.

(۳۸) په - آره، لکه: نوکاره، شوکاره، سکوندواره، کوکاره، بغاره، چغاره...؛

(۳۹) په (- له)، لکه: وژله، ژوبله، زپږدله (زلزله)، تو خله، ځیرله، د تریشي او پرزې په مانا، ایشله، ژاوله، پایله، د پایزیب نتیجې او خاتمې په مانا، دوه ځپیزه غونډله (جمله) او اوډله (تکمیم) یې قیاسي جوړونې دي.

(۴۰) په - که روستاړي، لکه (← خورکه، مښوکه-نوله) زیاتره کوشنیز او بیا لوښنومیز (آلي) کړنومونه رامنځته کوي؛ چورلکه د (چرخک چوبی؛ بیني پیزار؛ پسکی پیزار) د مانا و نجي (سېما نتېزم) په توګه (ځرخي الوتکه، هلکوپتر) او بیا یې (الوتکه) د پرتلو یزي په توګه رادود شوی: خوتنکه (دېګچه)، هغه پخلي چې پېغلوټې نجونې یې د سر ګرمي لپاره تر کور بهر کوي.

(۴۱) په (-وال) روستاړي، لکه: لېوال (مشتاق) له لېول (تشویق و تحریض کردن؛ آموخته کردن) له کړولی (لې-) او د اټکل له مخې هممهاله له (لېیل) ځخه چې پق (شاهدي ورکول)

مانا ورکښلې ده؛ که نه، هسې خو(-وال) له آره د نومبېلښتي روستاړي په توګه پېژندل کېږي← نومبېلنګونه

دا ټول ژوندي او نيمژواندي کړنومونه، په نورو ټکو، کړ بېلنګونه د ويي رغاونې له پلوه ستر نقش لوبوي او خورا ډېر زېږي (پرودکتيف) بلل کېږي، نه يوازې دا چې له وسمهالي بنسټ (خور- ،وين-... ) او تېرمهالي بنسټ - خوړه -ليدل...) د واړو شخه بې چار او چاروال لازمي او متعدي په پام کې نيولو سره منځته راځي او لومړنۍ جوړونې کوي چې لا بيا له همدې لومړنيو جوړونو ←(دويمې رغاونې) هم کېداى شي،دا راز نوې جوړونې اله ماله (هرومرو) د ځانګړو ژبنيو ټولنو ټيکه (انحصار، مونوپول) نه دى، بلکې د ځانګپوه تر څنګ د بېلا بېلو علمي- فرهنګي ځانګوپوهان او ليکوال کولاى شي، د اړتيا او تنګسيا پر وخت هغه پخپله تر سره کړي، همدومره چې بېلګه او دويه ( قاعده) په مخ کې ولري او ررسره ورسره د ځانګپوهو سيندکښۍ!نو پر کرونه او سونه يې خوا پيکه نه کاندې!

يادښت : (-و -aw-)، لکه په (کول، اړول، نيول)،او اړوندو ګر داني او کړنوميزو بڼو (کوم- کونګ- کوونکى، اړوم-اړو نګ، اړوونکى، نيوم - نيونګ- نيوونکى...) کې يو سرباري لېږند (متعدي) توکى بلل کېږي؛ پر وړاندې يې، نا لېږند

لازمي، توکی (-ېد-) یا (-کېد) تیکاو لري او ان په ارکاییکو کړونو (چول، انول، بېول...) کې یې هم همداسې د رواخله د دواړو ډولو بېلګه کړونه، لکه:

غوزځول - غوزځېدل، ګرځول - ګرځېدل، جګول - جګېدل، نیول-نیول کېدل، پاځول - پاځېدل، کښېنول -کښېناستل، ځملول- ځملاستل،

ویدول-ویدېدل ...؛ د بېلابېلو ریښنو والا کړونو جوړې بیا جلا جلا ډلې را خلي، لکه: د (اړول - اوړېدل) تر څنګ (اړول- اوښتل، ایستل - وتل، وژل - مړل... هرګوره، نوریوو ستوي کړ ډولونه او بیا لا غونډېزکړونه (phrasal verbs) دغه مخاوی (تقابل) د مرستیالکړونو (کول -کېدل) په ملتیا تر سره کوي (۲- پښنویه ۱۲۰).

هرګوره، هغه ← آر یووستوي (یازاړه بېلبنتي او ترېنتي) لېږ

ندکړونه (خوړل، څښل، شړل، لېږل، لېښل...) او آریووستوي (یا زاړه بېلبنتي او ترېنتي) نالېږند (تلل، راتلل، درېدل، وتل، توتل، کښېوتل، کښېناسل، پاځېدل،...) سرباري لېږند تو کې (-و-) او نالېږن (-ېد-) ته ګړ سره اړتیا نه لري. همداسې

ورل- بيول، راوړل - راوستل جوړې دروا خله چې(خوځند - نا خو ځند)يا (خپليوني- ناخپليوني) سره توپيرو

# د بېلابېلو يووستوو کړونو او کړنومبېلنگونو (فعلي اشتقاقونو) ليکلړونه

۴-۱-۱: لېږنده او نالېږنده کړنومستېه (اچو- ، اړو-...) +نگ= مانانوم (اسم معنايا مجرد اسم)

| پارسي مانا | ويی |
|---|---|
| اچونگ | انداخت |
| اخښنگ | خميرکردن ، آغشتن |
| اخېستنگ | ستد ، گرفتن ، اخذ ، اقتباس |
| اړونگ | گشتاندن، براندازی |
| اوښتنگ | تحول، دگرگونی؛ سرنگونی |
| بيوونگ | بردن (بيجان، متحرک: آب، موتر) |
| پاڅېدنگ | برخاستن؛ خيزش، قيام |
| تړنگ | بستن، بستگی؛ ترکيب، مرکب |
| څملاستنگ | خوابيدن يا دراز کشيده |
| روزنگ | پرورش |
| ښوونگ | آموزش |
| غورځنگ | خيزش؛ يورش؛ جهش، جنبش، نهضت |
| کرنگ(!) | خون آلود ، آغشته؛ منجمد |
| کړنگ | کنش؛ صدای مهيب |

| | |
|---|---|
| کښنګ | کښش، استخراج؛ نګارش |
| کوږنګ (۱) | درازق، لندهور، درازبی نماز (کابل) |
| کونګ | اسم فعلی از کول (کردن) کُنش |
| ګړنګ (۱) | پرتګاه |
| لوستنګ | خوانش، قرأت، مطالعه |
| لولونګ | تدریس، خواندن به کسی |
| لیدنګ | دیدار، وادید |
| لیږنګ | اعزام، ارسال، فرست |
| لېښنګ | باربری، کوچ، رحلت |
| لیکنګ | نوشتار، نګارش |
| مښنګ | مالش، مساژ |
| وږنګ | بردن (بي حرکت وبېجان)؛ برد (ضد باخت |
| وهنګ | لت و کوب |

۴ ۱-۲: کړسته + (- ېد -) ن = ځیزنوم (چاروال، ببچار)

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اخښن | آمېزش، اختلاط |
| اخېستن | ګرفتن، خریدن |
| اغوستن | پوشیدن؛ پوشاک خواب، بستره |
| اورېدن | شنیدن |

| ويي پوهنه | کړېلنګونه |
|---|---|
| پاڅېدن | برخاستن |
| ترن(-ta) | بستن، بسته کاری، بسته بندی |
| ترن(-tə) | تتله، الکن |
| تلن(-tl) | تگ، رفتار |
| تلن(-tal) | تول کردن، وزن کردن |
| چورلېدن | چرخش |
| خوړن | خوردن، خوراک |
| خوځېدن | جنبیدن،حرکت |
| درېدن | ایستاندن |
| رژېدن | ریخت، ریختگی، ریزش |
| رغېدن* | صحتیابی؛ بی نیازی |
| ژړېدن | گریه کردن |
| سپارښتن | سفارش؛ توصیه؛ سپرد، تسلیمی |
| سون | (swan)سوخت، سوزش |
| شړن | راندن، تبعید(کردن) |
| غځېدن | تمدید یاوسیع شدن؛ درازکشیدن |
| غږېدن | گفتن، گپ زدن |
| غولېدن | فرفتن، خدعه |
| غوړېدن | شگفتن؛ هموارشدن |
| کړن | کنش، کردار، عمل، فعالیت |

| | |
|---|---|
| کړېدن | رنج کشیدن، هردم شهیدی |
| کښېناستن | نشست |
| لړن | آلایش؛ آمیزش |
| لوستن | قرائت ، مطالعه ، خواندن |
| لولن | تدریس، خواندن به کسی |
| لوېدن | افتیدن |

*په (رغستن کې د رغېدن د هممانیز په توګه د/س/ ډ برن د اخښلن (contamination)، زېږنده برېښي، هغه هم ښايي، له (اخېستن، اغوستن، کېناستن، ابستن، پرېستن= پرېوستن ...!) سره، لکه څنګه چې لیکوال د ننګ (کونړ) د یوه ساپي له خولې (پرېښوستل، کېښوستل...) هم یادښت کړي دي.

۴-۱-۳ کړنومستهه+(-ېد-) ون= مانا نوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اخېستون | گرفت، گرفتن |
| ارتون | فراخی، پهنا |
| اړون | احتیاج؛ کاچی |
| ازمون | آزمون، آزمایش، امتحان؛ تجربه |
| اوډون | نظم، ترتیب؛ تدوین، گردآوری |

| ويي پوهنه | کړېلنگونه |
|---|---|
| اوړون | تحول، دگرگونی، انقلاب |
| اخښن | آمېزش، اختلاط |
| اخېستن | گرفتن، خریدن |
| اغوستن | پوشیدن؛ پوشاک خواب، بستره |
| اورېدن | شنیدن |
| پاځېدن | برخاستن |
| تړن(ta-) | بستن، بسته کاری، بسته بندی |
| تړن(tə-) | تتله، الکن |
| تلن(tl-) | تگ، رفتار |
| تلن(tal-) | تول کردن، وزن کردن |
| چورلېدن | چرخش |
| خوړن | خوردن، خوراک |
| خوځېدن | جنبیدن، حرکت |
| درېدن | ایستاندن |
| رژېدن | ریخت. ریختگی، ریزش |
| رغېدن* | صحتیابی؛ بی نیازی |
| ژړېدن | گریه کردن |
| سپارښتن | سفارش؛ توصیه؛ سپرد، تسلیمی |
| سون | (swan)سوخت، سوزش |
| شړن | راندن، تبعید(کردن) |

| ويي پوهنه | کړبلنگونه |
|---|---|
| غځېدن | تمدید یاوسیع شدن؛ درازکشیدن |
| غږېدن | گفتن، گپ زدن |
| غولېدن | فرفتن، خدعه |
| غوړېدن | شگفتن؛ هموارشدن |
| کړن | کنش، کردار، عمل، فعالیت |
| کړېدن | رنج کشیدن، هردم شهیدی |
| کښېناستن | نشست |
| لړن | آلایش؛ آمیزش |
| لوستن | قرائت ، مطالعه ، خواندن |
| لولن | تدریس، خواندن به کسی |
| لوېدن | افتیدن |

رغستن کې د رغېدن د همانیز په توگه د/س/ د برن د اخښلن (contamination)، زېږنده برېښي، هغه هم ښایي، له (اغوستل، اخېستل، کېناستل...) سره، لکه ځنگه لی‌کوال (وری، ۱۳۴۴) د کونړ د یوه ساپي له خولې (پرېښوستل، کېښوستل ...) یادښت کړي دي.

۴-۱-۳ کړ نومسته + (-ېد-) ون = مانا نوم

| وېي | پارسي مانا |
|---|---|
| اخېستون | گرفت، گرفتن |
| ارتون | فراخی، پهنا |
| اړون | احتیاج؛ کاچی |
| ازمون | آزمون، آزمایش، امتحان؛ تجربه |
| اوډون | نظم، ترتیب؛ تدوین، گردآوری |
| اوړون | تحول، دگرگونی، انقلاب |
| اوښتون | تحول، واژگونی، انقلاب |
| بایلون | باخت، باخته گی |
| بلون | دعوت؛ تداعی |
| پاڅون | رستاخیز، قیامت |
| پاسلون | پاسبانی، پهره داری، سپاسگزاری |
| پلټون | جستجو، تفتیش؛ پرس وپال؛ بررسی |
| پلورون | فروش |
| پنځون | سرشت، طبیعت؛ ایجاد، آفرینش |
| پېرون | خرید، خریداری |
| پېژندون | معرفت، شناسایی، تعریف |
| تبېرون | تکمید، یاگرم کردن تن برای تعریق |
| تړون | عقد؛ عهد، پیمان؛ قرارداد؛ سازش |

| ويي پوهنه | کړبلنگونه |
| --- | --- |
| تلون | رفتار، تگ،برخورد ، روش |
| تېرون | گذار، گذشت، عفو |
| چوون | کفاندن، انفجار، انفلاق (دادن) |
| څټون | لیسیدن |
| څڅون | چکک، تراوش |
| څښون | نوش، نوشیدن |
| څکوون | کشېدن دخانیات، تدخین |
| ختون | بالارفتن،عروج |
| خوځون | حرکت؛تحرک؛ جهش |
| خوړون | خورش، خوراک |
| رغون | ساخت؛ اصلاح ؛ صحتیابی؛ بی نیازی |
| رژیدون | ریزش، برگ ریزی |
| رسیدون | وصلت، وصال، رسیده گی |
| رغون | اصلاح؛ درستی، ترمیم |
| زېږون | زایش، ولادت؛ تولید |
| سمون | اصلاح؛ تصحیح، نظم |
| سهون | هضم؛ تحمل |
| شړون | راندن؛ تبعید |
| ښوون | هدایت، رهنمایی، رهبري |
| ښیون | همان |

| | |
|---|---|
| كتون | مشاهده؛ معاينه |
| كړون | كرده ، كردار، عمل، فعاليت |
| كښون | كشيدن؛ نوشتتن؛ جلب، جذب |
| كښېوتون | فرودآمدن، هبوط، نزول |
| ګټون | بهروری، بهره برداری؛ برد |
| ګرځون | قی،استفراق، گشتاندن (كابل) |
| لټون | جستجو، پرس و پال |
| لږون | كمبود ، قلت، كمی، تقليل |
| لښون | كوچ، كوچ وبار؛ باركردن، باربری |
| لګون | مصرف؛ مطابقت |
| لمسون | تحريک |
| لېږون | فرستادن، ارسال،اعزام |
| مينځون | شستشو |
| وړون | انتقال؛ برد |
| وژون | قتل ، كشتار |
| ولون | شستشو |
| وهون | زدن، ضرب |
| وېشون | تقسيم، توزيع |

۴-۱-۴ کړنومستنه+انه = څېزنوم (چاروال، بېچار)

| ویی | پارسي مانا |
| --- | --- |
| اچوانه | پرتاب، انداخت |
| اخېستانه | گرفتن، خرید، ست |
| اوبدانه | نساجی، بافنده گی |
| اوډانه | ترتیب، تنظیم، نظم و ترتیب |
| اوریدانه | سماع |
| بیوانه | بردن (زنده جان و متحرک: آب، موتر) |
| پاڅېدانه | برخاستن، خیزش |
| پخوانه | پخت و پز |
| پرځېدانه | افتیدن، خوابیدن(در کُشتی)؛ سقوط |
| پووانه | چَرا، چَرش، چراندن |
| پوهېدانه | دانستگی |
| تښتېدانه | گریزگریز |
| ځغلېدانه | دوش |
| څښانه | نوشانوش، نوشیدن زیاد |
| څېړانه | تحقیق، پژوهش زیاد |
| خوړانه | خوردن زیاد |
| رپېدانه | لرزوترس |
| رېږدېدانه | همان |

| | |
|---|---|
| زېږېدانه | زایش پیهم و زیاد |
| سېځانه | سوختاندن |
| شړانه | تبعید (=شړون) |
| ښووانه | تدریس، آموزش |
| غورځېدنه | نوع بازی خیزانداختن |
| کړانه | عمل، عملیات، اپرېشن (طبی یافوجی) |
| کښانه | کشاندن؛ نوشتار، نگارش |
| ګرځېدانه | گشت وگذار زیاد |
| ګنډانه | دوخت |
| لیدانه | مشاهده |
| مینځانه | شست و شو |
| نڅېدانه | رقص ورقاصی |
| وړانه | بردن ها، انتقالات |
| ولانه | شست وشو |
| وهانه | زدن شدید، زدوخورد، خوردو برد |
| ویشتانه | انداخت، تیراندازی |

۵-۱-۱۴ کړ نومسته + ونه = ځیزنوم (چاروال)

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اړونه | گشتاندن ، تحریف |

| | |
|---|---|
| استونه | ارسال، اعزام |
| الوځونه | پرواز داد، پراندن |
| اورونه | باراندن، باران |
| اورونه | شنواندن |
| اوسونه | اسکان (بخشیدن)، ساکن ساختن |
| بایلونه | باخت |
| بوړنونه | درهول انداختن، تکان دادن |
| پاڅونه | خېستاندن |
| پارونه | انگیزش، تحریک |
| پخونه | پختن، پخت و پز |
| پرځونه | خواباندن |
| پوونه | چَرا، چرایش |
| خندونه | خنداندن |
| خورونه | خوراندن |
| ښکونه | کشیدن، تذ خین |
| څملونه | خواباندن |
| رژونه | ریختاندن |
| رنځونه | رنجاندن |
| ریژونه | ریخت؛ ریزیا خوردکردن |
| ژړونه | به گریه آوردن، گریاندن |

| ويي پوهنه | كړبېلنګونه |
|---|---|
| ښوونه | تعليم ، موزش ، نماش |
| ښويونه | لغزاندن |
| غځونه | تمديد (نل، لين) پهن و هموار كردن (آهن غيره فلزات)؛ خواباندن |
| غورځونه | انداختن، افگندن |
| غولونه | فريفتن |
| کړونه | جوردادن، تعذيب |
| کښېنونه | نشاندن، به نشستن وادارکردن |
| ګرځونه | گردانيدن؛ قی کردن، گشتاندن (کابل) |
| ګړونه | استنطاق، سخن آوردن |
| لګونه | مصرف و استهلاک (کردن)؛ چسپاندن |
| لېږدونه | نقل،انتقال |
| نڅونه | رقصاندن |
| نښلونه | پيوند دادن؛ چسپاندن |
| هڅونه | تشويق، ترغيب (کردن) |

۲-۱-۴: کړنومستېه+ نه = مانانوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اېيلنه | بلعيدن، يک باره گی خوردن |
| اېېرنه | بدهضم ساختن |

| | |
|---|---|
| اچونه | انداختن، انداخت |
| اڅښنه | بافت چارپایی؛ بافت کلمات؛ انسجام امور |
| اخښنه | آغشتن، آغشتگی، آمېختگی |
| اخېړنه | سیم گل کاری، گاه گل کاری |
| اخېستنه | اخذ، اتخاذ، اقتباس |
| ارتنه | انداخت (= ارتونه) |
| اغړنه | آغشتن؛ خمیر کردن |
| الوتنه | پرواز |
| امرنه | گزینش، انتخاب |
| بلنه | دعوت؛ فراخوان |
| پټنه | پوشیدگی ، حجاب |
| پړنه | الزام، اتهام |
| پلټنه | جسجتجو، تفتیش ، تتبع (=پلټون) |
| پلورنه | فروش |
| پوښتنه | سوال، پرسش، استعلام |
| پوهنه | علم ، دانش، معرفت |
| پېښنه | بردباری، تحمل، صبر |
| تهنه | عمق، ژرف |
| ترټنه | توبیخ، سرزنش، عتاب |
| ټاکنه | تعیین، انتخاب، مقرری |

| ويي پوهنه | کړبېلنګونه |
|---|---|
| چونه | ترقاندن، انفجار دادن |
| ځیرنه | تدقیق، تحلیل و نجزیه |
| څښنه | نوش، نوشیدن، شُرب |
| څکنه | چشیدن، چشک |
| څېړنه | پژوهش، کاوش، تحقیق؛بازرسی |
| خوړنه | خورش، خوردن |
| رازنه | احترام؛ آزین بستن، تزئین |
| روزنه | تربیت، تربیه ، پرورش |
| زغمنه | بردباری، تحمل، صبر (کردن) |
| شننه | پراگندن؛ تجزیه، تحلیل، تفسیر |
| ښوونه | آموزش |
| ساتنه | نگهبانی، حفاظت |
| سپړنه | کندن؛ کاوش؛ شرح |
| سهنه | هضم؛ بردباری، تحمل |
| شړنه | تبعید، رانده گی (- شړانه) |
| شننه | تارتارکردن پشم؛.کاوش؛ تحلیل؛ تفسیر |
| شمېرنه | شمارش، محاسبه |
| ښوونه | آموزش (ښوونه اوروزنه: آموزش و پرورش) |
| ښندنه | نثار؛ بخشش (سرښندنه: سربازی) |
| ښهنه | عاق (کردن) |

ښینه

(x̌əyə́na) همان (تېری، روزګان)

| | |
|---|---|
| غښتنه | تابیدن، ریسیدن |
| غندنه | تقبیح ، ملامت، مذمت |
| غوښتنه | خواست، درخواست، درخواستی |
| کتنه | مطالعه ؛ معاینه؛ بازدید |
| کَرنه | کشت، کشت وکار، زراعت |
| کړنه | عمل، کردار |
| ګروهنه | ګرویده ګی، اعتقاد ، ویانت |
| لیدنه | دیدار، ملاقات، بازید |
| لیږنه | ارسال، اعزام |
| لیکنه | نوشته، تحریر، نګارش؛ مقاله |
| ولنه | شستشو |

۴-۱-۷: تېرمهاله کړسته+ونکی= (چاروال، بېچار) وسمهال کړستاینوم (او چارنوم)

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| اپېلونکی | بلعنده، قورت کننده |

| ويي پوهنه | کړېلنگونه |
|---|---|
| اځونکی | بافنده چارپایی |
| اخښونکی | آغشتنده،آمیزنده ، خمیر کننده |
| برېښوونکی | فروزاننده، درخشاننده، نمایاننده |
| بهوونکی | جاری کننده |
| پېزونکی | رفوگر، پینه، دوز |
| پلټونکی | مفتش ، بازرس |
| چلوونکی | راننده،مدیر،اداره چی،مدیر (نشریه) |
| څښونکی | نوشنده |
| څېړونکی | پژوهشگر، محقق |
| ختونکی | بالاشونده |
| رپوونکی | به اهتزاز آورنده؛ شوردهنده |
| رڼوونکی | روشن کننده، روشنگر |
| رېږدوونکی | لرزاننده |
| زېږوونکی | زاینده، مولد |
| ښوونکی | آموزگار، معلم |
| غږوونکی | نوازنده؛ گوینده |
| غوښتونکی | خواستار، عارض |
| کښېوتونکی | پایین شونده |
| گنډونکی | دوزنده، درزی، خیاط |
| لرونکی | دارنده |

| | |
|---|---|
| لمسوونکی | تحریک کننده، محرک |
| لوستونکی | خواننده، مطالعه کننده |
| لیکونکی | کاتب، محرر، نویسنده |
| مښونکی | مالنده، مالش کننده |
| منونکی | متقبل، پذیرنده، پذیرا |
| موندونکی | یابنده، واجد |
| نڅوونکی | رقص آور، رقصاننده |
| وړونکی | برنده؛ انتقال دهنده (غیر متحرک و بیجان) |
| ویشتونکی | پرتاب کننده؛ تیرانداز |
| ویشونکی | تقسیم کننده، توزیع کننده |

۴-۱-۸: کړسته +- ېدونکی = وسمهال کړ ستاینوم (بیچار، چاروال)

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| اورېدونکی | شنونده |
| اوړېدونکی | گردنده، گردان شونده |
| برېښېدونکی | درخشنده |
| بهېدونکی | جاری، ریختنده |
| پاڅېدونکی | برخیزنده؛ بیدار شونده |
| پرځېدونکی | افتیدنی |

| ويي پوهنه | کړبېلنګونه |
|---|---|
| ترهېدونکی | رامنده، متوحَش |
| تښتېدونکی | گریزان |
| توییدونکی | ریزان ، افشان |
| چلېدونکی | مروج، رواج یابنده |
| ځغلېدونکی | دونده، شتابان |
| څرېدونکی | چرنده(مواشی)؛ نشرشدنی(رنگ) |
| خندېدونکی | خندان |
| خوځېدونکی | جهنده، متحرک |
| رژېدونکی | ریزان |
| رغېدونکی | صحت یابنده؛ قابل ترمیم |
| رېږدېدونکی | لرزان |
| زنګېدونکی | گازخورنده؛ لرزان |
| زېږېدونکی | تولد شونده، زاینده (طفل)؛ ایجاد شونده |
| ژړېدونکی | گریان |
| ښهېدونکی | هضم شدنی؛ تحمل پذیر |
| ښورېدونکی | متحرک، پوینده |
| غږېدونکی | گویا |
| غورځېدونکی | افتیدنی |
| غولېدونکی | فریب خور |
| کړېدونکی | مبتلا به رنج و عذاب |

**ويي پوهنه**

| | |
|---|---|
| گړېدونکی | گویا |
| ليدونکی | بیننده |
| مسېدونکی | لبخند کننده |
| مينځونکی | شست و شو کننده |
| نڅېدونکی | رقصنده، رقصان |
| نړېدونکی | ویران شدنی، در حال تخریب |
| وېرېدونکی | ترسنده |

۴-۱-۹: کړسته+ لی- تېرمهال کړ ستاینوم (صفت مفعولی)

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اچولی | انداخته ، افگنده |
| اخښلی | بافته با ریشمه های پشمی ( چارپایی، چوکی و مانندآن)؛ مرتب وآراسته |
| اخښلی | آغشته، خمیر شده |
| اخېستلی | گرفته، برداشته |
| اندرېيلی | شسته، شست و شو شده |
| اېندولی | حالت مستی، حیوان نر طلب |
| اډبرلې | زنی که حملش از مدت (۹ ماه) تجاوز کند |
| ارتېيلی | انداخته ، افگنده، پرتاب شده (=ارتلی) |
| ارغستلی | سخنان ناهنجار |

| ويي پوهنه | كړبلنگونه |
| --- | --- |
| اړولی | منقلب شده، واژگون شده |
| ازېيلی | تابداده شده |
| ازمايلی | مجرب ، تجربه شده |
| ازمويلی | مجرَب؛ تجربه شده |
| ازمېيلی | آزمايش شده،مجرب، باتجربه |
| اسکېرلی | زبون، ستمکش ، ستمديده |
| امرلی | برچيده، گزيده، منتخب |
| انگېرلی | انگاشته؛ فرض شده |
| اډلی | ميده شده |
| اوډلی | مرتب، منظم |
| بللی | ناميده، خوانده، دعوت شده، مدعو |
| پاسللی | ممنون، سپاسگزار |
| پسوللی | محلل، با زيور آراسته شده |
| پېچلی | پچيده، مغلق، سردرگم |
| پېټلی | ملعون، لعنتی |
| پېرلی | خريده، خريداری شده |
| پېژندلی | شناخته شده، معروف |
| پېيلی | سُفته |
| ترټلی | توبيخ شده |
| ترينگلی | فشرده؛ پيچيده؛ عبوس؛ بخيل؛ پرتنش |

| ویي پوهنه | کړبیلنګونه |
| --- | --- |
| تللی | وزن شده؛ موزون |
| تلولی | سراسیمه، پرېشان، وارخطا، دست وپاچه |
| ټاکلی | معیَن، تعیین شده؛ گماشته، مقرر، منتخَب |
| څېړلی | تحقیق شده |
| خوړلی | خورده |
| رټلی | توبیخ شده |
| روښلی | روشن شده، تنویر شده |
| زبېښلی | فشرده؛ استثمار شده |
| سپړلی | کنده، کاویده؛ شرح شده |
| سپمولی | صرفجویی شده (سپمولي سپوخوړلي) |
| سپېڅلی | پاکیزه؛ مصفا |
| سهلی | هضم شده؛ حل شده |
| شړلی | رانده شده؛ تبعید شده |
| شنلی | تحلیل و تفسیر شده |
| ښکلی | حسین، خوشرو |
| کرلی | کاشته، کشته |
| کښلی | کشیده (شده)؛ نوشته شده |
| کېښکلی | فشرده |
| ګنډلی | دوخته |
| ګڼلی | انگاشته؛ شمرده، حساب شده |

| | |
|---|---|
| لوستلی | خوانده، قرائت شده |
| لیکلی | نوشته شده |
| مښلی | مالیده شده؛ ساییده؛ نیم مستعمل (البسه) |
| منلی | مقبول؛ محبوب |
| نټلی | توبیخ شده |
| وتلی | برآمده؛ درخشیده؛ برجسته |
| وللی (مینځلی) | شسته |
| هڅولی | تشویق شده |

۴-۱-۱۰: کړنومستهه+ نده-وسمهال کړستاینوم (اوچارنوم)

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| بوزنده | تخمیر شده، خمیر؛ پوده |
| بهنده | جاری، سیال |
| پاتنده | پاینده ،پایدار، جاویدان، باقي |
| پاینده | همان |
| پرسنده | گوشت قاق، گوشت خشکېده |
| پړسنده | آماسیده ؛ قهرآلود ، خشمگین |
| پوونده | مالدار کوچی، چادرنشین |
| ترهنده | متوحش؛ رم خورنده |
| توږنده | تراشنده، خراشنده |

| | |
|---|---|
| ټاکنده | انتخاب کننده، تعیین کننده |
| چلنده | جاری؛ قابل چلش (پول، قانون...) |
| ځغلنده | شتابنده؛ گذرا (نگاه) |
| څرنده | چرنده (مواشی) |
| څښنده | نوشنده |
| څیره | نوک آفتاب؛ پاره، تریشه |
| خوځنده | (با فشار اخیر) خزنده |
| خوځنده | (بافشار اول) متحرک، دینامیک |
| خورنده | خورنده، پر خور |
| درزنده | مست و پایکوب؛ شیردان سرکودک |
| رژنده | قابل ریزش یا ریخت |
| رغنده | شفا بخش؛ ترمیم کننده؛ تعمیری، سازنده |
| زېږنده | زاده، مولود؛ زاینده، مولد |
| ژړانده | چشمه ییکه آب ازآن بصورت قطرات بیرون می تراود، گریان (مونث)؛ ماه محرم |
| سوځنده | سوزنده |
| سهنده | هضم شونده؛ هضم کننده |
| ښورنده | متحرک |
| غړنده | غلطان، کناره و گوشه، زیرگلو |
| کړنده | کننده، فاعل |

| ويي پوهنه | كړېلنګونه |
|---|---|
| ګرځنده | گردنده، سیار؛موبایل، تلفون همراه |
| لمسنده | محرک |
| لوېرنده(درزنده) | شیردان سر ا طفال؛ شقیقه |
| لېږنده | مرسل، منتقل |
| ورنده | بارنده |
| وینده | پرگو، پرحرف (=ویند) |
| هڅنده | کوشا؛ پرتلاش؛ مشوق |
| هېښنده | تعجب آور؛ عجیب |

۴-۱-۱۱ : کړنومستېه+اند= وسمهال کړستاینوم(لکه پاس)

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اېسند | نمودار، ظاهر، پدیدار، نمایان |
| اېشند | جوشان، جوشنده |
| برېښند | تابان ، درخشان ؛ دردناک |
| بلند | فروزان، آفروخته |
| بوښند | غمگین ، اندوهگین |
| بهند | جاری، روان ، سلیس |
| پرېکند | بُران، بُرنده، تیز؛ جدی، قاطع (شخص) |
| تېپند | تپنده ، باتپش، حریص، هوسناک |

| | |
|---|---|
| ترند (!) | اسب فربه |
| ترهند | رمنده؛ ترسنده |
| تښتند | گریزان |
| توږند | خراشنده، حکاک |
| تَوسند | تفت دار؛ تشنگی آور؛ کم آب |
| تُوسند | تپ کش (سگ)؛ حریص |
| تویند | ریزان |
| پایند (ه) | (با فشاراول) باقی، پاینده، ماندگار، جاویدان |
| پوهند | دانا، خردمند، فهمیده، استاد |
| پېژند | حرف تعریف، شعبه متکفل، امور عسکری |
| چلند | جریان، رواج سکه وپول، معامله، مراوده |
| ځغلند | دونده؛ جسته گریخته (دیدن، خواندن) |
| ځلند | درخشنده |
| څارند | کس که سامان را ثبت وکنترول میکند |
| څرښند | تماس سطحي، زخم خفیف، سرسری |
| څڅند | چکان |
| څوند (!) | بیقرار، نا آرام |
| خوځند | متحرک، جنبان |
| خورند | خورنده |
| درغلند | فریبنده؛ جعلکار |

| ویي پوهنه | کړېبلنګونه |
|---|---|
| رپند | لرزان ، مرتعش، در اهتزاز |
| رژند | ریزان، متلاشی شدنی |
| رغند (-ه) | سازنده (کار، اقدام، نقد...) |
| زبېښند | فشار دهنده؛ جاذب؛ بهره کش |
| زلند (!) | زیر دست ، ظالم ، جابر |
| زېږند | زاده؛زاینده؛ جنراتیف (دستور) |
| ژوند (!) | زیست، زنده گی، حیات |
| سوځند | سوزنده ، سوزان |
| سولند (!) | حریص، ممسک ، بخیل |
| سهند | هضم کننده؛ تحمل کننده |
| شخوند (!) | نشخوار، جویدن دوباره |
| شند (!) | شاهین |
| ښخند-ی | لجنزار (=بوښته،تمبنی، پلنډی) |
| ښکارند | نمایان؛ نشان دهنده |
| ښورند | متحرک ، جنبنده، جنبان |
| ښویند | لغزنده، لخشنده |
| غړند (ه) | پژمرده، سست، بی حرکت بي میل |
| کرښند (ه) | خط شده، خط یا علامهٔ به جامانده از... |
| کړسند | چوب کاواک، زودشکن ؛ شخص بلندگو پرگو |
| کړند | کارکن، فعال (kə́ṛənd) |

| | |
|---|---|
| کړند | (krand) فاعل (دستور) |
| ګرځند | گردنده؛ چرخنده؛ سیار؛ کودک نو به پا آمده |
| ګړند | زبان آور |
| لالهند | سرگردان |
| لتهند | متنجنس، کنجکاو، ناقرار |
| لېږند | کوچنده؛ متعدی (دستور)، (نالېږند: لازمی) |
| وهند | زننده |
| ویند (ه) | پرگو |

۴-۱-۱۲: کړ نومستهه + اند = وسمهال کړستاینوم (صفت مبالغه)

| | |
|---|---|
| اړاند | گرفتار |
| اسوېلاند | حریص و گرسنه چشم |
| بښاند | بخشنده، سخاوتمند |
| بهاند | جاری، روان، سیال |
| پوهاند | عالم، دانشمند؛ کاملترین استاد پوهنتونی |
| پیاند | سُفتگر |
| پېژاند | شناسا؛ ماهر |
| تاند (!) | تازه، تروتازه (تاند لباند: جوانمرگ) |

| کړېلنګونه | ويي پوهنه |
|---|---|
| تپنده ، مضطرب، بیقرار | تپاند |
| حکاک، سنگتراش | توږاند |
| رانند ه؛ اجرأکنند ه، مجری | چلاند |
| تیزرو، شتابان | ځغلاند |
| مواج، موج خیز | څپاند |
| نوشنده (افراطی د رارتباط مشروبات الکولی) | څښاند |
| سرمحقق بالاترین لقب اکادمی | څېړاند |
| تابان ، درخشان ، متجلی | ځلاند |
| پرخور | خوراند |
| جعلکار، متقلب | درغلاند |
| فریبکار؛ جعلکار | دروهاند |
| لرزان (جاندار وبیجان) ؛ حالت اهتزاز پرچم | رپاند |
| سازنده، ترمیم کننده؛ مصلح | رغاند |
| گریان، نالان | ژړاند |
| هضام؛ صبار، بسیار برده بار | سهاند |
| سرگردان (مغموم، پریشان) | ګڼاند |
| (ابتدأ به ساکن) فعال؛ عملی کننده | کړاند |
| خطاط | کښاند |
| گردنده، گشتننده؛کودک نو به پای آمده | ګرځاند |
| سرگردان، سراسیم | لالهاند (!) |

| | |
|---|---|
| لوراند | مهربان، رحیم |
| لولاند | خواننده، مطالعه کننده؛ مدرس، لکچرر |
| نخاند | رقاص، رقصنده |
| نړاند | منهدم، ویرانگر |
| ولاند | شستشوگر |
| وياند | گویا؛ سخنگو، گوینده، نطاق |
| هڅاند | پرتلاش، کوشان؛ فعال |

۴-۱-۱۳: کړ نومستپه + ندی = کړستاینوم یا لوبنوم (اسم آله)

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اورندی | شنونده ، مخاطب (= اروندی) |
| برندی | دوک |
| بړندی | چرخک، فرفره |
| بسندی | قانع |
| بوړندی | اواز شتر |
| بيړندی | شتابنده؛ عاجل، اضطراری |
| توغندی | موشک، راکت |
| چلندی | مروج، معمول؛ قابل چلش (پول، قانون...) |
| ژوندی | زنده |
| ښخندی | ← ښخند |

| | |
|---|---|
| ښويندی | لخشک، يخمالک |
| غرندی | حلقوم |
| غيندی | گاينده؛ گاييده |
| کرپندی | غضروف؛ نوک دوربيلک شانه |
| کرندی (!) | کلنديک سره |
| کزندی | ضعيف ونحيف ازنقاهت؛ کج بحث |
| کښندی | دهقان، بزرگر |
| لېږغندی | کوچ باشی |

۴-۱-۱۴: کړ نومستېه + ندوی = چارنوم

| ويې | پارسي مانا |
|---|---|
| ويې | پارسي مانا |
| بلندوی | دعوت کننده؛ فروزنده |
| بولندوی | قومندان، فرمانده |
| بهندوی | جاری؛ پوينده |
| بيالندوی | بازنده |
| پالندوی | پرورنده، سابق پيشاهنگ به سويهٔ دانشجو |
| پوهندوی | استاد دو درجه پايانتر از پوهاند(استاد) |
| پېژندوی | شناسا آشنا، سرشناس، معروف |
| څارندوی | متجسس، مترصد؛ پوليس |

| ويي پوهنه | ګړبېلنګونه |
|---|---|
| څېړندوی | سرمحقق، بالاترين لقب علمي اکادمی علوم |
| خپرندوی | ناشر، پبليشر |
| خورندوی | خورنده |
| ډارندوی | ترسو؛ جبون |
| رغندوی | شفا بخش؛ ترميم کننده؛ سازنده، تعميری |
| زېږندوی | مولد، توليد کننده؛ ايجادگر، آفرينشگر |
| ژغورندوی | ناجی؛ آزادیبخش، رهايی بخش |
| ساتندوی | نگهدار، نگهبان |
| سپړندوی | شارح؛ کاوشگر |
| سپمندوی | صرفه جو |
| سرښندوی | سرباز يا جانباز، فداکار |
| شرمندوی | شرمنده، شرمسار |
| شنندوی | تحليلگر، مفسر |
| کرندوی | زراع، دهقان، بزرگر |
| ګټندوی | بهره برادر، کمايی کننده، برندهٔ مسابقهٔ ورزش؛ انتقامجو |
| ګرځندوی | گردش کننده، سيار، سياح،توريست؛ توريزم |
| ګواښندوی | اخطار دهنده، تهديد کننده |

| | |
|---|---|
| لېږندوی | انتقال دهنده؛ ترانسپورت |
| منندوی | ممنون، سپاسگزار |
| وهندوی | زننده، لت و کوب کننده |
| ویندوی | سخنگو، نطاق |

۴-۱-۱۵: کړنومستهه+ ښت= مانا نوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| اخښت | آلایش؛ خمیر کردن یا ترکردن آرد |
| اړښت | برگردان؛ سرنگوني |
| ارزښت | ارزش، سزاواری |
| ازمایښت | آزمایش، تجربه |
| ازمویښت | همان |
| ازمېښت | همان |
| امرښت | گُزینش |
| اورښت | وورښت |
| بلښت | دعوت (=بلنه) |
| پالښت | پرورش؛ تأمین |
| پایښت | بقأ، ادامه، دوام |
| پوښښت | پوشش |
| پېیښت | سفتن |

| ويي پوهنه | کړېلنګونه |
|---|---|
| ترښت | بستن، بستگی؛ ترکیب |
| توږښت | تراش، حک |
| چلښت | چلش، جریان (پول، قانون...) |
| ځلښت | درخشش |
| څخښت | چکیدن |
| خوځښت | حرکت؛ جهش، خیزش |
| خورښت | خوراک، خورش |
| خوړښت | همان |
| ډارښت | هراس |
| رَغښت | ساخت، ساختار؛ سرشت |
| رغښت | (ابتدأ به ساکن) لغزش |
| رنځښت | رنجش، رنج کشیدن |
| زغمښت | تحمل، بردباری |
| ژړښت | گریستن، گریه |
| سپارښت | سفارش، توصیه |
| سپړښت | تشریح، شرح؛ کاوش |
| سکښت | بُرش؛ قطع ودیزاین (کتاب) |
| سکڼښت | همان |
| شړښت | راندن، تبعید |
| ښورښت | شورش؛ حرکت |

| | |
|---|---|
| ښهښت | عاق |
| غښت | تاب نخ و ریسمان وغیره |
| غوښت | خواهش، خواست |
| کَرښت | کشت (=کښت) |
| کښت | کندن، استیصال |
| کهښت | خارش؛ قی (پروفیسرعبدالحمید) |
| لګښت | خرچ، مصرف، هزینه، استهلاک؛وزش |
| لېږښت | فرستادن، ارسال؛ اعزام |
| لَېښت | تشویق، تحریض؛ ګواهي دادن |
| منښت | پذیرش، قبولی |
| نښت | چسپیدن، پیوند، اتصال |
| نغښت | بافت؛ سرشت |
| وړښت | بردن، انتقال (غیر متحرک و بیجان) |
| وورښت | بارنده گی، بارش (=اورښت، ورښت) |
| وېرښت | ترس، ترسیدن |
| وَیښت | گویش، گپ |

۴-۱-۱۶ : کړنومستېه+اک= ستاینوم یا چارنوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| بلوساک | تجاوز؛ تخطی، تعرض |

| | |
|---|---|
| پچړاک (!) | سوراخ نیفه (ایزار، پتلون) |
| پخساک | غضه، پریشانی، اندوه |
| پوښاک | پوشاک، پوشیدنیها (البسه، رختخواب) |
| تپاک | تاپاک، حرص، تلاش |
| تاړاک | شبخون |
| تړاک | صف، قطار؛ طرف |
| تلغاک | شوروشر؛ بادوباران |
| څښاک | اشامیدن؛ نوشابه (الکولی یا ناالکولی) |
| څکاک | تدخین، تمباکوکَشی |
| خوراک | خوراک، غذا، آزوقه |
| زبیښاک | استمثار، بهره کشی |
| ژواک | زندگی، حیات، طرز، زنده گی (=ژوند) |
| ښکېلاک | استعمار؛ دربند |
| کړاک | دردورنج، عذاب؛ چیزی خورد مدور |
| نیواک | اشغال، اشغالگری |
| وېشاک | تجزیه طلبی، سپراتېزم |

۴-۱-۱۷ : کړنومستېه+او= مانا نوم (ستاینوم، ځیزنوم)

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اچاو | انداخت پول از سوی چند نفربرای امری |

| ويي پوهنه | کړبېلنگونه |
|---|---|
| ارتاو | پرتاب |
| اړراو(!) | خواب (زبان اطفال) |
| اړاو | پلپک، بلبلک؛ رابطه (اړاو تړاو: بندوبست) |
| اړتاو | پرتاب؛ جاروجنجال |
| الاو | بدرقهٔ سوار (برآسپ) |
| باو | مرض آتشک |
| ښاو | زیبا، قشنگ |
| بهاو | جریان آب، برق، کار وفعالیت (= بهنگ) |
| بېلگاو | مصرف، متفرقه، خرچ |
| پارچاو | پارچاو، پرچو، موقتاً قطع وتوقف جریان آب برق، آسیاب، ماشین، فابریکه وغیره |
| پړاو | مرحله؛ دوره |
| تړاو | طناب جریب کشی وغیره، ارتباط، ربط، علاقه، نسبت |
| جړاو(!) | مرصع، دانه نشان |
| چړاو | کشتار عام، جنوساید |
| چلاو | گذاره |
| چُرلاو(!) | ماشین، فابریکه |
| ځاو | مارش؛ یورش (از اصطلاحات سابق نظامی |
| څاو | ترصد، تجسس، تفتیش |

| | |
|---|---|
| څړاو | چراگاه |
| دباو | تکبر، تبختر؛ کلنگک (کابل) |
| درناو | وقار؛ جناب (نو) |
| رغاو | قطع مناسبات؛ تېره گی، بېزاری |
| زاو (!) | ترشح؛ نم (زاوکښ: زاکش) |
| ستراو | نوعی درخت میوه دار؛ عصاره، شربت (جیوس) |
| ستناو | مانع، معطل کننده |
| غاو (!) | شور وفریاد؛ احتجاج، پروتست |
| غړتاو | جولان اسپ |
| کَړاو | رنج و محنت (کشیدن) |
| کړاو | (ابتدا به ساکن) مشق، تمرین؛ ورزش؛ عمل |
| کنډاو | گاوی با یک شاخ شکسته؛ رخنه؛ ناقص |
| لګاو | مصرف، استهلاک؛ تمویل؛ ضرب وصدمه |
| نړاو | تخریب |

۴-۱-۱۸: کړ نومسته+وو= ستاینوم (صفت مبالغه)، لوښنوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| جرګاوو | محفل باز؛ ماهر در کار جرگه |
| جرڼګاوو | جرنگانک |
| څکاوو | جذاب، جذب کننده |

| ويي پوهنه | کړيلنگونه |
|---|---|
| خنداوو | بسيار پرخنده وخندان |
| خوالو | همراز، رازدار |
| دوړاوو | کذاب، دروغگو؛ سبزی پختهٔ بې روغن ؛ به آن نمک زده، ميخورند |
| ډراوو | فضول، هرزه گو؛ نوعی پرنده |
| ډزاوو | ميوهٔ املوک |
| شرنگاوو | جرنگانک |
| غراوو | همان |
| غرتاوو | فضول، هرزه گو |
| کړاوو | محنت کش، زحمت کش، کوشان |
| گړاوو | پرگوی، پرحرف |
| گړباوو | همان |
| لړاوو | جنگره |
| لگاوو | خراج ، (بسيار) استهلاک کننده. |

۴-۱-۱۹: کړنومستېه + ونی (-ې، -ي) = وسمهالکړ ستاينوم (چارنوم، لوښنوم)

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اچووني | طفل سقط شده پيش از وقت |
| اړووني | کبوتر ملاقی (مو) |

| ويي پوهنه | ګرېيلنګونه |
| --- | --- |
| اوړېدونی | بولهوس؛ متحول؛ قابل تصریف (دستور) |
| اېښوونی | نهنده، گذارنده؛ گذاره، مسند، خبر (دستور) |
| بلونی | خواستگار؛ تداعی کننده |
| پاڅونی | شورشی |
| پاسلونی | منت گذار، سپاس مند، سپاسگزار |
| پېزونی | رفوگر، پینه دوز پرېښوونې پس خورده، بقایا |
| پېړونی | الهٔ شق کردن گوشت |
| ترونی | وال بمبهٔ آب کش،آلهٔ بستن |
| تلونی | رونده، روان |
| چاڼوونی | آلهٔ فلتر، چلوصاف خورد |
| څکوونی | جالب، ملتفت کننده؛ معتاد به دخانیات |
| خندوونی | خنده آور؛ مضحک |
| خولوونی | به خاک و خون افگننده |
| خویوونی | شارندهٔ زخم، دانه وامثالهم |
| رغوونی | صحت بخش؛ سازنده، ترمیم کنند؛ |
| روونی | مکنده |
| شپېلوونی | بلعنده |
| شړونی | تبعید شده (سوات) |
| شلوونی | بُرنده؛ درنده |
| غولوونی | فریبا، فریبنده |

| ويي پوهنه | كړېلنګونه |
|---|---|
| ګروونی | خمیر تراش |
| لړونی | آتشکاو تنور وغیره |
| لمبوونی | غاسل |
| لمسوونی | شخص یا وسیلهٔ تحریک |
| لوبونی | بازیچه |
| لودونی | شاهد (خدای لیدونی او لودونی دی) |
| لیدونی | بیننده، ناظر؛ دیدنی |
| منونی | قبول کننده، پذیرنده؛ تابع (= منونکی، منی) |
| نښلوونی | گیرا یاقیدک برای محکم کردن لباس |
| وربشونی | ریسنده |
| ورونی | بارنده |
| ولونی | غاسل؛ شست وشو کننده |
| وېشونی | تقسیم کننده، توزیع کننده |

۲۰-۱-۱۴: کړنومستېه+ه a= مانا نوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| اخېسته | تعقیب، تعاقب، پیگرد |
| اړه | احتیاج؛ ارتباط، تعلق، وابستگی |
| بلوسه | تجاوز؛ غصب |
| بهه | خس و خاشاک روی سیلاب |

| | |
|---|---|
| پرېسته | خوابانيدن |
| پرېژه | طلاق |
| پرېښه | اجازه، اجازت (واژهٔ قياسی) |
| پرېکه | قطع؛ فيصله (=پرېکړه) |
| پېښه | واقعه، حادثه، سانحه (رويداد) |
| ترپه | جست و خيز؛ رقص |
| تره | (tə́ra) ناوه، ناوهدان |
| ترهه | ترس، دهشت |
| تړه | عقد؛ قرارداد |
| تله | ترازو |
| تېښته | گريز، فرار (= تنبه) |
| ځغاسته | (منډه) دوش |
| څټه | ليسه؛ چشک |
| څکه | چشک (خوردنی ها، آشاميدنی ها) |
| څيرې | تريشه، پرزه، پارهٔ کاغذ، تکه |
| خوړه | (xwáṛa) زمين نرم و ريگزار؛ گل ولای سيلاب |
| خوړه | (xwaṛá) مواد غذايی ناپخته يی که به خانهٔ عروسی ميفرستند، و نيز غذايی که در محفل عروسی به مدعوين داده ميشود |
| زورله | سخن زشت و ناهنجار، دو و دشنام |

| ويي پوهنه | كړېلنګونه |
| --- | --- |
| سپرگه | همان |
| سرپه | تپش؛ پرش |
| ښنده | افراط و مبالغه درچیزی؛ نثار؛ بخشایش |
| غانده | ناپسند، مذموم |
| غوځه | بُرش، قطع |
| کچه | اندازه، مقدار (از فعل کچل: پیمایش کردن) |
| کښه | (kə́xǎ) کاه کش؛ چوب منحنی که در باربندی برا محکم کردن ریسمان به کار میبرند |
| کنځله | دشنام |
| کنځه | انگشت سبابه |
| کهه | (kahá) خارش؛ قی |
| کبړه | زمین وترکه پس از آبیاری آمادهٔ کشت باشد |
| ګڼه | شماره، تعداد، نمره، نمبر |
| لټه | جستجو، جستار؛ سعی؛ کنجکاوی |
| لمسه | تحریک، تحریض |
| لمېسه | مسوده؛ نوشته؛ دوسیه، پرونده |
| لوړه | سوگند، قسم |
| لوسته | |

(lust□́) نثار، پاشیدن؛ (lústa) سخاوت

| | |
|---|---|
| لوسته | |
| | قی، استفراق (lósta) |
| لېښه | کوچ، رحلت |
| لیکه | خط، قطار، لاین؛ لامهٔ فارقه(-) |
| مرسته(مرستل) | کمک، تعاون |
| مروړه | لته کش تفنگ |
| ملاسته | عمل درازکشیدن برای خواب یا استراحت |
| منښته | اقرار، اعتراف |
| ناسته | نشست، جلسه |
| نښته | درگیری، جنگ |
| وېشه (وېش) | تقسیم ، توزیع (=وېش) |
| هڅه | کوشش؛ اقدام؛ تشویق؛ میل،تمایل |

۴-۱-۲۱: کړ نومستړه+ ی، ۍ= ځيزنوم، ستاينوم، لوښنوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| الوی | بریان ؛ حریص |
| اوی | قول، عهد ؛ قرار داد (=ويی) |
| بری | پیروزی،کامیابی؛ فتح؛ غلبه |

| | |
|---|---|
| بهی | وباء |
| پیپوی | موی باف زنان |
| تنۍ | دکمه |
| ځری(!) | قاصد ؛ جاسوس؛ دیدبان تفنگ |
| څاری | پیش قراول؛ جاسوس |
| څڅۍ | ناوه، ناوه دان |
| څری | نشر (رنگ، برکاغذ) |
| خری (!) | سرتنبه، لجوج، مُصِر |
| خوری | پرخور |
| خونی | تحفه یی به مناسبت عروسی |
| ډوری(!) | مترسه ، هراسه ، سیاهی سرفالیز |
| رپی | بیرغ، توغ، پرچم |
| رغی | اصلاح |
| روی | مادرآل ، پیرزن جگرخوار؛ شخص چالاک، گستاخ؛ حریص |
| زوی | پسر |
| ژوی | حیوان، جانور |
| ږوی (!) | شاهد ، گواه (-لووی)؛ کوتل (-گوی) |
| سوی | سوخته |
| سهي | برده بار؛ سم |

| ویي پوهنه | کړبلنګونه |
| --- | --- |
| غړی | نان روغنی هفت لا (اوخولې) |
| غورځی | جست وخیز؛ آب خیزی؛ رعد، بابه غوری |
| کربښی | خط کش |
| کړی | (kṛay) مفعول (نوواژهٔ دستوری) |
| لَوی(!) | دروګر |
| لِوی | ګواه، شاهد |
| مړی | مرده (از فعل مړل: مردن) |
| منی | مطیع، فرمانبردار؛ موافق |
| نیوی | ګرفت؛ ګرفتاری |
| وری | بار (به قرینهٔ وړل (ورل!) |
| ویی | واژه، لغت، کلمه؛ قول، عهد |

را منځته کېږي. د څيز نومونو وندېه پکې ناڅيزه، او د شمېر نومونو وندېه پکې بېخي له نشته برابره ده او هغه دا چې شمېر نومونه له مرستيالکړونو سره له بېلبنتي او ان تربنتي بريده ← غونډيزو کړونو ته وراوړي، لکه (شل کول-بدل)، (له چا سره يوه - دوه کول) او داسې نورې بېلګې.

د نومکړ يوه پېژندنښه دا ده چې يوازې په ناتېرمهال کې بشپړ ګردانېږي او په تېرمهال کې مرستيالکړ (کول-بدل، شول، ول) اړه پيدا کوی او په دې توګه پر بېلبنتي کړاوړي؛ مانا يې دا چې د بېدويه (بېقاعده) کړونو ډېرى برخه همدا نومکړونه دی. ترېي + رابسن (۱۰۵) په يو اړخيز ډول (بېلبنتي کړونه derivative verbs) نومولي، نه (کړشوي نومونه denomi natives). حال دا چې يو ګڼ شمېر ← بېلبنتي کړونه په مختاړو سره هم لرو.

په هر ډول، د تېرمهال اوړون له پلوه نومکړونه د بېلبنتي کړونو يوه سرباري ډله رازېږوي چې شمېره يې څه ناڅه دوه

څله ورلوړوي. د مر ستيالکړ (کېدل-کول) په ملتيا بيا پر←

غونډ يزکړونو او← جوتغونډونو ورسرباري کېږي او شمېرې

يې هماغومره ور لوړولای شي. بېلګې يې، لکه: سم) سمول-

بدل، کوږ) کږول-بدل، مخ ) مخول-مخبدل، چکر) چکر-

چکرول- بدل ، سوړ ) سړول-بدل، غوځ ).غوځول-بدل، پراخ )
پراخول-بدل، ځناور ).ځناورول-بدل.
په اروپايي او بيا ژرماني خپلوانو ژبو کې انګرېزي له دغه پلوه يو
مخکښ دريځ لري. که د پښتو په ګډون نورې ژبې يوه تاکلې سلنه
نومونه پر کړونو اړولای شي، انګرېزي، نه يوازې خپل آر نومونه
نومکړونه کوي، بلکې له يوناني، لاتين او له زړې فرا نسې
رانيولې تر هندي، سامي او نورو پورويپونو ، لکه پخپله آر دود
کړ(فعل) سر ترپايه ګردانوي، لکه: lower-lowers, position-
positions... تر دې چې د e-mail غوندې له دې ويپونو تازه
رغولی نويزی (نيولوجېزم) يې هم له واره پر کړ راړولې، ليکه:
email us!

## ج-۲: نومکړستې او بېلنګونه يې

کړنومونه (deverbatives) او (نومکړونه (denominatives)
سره وبله مخاوی (تقابل) لري. ځکه ، لکه چې وويل شو، کړ

نومونه له کړستې څخه را رغېږي او نومکړونه له نومستې څخه، په دې توګه څه ناڅه، لکه (بېلښتي کړنومونه)، نومکړ بېلنګونه هم د شتو (ولسي) بېلګو له مخې راپرتليزوو (قياسوو)، له دې لاندې ځانګړتياوو سره:

(۱) د لېږند (-و-) او نالېږند (-ېد-) تاړو شتون د آرو کړونو له بېلنګونو سره د نومکړونو د بېلنګونو يوه ګډه پېژندنښه ده داسې چې له نوم (څيزنوم، ستاينوم، شمېرنوم يا (اسم ذات، اسم صفت، اسم عدد) سره نښتي وي ، لکه (لويول-ېدل)، (پړول- ېدل)؛ (اوبول-ېدل)، (لوبول-ېدل)؛ (سمول-ېدل)... .

(۲): (نومکړستې) په ← نوم بېلنګونو، ← نومتړنګونو، ← جوتغونډونو او بېلابېلو ← پرتليزو رغاونوکې هم ښايسته ډېره ونډه پرځای کولای شي

(۳) دا راز کړونه ستاينومونو او بيا يې له ښتو څخه را منځته کېږي. داسې چې بېواکپای (مختوم به حرف صحيح) يې په ر.. مهال کې اوړوني تاړي، لکه لېږنډ .يا متعدي ( -و-) ا.. نالېږنديا لازمي (-ېد-)، ګڼې (جمع- مفرد)، نوږي (نرينه- ښځينه) هغه ورسره نښلول کېدای شي.

(۴) خپلواکپای (مختوم به حرف علت) ستاينوم، لکه (بندي) په يوګړې ښه دغه وړتيا نه لري او (بنديان) يې (بنديانول، بنديانېدل) او داسې ورته ډېرګړي ستاينومونه يې درلودای

شي ؛ بېواکپای، خو په هر ډول په یو ګړې بڼه هم اوړون مومي. په دې لړکې د (خان) په څېر یو چارنوم بیا په دواړو بڼو دا ورتیا لري: (خانول-بدل) او (خا نانول-بدل)، لکه په لنډۍ کې: ... مسلیان خانانوینه

(۵) یونیم خپلواکپای ستاینوم د دغه غږ په غورځن سره د تاړو نښلونګ شونی کوي، لکه له میده>مید-> میدول-مید بدل، له ویلې > ویل->ویلول-بدل؛ له غلی >غلي-> غلیول-بدل، یا له سترې>ستړي-> ستړیول-بدل، له خوشې>-خوشي-> خوشیول... بېلګې بیا په وردګو، تڼیو او نورو کرلاڼیانو کې موندل کېږي. بیا هم دا سې لړه کې بېلګې په نا تېر مهال کې ګردانېدای شي او په تېر کې بې مرستیال کړو کېدون نه لري.

(۶): یونیم کړ، لکه (ګډول-بدل) په ښکاره یو نومکړ بریښي، خو په بېلا بېلو غونډلو کې یې دربمانیزوالی را ډاګیزه کېږي: د (ګډول-بدل) له مانا... ره بشپړ اوړون مومي، لکه: زه وګډېدم، ما وګډاوه یا ګډېږم، ګډوم... ؛ که د (داخلول-بدل) په مانا وکارول شي: پر سینډ ورګډ شوم، او همدا راز د (شر یکول-بدل) په مانا: له چاسره په کاروبارکې ورګډشوم یا ور ګډېږم... په دې توګه په لومړۍ مانا کې له یوه آر کړ سره کار

لرو او په دويمه او دريېمه کې له نومکړ او اړوندو بېلنګونو سره.

(۷) له ځينو نومو څخه، که بېواکپاى هم وي، دومره نومکړونه نه رغوي، بلکې له (کول-کېدل) سره تړښتي کړ رامنځته کو ي، لکه: ځان راته پړانګ کوه مه!

استثنايي بېلګې، لکه له لاس: لاسول-بدل)، له لاسليک (لا سليکول-بدل)، له بربښليک (بربښليکول) چې انګرېزي انډ ول ابمپل (ابمپلول-بدل) يې هم همداسې کېدون لري، مانا يې. دا چې په نا تېرمهال کې لږ تر لږه بېواکپاى نومکړونه له مرستيالکړونو پرته بشپړ اوړون موندلاى شي.

(۸) له آر کړ سره د نومکړ، يو توپيراو پېژندنښه دا ده چې په په بشپړ تېرمهال کې ورسره هرومرو يو مرستيالکړ (کول-کېدل- شول) ملګرى کېږي، که هغه بېواکپاى وي، که خپلوا کپاى)، په دې توګه د نومکړ اوړون (ګردان) دغه برخه پر→ غوڼ٘يزو کړونو اړه پیدا کوي، لکه:

ما سر سپين کړ، ده ځان ژوبل کړ/ زه روغ شوم؛ مالګه مې ميده کړه يا ميده شوه/ غوڅول-بدل (ماغوڅ کړ- زه غوڅ شوم) پرېکول- بدل (ما پرې کړ، زه پرې شوم) .....

دلته بياهم خپلې خبرې راځو: هغه کړ چې په بشپړ تېرمهال کې بې مرستيالکړ اوړون نه مومي، هغه به هرومرو نومکړ

وي. دغه دويه (قاعده) له ليکوال پرته، تر دغه دمه نه بهرنيو پښتوپوهانو رابرسېره کړې ده او نه زموږ د زړې، يا نوې ژبپوهنې کوم داوه ګير!

(۹) ښايي، څومره توپير چې له اوړوني (صرفي) پلوه د آرو بېلښتي ډول کړونو او نومکړونو ترمنځ ليدل کېږي، د بېلنګونو ترمنځ يې هم تر سترګو شي. دغه پرتله يې له اړوندو ليکلړونو څخه ښه ترا راڅرګند پداى شي.

(۱۰) بيا هم پښتو (د ادوارد سپير د ټيپولوجيک وېش له مخې) په تړښتيزه (سېنتيتيکي) وړتيا کې، له انګرېزۍ سره نه، خو له عربي او الماني سره سيالي کولاى شي چې له مانيز او پښو ييز پلوه ان بېلابېل ګڼ شمېر بېوا کپاى پورويزونه، نومکړونو ته راړولاى شي، انګرېزي-لاتين، لکه: سېمېنټول-بدل، کټول-بدل، پلانول-بدل، رېکلامول-بدل، کمپوزول-بدل، ډېموکراتول- بدل، اورګانايزول-بدل، کېپټانول-بدل، سکرترول-بدل، ګورنرول-بدل.

- هندي پورويزونه، لکه: چل (ول-بدل)، چالان (ول-بدل)، چکر (ول-بدل)؛ ټکر (ول-بدل)، ټکور (ول-بدل)، سمبال (-ول-بدل)... ؛ (ليکل)، (لګول)، (وهل)، (بهول) او داسې يو شمېر نور يې خو ګړسره (domesticated) يا راخپل شوي دي.

- عربي ، لکه: تمديول-ېدل، تهديدول-ېدل... همداسې تنزيل،تنظيم، ترويج،تقسيم، انکار، انحصار، فسخ، ضرب، طلب، معاف...، منع، زرع، جمع، فتح، واضح، ځکه له (کول-کېدل) سره وايو چې پښتو چنعړکيز (حلقومي) پايېبواک پر خپلواک (-a)وربدلوو. تطميع، تقبيح، توشيح، توضيح ... را ته بيا دا کابو راکوي چې پښتو تاړي ورپوري ونښلولای شو: تطميعول-ېدل، تقبيحول-ېدل، توشيحول-ېدل... .

- پارسي، لکه:سنج، بسيج،بُرش، چسپ ، پخش، بخش، بار، مهار، سازمان يا پښيمان (-ول-ېدل)... هم همداسې دروا خله.

سم له لاسه د نومکړونو رغېدونکي بېلنګونه، يا نومکړ بېلنګونه، له څو مانيزو او پښوييزو ډولونو سره په بېلا بېلو ليکلړونو کې را لنډولای شو.

۴-۲-۱: نومکړستېه+(-ېد-) ا= څيزنوم شوی ستاينوم يا مانا نوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اټکلا | تخمين ، قياس |
| ارامېدا | آرامی؛ استراحت؛ فروکش |

| ويي پوهنه | نوم کړېبلنګونه |
|---|---|
| ارزانېدا | ارزانی، نزول قیم و نرخ ها |
| اسانېدا | آسانی، سهولت |
| اوږدېدا | درازشدن، درازی، طوالت |
| برېدا | آغاز (شدن)؛ تسلط |
| بسېدا | بسنده گی، تکافو، کفایت |
| بلاربېدا | حامله گی |
| بلېدا | درگیری، آتش افروزی |
| بوختېدا | مصروفیت، مشغولیت؛ سرگرمی |
| بېلېدا | جدایی؛ گسست |
| پټېدا | اخفأ؛ پوشش |
| پرېکېدا | بُرش، قطع |
| پستېدا | نرمی |
| پلېدا | پیاده شدن، پیاده گی |
| پېښېدا | پیش آمد، وقوع |
| تشېدا | تخلیه |
| تودېدا | گرمی، حرارت |
| تورا | افترا، اتهام(بستن) |
| تورېدا | سیاه شدن؛ متهم شدن |
| تیارېدا | آماده گی |
| تېرا | خانه گریز؛متنفر؛ محتاط؛ لرز، توحش؛ |

| | |
|---|---|
| | بیزاری؛ کورکورانه وافتان وخیزان رفتن |
| | لرزاز شفقت |
| ټپرېدا | همان |
| ټولېدا | تجمع، گردهمآیی |
| ټينګېدا | استحکام؛ استقرار (روابط)؛ غلظت |
| جګېدا | برخاست؛ بلنی، اعتلاء |
| جوړېدا | صحتیابی؛ سازش، توافق |
| چاپېدا | طبع، طباعت |
| چوپېدا | خاموشی، سکوت |
| ځورېدا | جور دیدن، زجر، شکنجه (کشیدن) |
| څربېدا | فربهی |
| خبرېدا | آگاه شدن، آگاه |
| خپرېدا | گسترش، اشاعت، انتشار |
| خرڅېدا | فروش |
| خوارېدا | خواری؛ لاغری؛ فقر، فقیر شدن |
| ربړا | تکلیف، ریاضت، محنت، عذاب؛ عمل شکنجه |
| رڼا | روشنی، روشنایی |
| روغېدا | صحتیابی؛ درستی |
| ړندېدا | کورشدن، کوری |
| زړېدا | پیرشدن، پیری |

| ويي پوهنه | نوم کړبېلنګونه |
|---|---|
| زېړېدا | زرد شدن؛ زردگونی |
| زرغا | سرسبزی ، سیرابی،خرمی |
| زرغونېدا | رستن، سبز شدن |
| سپرېدا | سواری |
| سپکېدا | تحقیر (شدن)، توهین (شدن) |
| سپېرېدا | خاک آلود شدن؛ بدبختی، تباهی |
| سپينېدا | سپیدشدن؛ تبرئه |
| ستړا | مانده گی، درمانده گی، خستگی |
| ستړيا | همان |
| ستړېدا | همان |
| ستغېدا | دشواری، صعب |
| ستنېدا | برگشت، بازگشت، عودت |
| سړېدا | سردشدن؛ برودت |
| سما | درستی ، برابری، عدالت |
| سمېدا | اصلاح، درستی |
| ښکارېدا | نمود ، پیدایی؛ شکارشده گی |
| ښکېلېدا | درگیرشدن |
| غټېدا | بزرگی؛ رشد یابی |
| غلېدا | خاموشی؛ اخفأ |
| غوڅېدا | بُرش، قطع |

| | |
|---|---|
| غونډېدا | تجمع، گردهمآیی |
| کږېدا | کجی، انحنأ؛ انحراف؛ بیراهی |
| کلکېدا | سختی؛ استحکام |
| کڼېدا | کرشدن، کری |
| کوچېدا | کوچیدن، رحلت |
| ګډا | رقص، پایکوبی |
| ګډېدا | همان |
| ګرانېدا | گرانی و قیمتی |
| ګوډېدا | لنگ شده گی |
| لمسېدا | تحریک شدن، انگیخته گی |
| لندېدا | ترشدن؛ ملوث شدن |
| لنډېدا | کوتاه شدن، کوتاهی |
| ماتېدا | شکست، شکسته گی |
| مخېدا | رویارویی |
| مرورېدا | رنجیده گی (ازیک دیگر) |
| مړاوېدا | پژمرده گی |
| مړېدا | سیری |
| مینېدا | عاشق شدن، دلباخته گی |
| نورېدا | دیگرگونی |
| نیمېدا | نیم شدن، دوتاشدن |

| | |
|---|---|
| ودانېدا | اعمار |
| ورانېدا | ویران شدن، تخریب |
| وچېدا | خشک شدن، خشکی |
| ورستېدا | پوسیده گی، پوده گی |
| وریتېدا | برشتن، بریان شدن، کباب (شدن) |
| وړیا(!) | مفت، رایگان |
| ویښېدا | بیداری |
| ویلېدا | ذوب، ذوبان |
| هېرېدا | فراموشی، نسیان |
| یادېدا | به یاد آمدن، خطور(کردن) |

۴-۲-۲: نومکړ ستېه + (و) نه-مانا نوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اټکلونه | قیاس، حدس، تخمین، پیشگویی (کردن) |
| اخېړونه | کاه گل کردن |
| ارتادونه | پرتاب کردن |
| ارتونه | (arət-aw-ə́na)کشاده گی، توسعه |
| ارتونه | (art-aw-ə́na)انداخت، پرتاب |
| ارزانونه | ارزان کردن،تخفیف دادن در قیمت |
| ارامونه | آرام کردن،آرامش بخشیدن |

| ويي پوهنه | نوم کړبيلنکونه |
|---|---|
| ارمانونه | حسرت (خوردن) |
| اسانونه | آسان کردن، سهل انگاری |
| اسبونونه | گله بان اسپ ساختن |
| اغزنونه | خاردار ساختن |
| اوبلنونه | رقیق ساختن |
| اوبونه | آبیاری، امعان ، زوبان |
| اوڅارونه | اظهار، افشا گری؛ شهرت بخشیدن |
| اوږدونه | تمدید ، درازکردن |
| بادونه | پمپ کردن؛ خراجی |
| بچونه | نجات دادن؛ صرفجویی کردن |
| برسېرونه | برملا ساختن؛ کشف کردن |
| بلونه | افروختن، درددادن |
| بوختونه | مشغول ساختن |
| بويونه | شمیدن،؛ بوی کشی |
| بېزارونه | بیزارساختن،ازخود راندن |
| بېلونه | جدا کردن، تفرقه |
| پاکونه | پاک کاری، پاکسازی |
| پانگونه | سرمایه گذاری (کردن) |
| پرېکونه | برش، قطع |
| پستونه | نرم کردن، نرمش |

| ويي پوهنه | نوم کړبېلنګونه |
| --- | --- |
| پلنونه | پهن کردن، گسترش |
| تودونه | گرم کردن، تسخین |
| تیارونه | آماده ساختن؛ تدارک |
| تېرونه | بلع؛ فروکش؛ فریفتن، تېرکردن(کابل) |
| ټیټونه | فروآوردن؛ تنزیل ( دادن ) |
| ټینګونه | استحکام؛ برقراری (روابط) |
| جړونه | باهم آمیختن، جرساختن (کابل) |
| جګونه | بالابردن، برداشتن؛ اعتلابخشیدن |
| چاپونه | چاپ کردن، طباعت |
| چاغونه | فربه ساختن؛ فربهی |
| چکرونه | چکر (گردش) دادن، به گردش بردن |
| ځارونه | ایثار(کردن) |
| ځایونه | گنجانېدن |
| ځلونه | تابش؛ بازتاب دادن |
| ځنډونه | تعطیل، تعویق |
| ځورونه | زجردادن، تعذیب |
| څرګندونه | اظهار، ابراز، ایضاح |
| خبرونه | خبرکردن، آگاهی |
| خرڅونه | فروش؛ صرف کردن، خرچ کردن |
| خړوبونه | سیراب شاختن |

| ويي پوهنه | ستاينوم بېلنګونه |
|---|---|
| ټګيجن | فريبكار، خصوصاً در قمار |
| خړجن | خاكى رنگ؛ گردآلود |
| خوبجن | خواب آلود |
| دروغجن | دروغلگو، وعده خلاف |
| دروهجن | فريبكار |
| دوبجن | متعفن، بدبو |
| ربړيجن | مشكلتراش، پرابلماتيک (اپړېدي) |
| زيمجن | نمناک، مرطوب |
| سپېرجن | آلوده با خاک، آرد و مانند آن |
| ښوره جن | شوره دار |
| عيبجن | معيوب، ناقص |
| غاليجن | فريبكار، خصوصاً در قمار |
| غمجن | غمگين |
| غوړيجن | چرب و چركين |
| قارجن | خشمگين |
| كبرجن | متكبر |
| كركجن | نفرت كننده، متنفر |
| كنجن | ناز كننده، طناز |
| گردجن | گردآلود |
| گرومجن | غمگين، اندوهگين |

| ويي پوهنه | ستاينوم بېلنگونه |
| --- | --- |
| گوريجن | فريبكار |
| ماهيجن | ازرده خاطظ، شكررنج |
| مړجن | مردنی |
| مكرجن | مكار |
| ناړيجن | ليروک |
| نمجن | نمناک، مرطوب |
| نوجن | نمناک؛ ريمناک |
| نولجن | غمگين |
| وژغن جن | ساخته يا بافته از پشم بز |
| وږمجن | بويدار |
| ويرجن | سوگوار، غمگين |
| هېرجن | فراموشكار |

(۱۵)-يز (-íz) خورا ډېر خيزنومونه او شمېرنومونه پر ستاينومو اړوي..

| ويي | پارسي مانا |
| --- | --- |
| ارتاويز | ياوه گوی |
| اړخيز | جنبی، جانبی |
| ارتاويز | ياده گوی |
| اړخيز | پهلودار، فرعی، جانبی؛ كناری (آواها) |

| ويي پوهنه | ستاینوم بېلنگونه |
| --- | --- |
| انځوريز | مصور تصویری، ترسیمی |
| انديز | فكرى، مفكوروى |
| اروایيز | روانی، روحی |
| اوريز | شنوایی، سمعی، اکوستیک |
| اووريز | بیره یی، الویولار |
| برخيز | منقسم، قسمی |
| بنسټيز | بنیادی، اساسی |
| بېلگه ييز | نمونه (-یی) |
| پاړكيز | طبقاتی |
| پانگيز | سرمایه یی؛ ذخیروی |
| پرخيز | بی انصاف، فرق گذار |
| پرگنيز | توده یی |
| پڅنيز | مجسمه یی، تندیسی |
| پزيز | انفی، غُنه یی (مربوط اصوات م،ن،ڼ) |
| پڅيز | بدنی، جسمی |
| پښوييز | دستوری، گرامری |
| پنځيز | طبیعی، افرینشی |
| پوړيز | طبقه یی؛ قشری |
| پوهنيز | علمی |
| پېړۍ ييز | سده یی، قرنی |

| ويي پوهنه | ستاينوم بېلنگونه |
|---|---|
| تالوييز | کامی، صوت کامی (آواها) |
| توکميز | نژادی، اتنيکی |
| توليز | وزنی؛ مربوط وزن شعر |
| ټبريز | قومی، قبيلوی، عشيروی |
| ټولنيز | اجتماعی |
| ټوليز | عمومی، عامه، همگانی |
| ټولگيز | گروهی، دستجمعی |
| جگړه ييز | جنگی، حربی |
| جوليز | شکلی؛ لفظی |
| چره ييز | چقماقی (تفنگ) |
| چنغړکيز | قانقورتکی؛ حلقومی (آواها) |
| څرگنديز | توضيحی؛ اصطلاحی |
| څېړنيز | پژوهشی، تحقيقی |
| ختيز | شرقی، مشرقی، مخفف (ختيځيز) |
| خوله ييز | مربوط دهن و جوف دهن (آواها) |
| درستيز | مسلح؛ مقامی در نظامی |
| درغليز | تقلبی، جعلی |
| درمليز | دوايی؛ معلجوی |
| دوديز | عنعنی، رواجی، سنتی |
| دويز | دون همت |

| ويي پوهنه | ستاينوم بېلنگونه |
|---|---|
| دوییز | جفت ، مثنوي؛ قانونی، باقاعده |
| ډلیز | گروهی، دستجمعی، (= ډله ییز) |
| ربړیز | جنجال، جدال کننده، مشکلتراش |
| روزنیز | پرورشی، تربیتی، تربیوی |
| زرغونیز | رویيدنی، هبزشدنی |
| زریز | هزاری، هزار افغانیگی |
| زغریز | زرهدار (= زغروال) |
| زېږیز | میلادی،(زېږدي و زېږديز) نیز گویند |
| ژباړنیز | ترجمه یی، ترجموی |
| ژباړیز | همان |
| ژبیز | زبانی در ارتباط قاموس و مخرج صدا |
| ژبۍ ییز | زبانچه یی (آواها) |
| ساییز | تنفسی؛ روانی |
| سپنیز | تشریحی، توصیفی (ایران) |
| سپوږمیز | قمری |
| ستونیز | حلقی گلویی (فونیم شناسی) |
| سږیز | ریوی، کبدی |
| سلیز | صدی (بانکنوت) |
| سوله ییز | صلح آمیز ، سالمت آمیز |
| سولیز | عقلی،منطقی |

| ويي پوهنه | ستاينوم بېلنگونه |
|---|---|
| سيمه ييز | منطقوی، (سیمییز) نیز نویسند |
| سيميز | سیمی |
| سينگاريز | آرایشی |
| شخړه ييز | متنازع فیه |
| شليز | بیستی (بانکنوت) |
| شننيز | تحلیلی |
| شونډيز | لبی؛ لبیال (آواشناسی) |
| ښوونيز | آموزشی، تعلیمی |
| ښکلاييز | جمالیاتی، استیتیکی |
| غاښيز | دندانی؛ دنتال |
| غريز | کوهی(بیشترینه غرنی گویند) |
| غږيز | صوتی،آوایی، فونیتیکی |
| غوريز | برگزیده ، منتخب |
| غوږيز | شنوا ، گوشی، شنوایی، سمعی |
| غونډله ييز | جمله یی، جملوی |
| غونډيز | عبارتی، فقره یی |
| کاڼيز | سنگی مجازاً سنگین دل، ظالم |
| گاڼه ييز | مرهون، گرو شده |
| گروهيز | عقیدوی، عقیدتی |
| گړنيز | محاوره یی، ایدیوماتیک |

| ويي پوهنه | ستاينوم بېلنګونه |
|---|---|
| ګړيز | واژی، مورفيمی |
| لاريز | خطکشی شده، خط دار، راهدار |
| لسيز | دهی (بانکنوت) |
| لمريز | خورشيدی، شمسی |
| لويديز | غربی، مغربی، مخفف (لويديځيز) |
| لېږديز | انتقالي؛ هجری (= لېږدي) |
| مانيز | معنوی، معنايی |
| مشکنيز | بهره دار، مهره دوز |
| موخيز | هدفمند، هدفمندانه |
| مياشتيز | ماهانه، ماهوار، (مياشتنی) معمولتر است |
| ميره ييز | اندری، اخيافی |
| نړۍ ييز | جهانی، دنيوی (=نړيوال) |
| ننداريز | نمايشی، تمثيلی |
| نوريز | جنسی، سکسی |
| نومېز | اسمی (=نوموال) |
| واريز | نوبتی |
| وټيز | اقتصادی (نامعياری وټه ييز) |
| ورورګلويز | برادرانه |
| وروريز | همان |
| ورهنيز | کسبی، پروفيشنال؛ مسلکی |

| ويي پوهنه | ستاينوم بېلنگونه |
|---|---|
| وژيز | عصبی، دارای عصب |
| وسپنيز | آهنی، آهنين |
| وگړنيز | مردمی (=وگړنی) |
| وگړيز | شخصی؛ مربوط شخص دستوری |
| وېلاړيز | ارادی، تصميمی |
| وينايیز | کلامی، بيانی، گفتاری |
| وينيز | ديدنی، بصری |

## ۷ - ۲ : مانانومبېلنګونه (اسمای مجرد!)

**abstract nouns or substantivised adjectives**

سره، توده، ستړيا، رڼا، لږی، ډېری، سپرلي، درغلي، پښتنواله، پښتنولي، پښتنګلوي، تربګني، پلرګنۍ، سپينا وی، سپينتان، ښهانه، ګرمانه، مړينه، کوشينه، ، تنګه، تنګيا، تنګسه، تنګسيا...

ترستاينومبېلنګونو(وصفي اشتقاقونو) روسته د نوم بېلنګو نو(اسمي اشتقاقونو) دا ډله ځکه تر څېړنې لاندې نيسو چې تر نورو بېلښتي ډلو، له ستاينومونو سره ډېر نژدې بوالی لري. په بله وينا، لنډ پرلنډ ترې رازبرېدلي او له همدې لامله يې پر ځيز نومو او ښتي ستاينومونه substantivised adjectives بولي.

د ځيز نومونو او يو پاموړ شمېر ستاينومونو (اړتيا، نارو غتيا، سترتيا، ستومانتيا، ناروغي، رنځوري...) ترځنګ، په يونيم شمېر نوم (يووالِه، دوه والِه...) او بيا لږو ډېر په کړو لونو (قيدونو) رغېدلي مانا نومونه هم د يادونې وړ دي.

هرګوره، (مانا نومونه) نومونه ورته په دې کاروو چې بشپړه ډېرى يې نانګېر (نامحسوس، مجرد) نومونه دي او نګېروړ هغه يې، د چا خبره يوه ببدودي (استثنأ) جوړوي. داچې استاد رښتين (۷۱) د دوديزې (عربي) نومونې په پېښنو (مجرد وصفونه) بللي، نه (مجرد اسمونه)، ټيک نه بربښي، هسې خو ستاينومونه، شمېرنومونه او د ځيزنوم نور ټاکنده (موديفايرونه) بې له هغې هم مانا نومونه (اسماى مجرد) بلل کېږي!

ولريښ (۷۹) يې ځانګړتيايي (nomen qualitatis) بولي چې يوه ځانګړتيا او ځرنګتيا (صفت، خصوصيت) نوموي، لکه: لويي يا لويوالى، ويښيارتيا، مېړانه...

ځيزنومونه (substantives) هم پرخپل وار پردوو غورو ډولو وېشنه مومي: (۱) پژنومونه يا زاتنومونه (concrete nouns) او (۲) مانانومونه يا مجرد نومونه (abstract nouns).

په هر ډول، مانا نوم (مجرد اسم، د پژنوم (اسم ذات) پر وړاندې د ځيز نوم يو ډول دى او په خپلواکه توګه پېښوييز چار پر ځاى کوي. حال داچې درې نورنوم ډولونه (ستاينوم، شمېر

نوم، نومځرى) يې د ټاكند (موډيفاير) چار پرغاړه لري او د غو نډلې له خپلواكو جوتغونډونو (constituents)، په نورو ټكو، جوت وييغونډونو (syntagmas) څخه شمېرل كېداى نه شي.

۱- په -زور (a-) روستاړي چې د مانا نومونو (مجردو اسمونو) په تړاو د پښتو له خورا ډېر زېږو روستاړو څخه گڼل كېږي. ځكه دغه نښكه هم مهاله ښځينه پايله هم ده، په بله وينا، د ستاينومو زياتره ښځينه انډولونه هممهاله مانيزيا مجرد څيز نومونه هم دي، نه يوازې يوستوي، بلكې بېلښتي او تړښتي هغه هم، لكه: روغ - روغه، جوړ-جوړه، خړ-خړه سپين-سپينه، ككړه (لكه چې وايي: ثوك يې په لكړه خوري او ثوك په ككړه) او داسې بېشمېره بېلگې چې موږ يې د بېلښتي ډولو په ترخ كې يو← بېلگه يي ليكلړ په سر سركې وړاندې كوو. په نورو بېلابېلو روستاړو رغښدلي بېلښتي مانانو مونه هم ورپسې پر خپل خپل وار پر بېلا بېلو ډلو ټپلو وېشو.

۲- په لنډه (-ي)، لكه: ارزاني، اساني، گراني، بډايي، دو ستي، دښمني (شافيف ۲۰)، وروري، برابري، (خوري+) بيا له وروري) سره جوړه راتلاى شي لكه چې وايي (خوري ورو ري به كوو، حساب ترمنځه)، ځواني، روغي، ناروغي رنځو ري، استازي (رسالت، نماينده گي)، درغلي (تقلب)، تركاڼي، ټگي، وېښياري، خوښي، ښادي، بدي، نيكي، انډيوالي، كليو

الي، ځانګوالي، هېوادوالي، ملګري، نيکمرغي، بدمرغي، سيالي، لويي...

۳- په زوروالهـ ی، لکه :کمی، زياتی، تيری، لړی، ډېری، بری، سمی (رښتين ۲۲) ؛ د ننګرهار خواته د (خوشالي) تر ځنګه (خوشالی) هم ويل کېږي؛ (بېلی) پق د (توپير، تميز) اواستاد صميم (وييزېر مه ۳۵) د يونس د شعر له مخې (بېلتون، بېلوالی، جلاوالی) مانا کړی دی:

د عاشق زړګی به ستا په زړه کې ګرځي

او بېلی به دې پر زړه چغزی اکوړ شي

۴: -زورکي(ə́-) د ستاينومو ترڅنګ، له يونيم ځيزنوم سره مانا نوم رغوي:تبره، پڅه، لنډه، سره (سرخها؛ سرخی؛ طلا)؛ . اوښتې او هممهاله ډېرګړې بڼې: اوږده، پاسته، ساره (سور) يا پساره (پسور)... .سانړه، غارمه، تاوده، واړه (د پښې واړه مې واوښتل).

۵: په -الف (ā́-) چې لږو ډېر د کړ مانا بېلنګونو او نوم مانا بېلنګونو ترمنځ يوګډ روستاړی دی، کړوال، لکه: زرغا، ځغلا، خندا، ژړا، ګډا، نڅا، رڼا، شنا (مستی)، لګيا، ووريا .... ويناله آره درې توکيزه (وی+ن+ا) ده، داسې چې لومړی په کړستې (-وی) له(-ن) سره بېلنګ رغولی او بيا هله وروپورې (-ا) نښلول شوی دی، همداسې (بر ښښنا) هم

دراخله؛ نوموال هغه، لکه: تورا ، ستړيا ، غلا جليا ، بسيا، کسيا (ميده)، ښکلا ، سما ، زلما او داسې نور.

۶: په – يا (-yā́)، چې د الف بلګړ، يا په بله وينا ، د الف پر مختيايي بڼه ده او زياتره په ستاينومو پورې نښلي، لکه: چپيا (چوپيا)، غليا ، بديا ، سميا ، تنګيا (نور دره)، مليا د ملا ترڅنګه د ملګرتيا په مانا (د ملکيار غرشين په شعر (د سليمان ماکو تذکره) کې:

غازيانو راشئ - د... په ملا شئ- هېواد د بل دی-دا مو يرغل دی- غازيانو ګورئ- ښبتن مو مل دی ...)؛

خو (مليا) ځينو ويناوالو له (مل) سره همماني کارولی دی: انصاري (وييزېرمه۲۰۱):

چې عاشق له معشوقې سره مليا شي
پرده نورڅه بارې نشته بې بلاغه

شاه فاضل (هماغه):

ته مليا راباندې وکړل اوازونه
نه هغو وينې کړم چې وو زما څوک ملونه

وييزېرمې (۱۹۶) متيا (ماتېدونی...) په دې شعرکې په ښه کړې ده:

عاقبت به يوه ورځ درڅخه مات شي
که هرڅو په احتياط لوښې متيا وړې

(ښتيا) هم کېداى شي، له آره له همدغه راز جوړونو څخه وي، لکه څنګه چې په زړه پښتو (ساکي) او اوېستا کې هم (رشته) ويي راغلي او مورږ د (حق) مانا ونجي (سېمانتېزم) په توګه راژوندى کړى دى (Bailey ۱۳۷).

۷: په - توب(-tób) ،لکه: لېونتوب، خرتوب، سپيتوب، غوييتوب، منځګړيتوب، سړيتوب، نارينتوب، وېښيار توب، دوبيتوب، نايي توب، مشرتوب، هلکتوب، کونډ توب، مېړه توب، مرورتوب، زړور توب، سپېڅلتوب، پيا وړتوب، ناو لتوب، غښتلتوب؛ دا روستاړى د لاتيني او الماني -توم او انګليسي -ډم (Kingdom ,königtum ) همآرى اټکلېداى شي..

۸: په - تيا(-tyā́-) ، لکه : مشرتيا ، کشرتيا ، ځوړتيا ، لوړتيا ، جوړتيا ، ناجوړتيا ، روغتيا ، ناروغتيا ، رنځورتيا ، مريض تيا ، هوښيارتيا ، زړورتيا ، پښېمانتيا ، مرورتيا (ښتين ۲۰).

لېونتيا ، مېړنتيا ، اړتيا ، ارتيا ، پراختيا ، پرمختيا ، بلدتيا ، زوړتيا (زړتيا)، پياوړتيا ، سپېڅلتيا ، ناو لتيا ، بېلتيا ، نا پېيلتيا ، چالاکتيا ، سستيا (سستتيا) ، بوختيا ، ارامتيا ، نا ارامتيا ، پنډتيا ، ملګرتيا ، کېناستيا ، خړ (پړ) تيا ،ګډوډتيا ، ړوندتيا ، کونټيا ، ملامتيا (ملا متتيا) ، سلامتيا ....

۹: په -ستيا، لکه ميلمستياکې د (کښېناستيا، پرانېستيا...) يا بل ورته ويي تر اغېز لاندې او يا هم د خوږغږي له کبله د (- س-) ډېرن اټکل کېدای شي؛ پيوستيا په (-تيا) او (-ستيا) دواړوکې راوستای شو.

۱۰: په -تون، لکه: بېلتون، پيوستون، کونډتون، بنتون، پېغلتون، لنګتون (وقت وحالت زايش؛ زا يشګاه) په دې روستاړي نور بېلنګونه هم شته.

۱۱: په -تانه، لکه: سپيتانه، مېرانه، ښهانه، ګرمانه(جرمانه) (تانه) هم لکه پاس د (مانيز روستا ړي په توګه د- تون، يو بلګړ يا هم اوښتې پېر بريښي

۱۲:په-تان، لکه: سپينتان (د سپيناوي ترځنګ اپرېدی ځېل) هم له (-تون، -تانه) سره همغږي لري..

۱۳: په - ينه ína، لکه: مړينه، پلرينه، کمکينه، وړکينه، کوشينه، هلکينه، ځلمينه، لورينه او يا په نيمواک (-yə́na)، لکه: هوساينه، لورېينه، پېرزوينه، پوخلاينه، غوراينه، لوينه، بډاينه، بوډاينه، جلاينه، ډاډېينه... دا له ← کړنوميز روستاړي ( - نه ) او ← نومکړيز (-ينه) سره همجوليزوالی او ګډوالی لري.

۱۴: په -ګنه، لکه: ښېګنه د (ښېګړې) ترځنګ يې پرتلويزی انډول (بدګنه) هم نوې رادود شوې ده.

۱۵: په گنی، لکه: ، خسرگنی، ماما گنی، مورگنی(مادر خېل خويشاوندان مادری)، پلار- پلرگنی(پدرخيل) او نيا گنی ابو نصر فراهي د (نصاب الصبيان۷) په يوه بيت کې داسې کارولې:

پلارگنی پدری خويش و اقربا باشد

نياگنی شده خويشان ز جانب مادر(ژبپانگه۵۸۳)

په کاروه، دغلته يې (پلارگنی) له(مورگنی) سره جوړه کړی وای او له (نياگنی) (سره( نيکه گنی)!

۱۲: په -گني، لکه: تربگني،(ب) د لته د بنسټ توک دی، ځکه (ترب-) له آره تربور دی، چې لنډون يې مونډلی دی چې د ورته غورځن بله بېلگه په (غوبلرگی= غوب (ل)+لرگی) کې ليدل کېږي.

۱۷: په -واله، لکه :يوواله، پښتونواله (پښتنواله)، مغولو اله، مومندواله، ځائيبواله، ترکانيبواله، ولسواله (رښتين ۲۱)، کوشنيواله، رښتينواله، هلکواله، غلواله، عزيزوا له؛ نوې بېلگې يې، لکه: هېوادواله (پاتريوتېزم)، ختيځواله، لويديځوا له، نړيواله، اروپاييواله، عربواله، تولنواله يا ټو لنيزواله (سوسيا ليزم)، پرگنواله (کمونېزم)؛ مچواله، سړيو اله... (استاد حمزه)؛

ستر خوشال (ختکواله) کارولې:

خټکواله بلنځه ښه زما تر ملا ده
نه ښېوه د نوکرۍ پر نصبونو

همدا راز یې (مرييواله) درواخله چې موږ وار له مخه په نويزونو کې راوړې وه:

ماچې ستا د مرييوالې لافه وکړه
د اورنگ غوندې بادشاه زما مريی دی

(وييزپرمه ۱۹۹)

او حميد مومند بيا چې د گړوييزونو په دودوونه او د نويزونو (نيولوجېزمونو) په رغاونه کې يې له خټک سره ډغرې وهلې او د منځني ادبي پېر تر نورو گردو وييناوالو يې، خو له هره پلوه ميدان وړی دی، (مغولواله) د (دښمنۍ) په مانا رارغولې، که څه هم ښايي د هماغه خټک له ((مغول دښمنۍ)) يې الهام اخېستی وي:

پرې به نږدم مغولواله د رقيب ستا...

۱۸: په -والی، لکه: يووالی، مړوالی (موړوالی)، پخوالی (پوخوالی)، پستوالی (پوستوالی)، کږوالی (کوږوالی)، سړ والی (سوړوالی)، کنهوالی (کونهوالی، زړوالی (زوړوالی)، وږ ستوالی (وروستوالی)، درنوالی(درونوالی)، سپکوالی، خوږ والی، تريخوالی، تريووالی، تونډوالی، پخوالی، ستړوالی، لويوالی، غټوالی، کوشنيوالی، کلکوالی، ټينگوالی، ډډوا

لی، نریوالی، پلنوالی، اوږدوالی، لنډوالی، پنډوالی، سور والی، تورولی، سپینوالی، برګوالی، ژیړوالی، چیتوالی، اوچتوالی، پښتونوالی (پښتنوالی)، سموالی، جړوالی، شتوالی، نشتوالی، ډېروالی، لږوالی، ښه والی، بدوالی، تکړه والی، کوروالی (جماع، هممهلاستی).

۱۹: په -ولي، لکه: پښتونولي (پښتنولي)، وروررولي، خپلولي، پلرولي (پلارولي)، مورولي، خورولي، تربورولي، غریزولي، تېرولي، کامولي، ولسولي، هېوادولي، رښتینولي، خېښولي، ترورولي، ماما ولي، کاکاولي، سپینولي (همداراز: رښتین ۲۱).

۲۰: په -وال، لکه: لنګوال (=لنګون، لنګتون)، هرګوره ستا ینومیزې بېلګې یې ډېرې دي.

۲۱: په -وي، لکه: خپلوي؛ دغلته (-و-) یو ډېرن (افزایش) برېښي.

۲۲: په وی، لکه ستروی؛ زګېروی، سکاروی... ښایي، له ارکاییکو بېلګو څخه یې وي.

۲۳: په- اوی، لکه: درناوی، سپکاوی، سماوی، بداوی، لوړاوی، غټاوی، ورکاوی، مخاوی (مخامخی، تقابل)...؛ دا روستاړی، لکه -ون، - ښت، -ینه... ، کړ نومیز او نومکړنو میز رو ستاړي هم دي، د دې لړې زړې او نوې بېلګې لکه:

نړاوی، پخاوی، رغاوی، خپراوی، څرگنداوی، رڼاوی، بېلاوی، سماوی....

۲۴: په -گلوي، لکه: پېژندگلوي، پلرگلوي، پښتونگلوي (پښتنگلوي)، رښتينگلوي، تربورگلوي، عزيزگلوي، مور گلوي، خورگلوي، وروړگلوي، پووندگلوي، هوساگلوي....

۲۵: په -گلي، لکه: پېژندگلي د پېژندگلو ترڅنگ، وروړگلي، تربورگلي؛ گلوي، گلي او گلو درېواړه د يوه يوازېني گړ ځېلونه يا بلگړونه (الوفونونه) دي.

۲۶: په - انه ، لکه: مېړانه، وړانه، گرمانه (جرمانه)، ښهانه؛ يا په پای خج ، لکه يارانه، مشرانه، نيکانه، سرانه، وړانه (غلبه، مو فقيت؛ بُرد)، پړانه (مغلوبيت؛ باخت؛ ملامتی)..

۲۷: په - گير، لکه: شوگير (بيخوابی)، برگير (زکام حيوانات).

۲۸: په -گيرنه، لکه: ډاډگېرنه ، يادگېرنه .

۲۹: په -سه او-سيا، لکه: تلوسه، تنگسه او تنگسيا.

۳۰: په - لي، لکه: سپرلي ( رښتين ۲۳ ).چې يې (سپرلو) يې د همانيز ځېل په توگه هم دود لري او استاد احمدعلی کهزاد پرې يوه رساله کښلې ده.

۳۱: په -وښ، لکه : سړي وښ(سړيتوب،آدميت، انسانيت)؛ هرگوره په -وښه، لکه مېړوښه (مړوښه) بيا لـه(-ي).روستاړي سره پر مانا نوم اوړي.

۳۲: په -وخه،-وخي، لکه: سپنډوخه(توپ بازی)، کوټخه()، تودوخه (تودوخي)؛ کېدای شي، (سړوخه) يې د ← پرتلويي په توگه هم را وپنځېږي؛ دغه روستاړی بيا په لاسخه (مالک، ذوليد) کې يو ځيزنومرو ستاړی دی!

۳۳: په -يز او -يزه ، لکه : بنديز، لنډيز؛ ارتاويزه (سخن بيهوده)؛ يا ځيزنوميزې بېلگې:وړانديز (پيشنهاد) او همد ارنگه کليز (تقويم) چې له آره کليزه ده او هغه هم نن سبا له (کاليزه =سالگرد) سره هممانيزه کارول کېږي.

۳۴: په -وله، لکه : گډوله چې له پارسي (گلوله، کلوله) سره هم همغږي لري.

۳۵: په - بل، لکه : لنده بل چې زوړ بل (پل) اټکلېدای شي.

يادونه : ځينې مانا نومونه، لکه : لوږه يا ولږه او تنده داسې بريښي چې د بر پخوا تر يوه غږونج روسته له خپلو اړوندو ستاينومونو ( وږی او تږی ) څخه رغيدلي وي.

= په بخوله(ناورين، فاجعه) او مخوله(عذر و زاری) کې -وله

= بنديگرت ( بېنوا )، نزدېکت او انسانگرت د عربي په پېښو جوړې شوې بېلگې ښکاري.

= په بنسټ او کنسټ کې - سټ بیا یو زوړ مانا نومیز روستاړی برېښي چې انسټ (شنده ونه؛ یو راز بوټی) بیا یو پژنوم (زات نوم) دی.

= په کنهوخ (کرمانند) کې (- هوخ) هم غړ پوهیز- اېټېمو لوجیک سپیناوی غواړي او همداسې نور ورته رغاونې دروا خله چې تر ډېره پق راخوندي کړې دي.

= په مره خوړ، مرهی، مرهکه یا مړیکه (تب دق و سل) کې (- هی، هکه یا - یکه) هم لکه پاس سپیناوي وړ روستاړي دي. همداسې (د پق) په مره خوی (خوراک مغذی)، لنډغریالنډهر (عیاش، ماجرأ جو) او داسې نورو کمپېښو بېلګوکې دروا خله!

## ۷-۲: د بېلښتي مانا نومونو ليکلړونه.

لکه په سرکې چې نغوته وشوه، (زورa-) بېلښتي روستاړي، په نورو ټکو، پښوييزه (ښځينه) پايله د نورو ډېرو نوم ډولونو تر ثنګ، نژدې له ګردو ستاينومونواو ستو سره بې کچه مانا نومونه رغوي، نو اړ وځو، له نورو زورپايو مانا نومونو سره د دغو ډېر زېږو بېلنګونو يوه غوښن غورچاڼ راونغاړو:

۷-۲:-۱ په - زور(a-)

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اباده | آبادی |
| ارته | فراخی، وسعت |
| اړه | نياز، احتياج؛ ارتباط |
| اسانه | آسانی |
| بده | بدی، رنجيده گی |
| بربنډه | برهنه گی |
| بره | بالايی، بلندی، اعتلأ |
| پټه | اخفأ؛ دزدی |

| | |
|---|---|
| پخه | کوندی |
| پخه | پخته گی؛ نزج |
| پړه | ملامتی؛ مغلوبیت |
| پسته | نرمی، ترمش، ملایمت |
| پنډه | تجمع، گردهمآیی |
| پوهه | دانسته گی، دانش، علم |
| پېښه | (بافشارآغازی)واقعه |
| پېښه | (با فشارانجامی) تقلید |
| ترخه | تلخی؛ مشقت، دشواری |
| تړه | عهدوپیمان؛ قرارداد |
| تشه | خلاء، خالیگاه |
| توده | گرمی (توده پرتوده: گرماگرم) |
| توره | سیاهی؛ سیاهکاری؛ بدنامی |
| تېره | گذشته |
| ټوله | گدایی؛ فراهمآوری پول برای امورخیریه |
| ټینگه | استحکام، شدت؛ اصرار |
| جوړه | توافق؛ آشتی |
| جړه | درهمی و برهمی؛ معضله |
| ځوړه | نشیب |
| څکه | چشک، لب چش |

| وېي پوهنه | د بېلښتي مانانومونو لیکلړونه |
|---|---|
| خړه | تیره گی |
| خوږه | شیرینی |
| درنه | سنگینی، گرانی؛ وقار |
| ډکه | پری، مملوبودن |
| روغه | توافق؛ آشتی |
| زړه | کهنه گی؛ پیری |
| ژوره | ژرفا، عمق |
| سپرغه | چاه کاریز |
| سپرگه | سخن زشت و ناسزا |
| سپره | سواری؛ دختری که به مثابهٔ خونبهای قتل و رفع خصومت به پسر یا برادر مقتول داده شود. |
| سپکه | توهین و تحقیر |
| سپوره | خشکی، بیشتر در ارتباط نان بدون قاتق |
| سپېته(!) | قین و فانه، شکنجه (=ښپېته) |
| ستغه | زشتی؛ دشواری |
| سخته | دشواری؛ ممسکی |
| سړه | سردی، ضد گرما |
| شاړه | زمین لا مزروع و جنگلزار |
| شخه | بیشتر با (شولانگه) یعنی تنش |

| | |
|---|---|
| شمېره | شمار، شماره، عدد؛ رقم (شمېرې: اعداد و ارقام) |
| شنده | هیجان؛ تمسخر؛ اسراف، زیاده روی، |
| شوړه | پارچه تکهٔ صاف کردن مایعات |
| شوغه | مویهای درشت و شخ (ایستاده) |
| شوکاره | خراش ناخن، خراش پنجهٔ حیوان و پرنده |
| شومه | عصارهٔ میوه، جوس؛ خیرات شب اول مرده؛ پاسی از شب، مقدار طعام یکوقته؛ چقوری حصهٔ اول قبر |
| ښانده | شناخت، آشنایی، معرفت |
| ښکانځه | دشنام (= کنځله، زورله، ژیړه...) |
| ښنده | افراط و مبالغه |
| ښه | خوبی، نیکی؛ نفع |
| غټه | کلانی، بزرگی؛ سراسری |
| غونډه | همآیش، نشست، محفل |
| کرښه | خط (=لیکه)؛ سطر |
| گرمه | ملامتی؛ اتهام |
| گروهه | عقیده |
| گناهگاره | کفاره، جریمه |
| لنده | تری، رطوبت؛ قاتق |

| | |
|---|---|
| لوړه | بلندی؛ اعتلأ |
| نادوده | غیرمعمول یا غیرعادی بودن |
| ناسته | نشست، نشسته گی |
| ناسمه | غلطی |
| ناکاره | بدی؛ نادرستی |
| نانډوله | بی توازنی؛ تزلزل؛ ناشایسته گی |
| نرمه | نرمی، انعطاف |
| نره | مردی، مردانه گی |
| ننگه | حمایت، پشتیبانی |
| نَوسه(!) | زمین مرطوب |
| نوسه(!) | (núsa) کلید |
| نوسه | (nwása) چشک، لب چش |
| نوغه(!) | |
| | (núγa) درخت کوهی بادانه های سیاه |
| نوکاره | خراش ناخن |
| نوکه | (núka) نوک قلم؛ قبضه (-لگېدل، ښخېدل) |
| واره | موقع، فرصت؛ فایده |
| وچه | خشکه، خشکی؛ (لوبه) وچه (برآعظم) |
| ودانه | آبادی، عمران |

| | |
|---|---|
| ورانه | ويرانی، خرابی |
| ورکه | نبود، فقدان، ضیاع |
| ولاړه | ایست، توقف؛ قیام |
| ويجاړه | ويرانی، خرابی |
| ويښه | بیداری |
| هېره | فراموشی، نسیان |

۷-۲-۲: -ي í- يوازې ستاينومونه پر مانا نومونو اړوي.

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اړايي(!) | احتیاج، قحط |
| اړوندي | همبستگی، مربوطیت، تابعیت |
| اړي | احتیاج، ضرورت، صرفه |
| اساني | آسانی، سهولت |
| استازي | پیامبری (پیغمبری)، رسالت، نمایند گی (سفارت...) |
| اغېزمني | موثریت |
| انديالي | تفکر؛ اندیشمندی |

| | |
|---|---|
| انډيوالي | رفاقت، همراهی |
| بدمرغي | بدبختی |
| بدي | بدی، دشمني، عداوت، مخاصمت |
| بډايي | توانگری، تمول |
| بې ارزي | بی اهمیتی، بی ارزشی |
| بې پامي | بی اعتنایی ،بی توجهی |
| بې پتي | بې آبی، بی عزتی، بی ناموسی |
| بېچاري | بی کاری؛ ناچاری، ناعلاجی |
| بېځواکي | ناتوانی، بیچاره گی |
| بېخوبي | بی خوابی |
| بېخوندي | بی مزه گي، بی رونقی |
| بېډاډي | بی اطمینانی، عدم اطمینان |
| بېدولي | بی رونقی، بی نمودی |
| بې ژبي | بیز بانی؛ وعده خلافی |
| بېسري | بی سری، خود سری |
| بېسولي | بیعقلی، بیخردی؛ بی منطقی |
| بېکاري | بیکاری |
| بېکوري | بیخانگی، آواره گی، بی خانمانی؛ مجردی |
| بېلاري | بیراهی، گمراهی، انحراف |

| ويي پوهنه | د بېلبنتي مانانومونو ليکلړونه |
|---|---|
| بيلمانځي | بی نمازی، حالت حیض ونفاس، جنابت |
| بي مخي | بی لحاظي ، بی سپاسی |
| بېواکي | بی اختیاری، ناخود مختاری بدون استقلال |
| بېوزلي | بیچار، عَجز ، محتاجی |
| بېوسي | همان |
| پدولي | چُغلی، غمازی، سخن چینی |
| پراخي | فراخی، وسعت، فراوانی |
| پزي | تنومند |
| پښېماني | پشیمان، ندامت |
| پلوي | طرفداری؛ طرفدار |
| پليتي | پلیدی، نجاست |
| پنډولي | کسب و پیشه، پنځه چیني، و میوه چیني |
| تودوخي | حرارت، گرما ، گرمی |
| توركښي | عسکری، عسکریت، نظام |
| ټګماري | مکاری، غداری، خاینی، دغابازی، جعل کاری |
| ټګي | همان |
| جواري | قمار، قماربازی |
| چټلي | چتلی، کثافت |

| ويي پوهنه | د بېلښتي مانانومونو ليکلړونه |
|---|---|
| چوغلي | غمازی ، سخن چینی (=چوغلگري) |
| ځانځاني (!) | خود خواهی، تن به تنهایی، جان به جانی، بی اتفاقی |
| ځانماني | خود پسندی، خودبینی |
| ځواني | جوانی، شباب |
| څارنوالي | داره وکالت عامه ، نیابت عامه |
| څپڅاندي | نوسان، عدم استقرار |
| څرگندويي | تمثیل ، توضیح ، فصاحت ، نماینده گی |
| څلوېښتي | چهل روز نقاس، روز تولد ومرده و غیره |
| خبرلوخي (!) | سخنوری |
| خبريالي | عیبگویی ؛ سخنوری؛ خبرنگاری |
| خپلسري | خودسری |
| خپلوي | خویشی، خویشاوندی، (-و-) یک افزایش است،مانند ستروي(سترگی) |
| خرېني | خرچرانی؛ خرکاری |
| خشنگي | گستاخی، شوخی |
| خوابدي | آزاده گی، رنجیده گی، رنجش |
| خواري | ذلت، خواری، زحمت؛ کسب وکارو مزدوری؛ مفلسی، تهیدستی |
| خوږلني | شیريني، لذت ، چیزی شیرین |

| ويي پوهنه | د بېلبنتي مانانومونو ليکلړونه |
|---|---|
| خوښمني | رضایت ، تسکین ، خوشنودی، رضامندی |
| خوښي | همان |
| خپښي | خویشی، خویش از راه ازدواج |
| خندي | هرزه گی، مسخره گی، ریشخندی، بیباکی |
| درغلندي | فریبکاری، ساخته کاری، اغواگری |
| درغلي | همان |
| دښمني | همان دشمن، عداوت |
| رښتينولي | صداقت |
| رښتيني( رښتوني) | همان |
| رنځوري | مریضی، بیماری، رنجوری |
| رڼايي | روشنی، درخشندگی |
| روښنايي | روشنی، وضاحت |
| روغي | صحت، تندرستی، صحتمندی؛ مصالحه |
| زاري | عذر و زاری، الحاح |
| زاغزوغي | غمازی، سخن چینی |
| ستروي | عظمت ، بزرگی، تکبر، نخوت |
| ستوماني | ماندگی، درماندگی، خستگی |
| سختي | سختی، دشواری؛ ممسکی |

| ويي پوهنه | د بېلښتي مانانومونو ليکلړونه |
|---|---|
| سنت گري | ختنه سوری و مراسم ختنه سوری |
| سواني | آسانی، سهولت |
| سيالي | همسری، همبازی، آنبازی، رقابت، همچشمی |
| شاتينگي | پشتيبانی |
| شپني | شبانی، چوپانی |
| شتمني | دارایی، تمول، ثروتمندی |
| ښادي | شادی، برپایی مراسم عروسی، ختنه سوري... |
| غالي | فریب وحیله گری (در قمار، شطرنج) |
| کالخوايي | اختیار داری و سر پرستی خانواده گی |
| کرگري | کشاورزی، دهقانی |
| کنجوسي | بخیلی، دون همتی |
| گډوډي | آمیزش، درهمی برهمی، بینظمی |
| گراني | گرانی، قیمتی؛ دشواری |
| گوندي | جانبگیری؛حزبیت؛منسوب به حزب |
| لالهاندي | سرگردانی، دربدری، آواره گی |
| لټي | تنبلی، عطالت |
| لنډاکي | کوتاه نظری، کوتاه اندیشی |
| لويي | بزرگی، کلانی، سُترگی |

| | |
|---|---|
| مخاوي | روشناسي، رويداري |
| مړوښي | زناشويي، شوهرداري (= مېړوښي) |
| مشري | بزرگی، سرکرده گی، رياست |
| ملگري | همراهی، رفاقت، ياری |
| ناځواني | ناجوانی، نامردی |
| ناغېړي | سهل آنگاری، اهمال |
| نهيلي | نوميدی، نا اميدی، مايوسی |
| وداني | عمران؛ تعمير |
| وراني | ويرانی، خرابی |
| وروري | برادری |
| وزگاري | بيکاری |
| ويجاړي | ويرانی، خرابی |
| ويزاري | بيزاري |
| هيله مني | اميدواری |

۲-۷-۳: په - توب روستاړي

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اروړه توب | آميخته گی؛ لکنت زبان |
| اړتوب | احتياج، محتاجی |
| ازمارتوب | مکاری، فريب |

| ويي پوهنه | د بېلبنتي مانانومونو ليكلړونه |
|---|---|
| اسانتوب | آسانی |
| بېمانتوب | بی همتی، بی غیرتی، بزولی، بي ایمانی |
| پیاوړتوب | نیرومندی، توانمندي؛ بزرگواری، فضیلت |
| پېغلتوب | دوشیزه گی؛ بکارت |
| تكړه توب | توانایی |
| تلاتوب | بقراری، نا آرامی تب و تاب |
| ځلمیتوب | جوانی، شباب |
| ځناورتوب | جانوری، جانورخویی |
| خنگ توب | حجالت ، شرمنده گی |
| زړتوب | پیری، سالخورده گی، کهنگی |
| زړورتوب | دلیری، دلاوری |
| سپیتوب | سگ منشی |
| سپېڅلتوب | پاکیزه گی |
| سپینږیرتوب | ریش سفیدی |
| سړیتوب | آدمیت ، انسانیت |
| شاړتوب | لامزروعی ؛ بدویت، بي تربیه گی |
| شنډتوب | بی ثمری، بی حاصلی، عقامت، غیرفعال بودن |

| | |
|---|---|
| ښاغلتوب | وقار؛ مقبولی |
| ښکليتوب | خوب رويی، قشنگ،زيبايي |
| غښتلتوب | قوتمندی، تقويت |
| کشرتوب | خوردی، کهتری |
| کمکيتوب | همان |
| گاونډيتوب | همايه گی، همجواری، هم کوچگی |
| گرمتوب | الزام ، ملامتی |
| لېونتوب | ديوانگی |
| مرييتوب | غلامی، بنده گی، برده گی؛ محکوميت |
| مشرتوب | کلاني، مهتری ؛ سرکرده گی |
| نارينتوب | مردی، مردانه گی |
| نرتوب | مردی |
| وړتوب | لياقت، شايسته گی |
| وړکتوب | کودخی، طفوليت |
| ويښتوب | بيداری |
| هلکتوب | بچه گی |

۷-۲-۴: په - تيا

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| ارامتيا | آرامی، رفاه، آسوده گی |

| | |
|---|---|
| ارتیا (ارتتیا) | فراخی، گسترده گی، وسعت |
| اړتیا | نیازمندی، احتیاج |
| اربکتیا | منسوب به اربکی (ملیشهٔ قومی) |
| اسانتیا | آسانی، سهولت |
| بشپړتیا | تکامل، کمال، اکمال |
| بېخوکتیا | بیکسی |
| بېسدتیا | (بیهوښتیا) بیهوشی |
| بېلتیا | جدایی؛ ممیزه |
| پیاوړتیا | نیرومندی، شایسته گی |
| پرمختیا | پیشرفت؛ انکشاف؛ رشد و ترقی |
| پراختیا | وسعت، توسعه |
| ترینگلتیا | فشرده گی؛ تنش |
| ټینگتیا | محکمی، استحکام |
| چټلتیا | ناپاکي، پلیدي، لوث |
| چټکتیا | چستی، چابکی، تیز رفتاری |
| جوړتیا | جوری، سلامتی؛ سازش، توافق |
| چوپتیا | خاموشی، سکوت |
| ځانگړتیا | ویژه گی، خصوصیت |
| ځوړتیا | سراشیبی؛ انحطاط |
| څوربتیا | چاقی، فربهی |

| | |
|---|---|
| خبرتيا | اگاهی، اطلاع، وقوف |
| خپورتيا | انتشار، نشر؛ پراگنده گی |
| خمسورتيا | آزادی، همراهی؛ پژمرده گی |
| خوارتيا | خواری،ذلت؛ لاغري |
| ډنگرتيا | لاغری |
| رښتيا(!) | راستی، واقعیت، حقیقت |
| رنځورتيا | مریضی، بیماری |
| روغتيا | صحت ، تندرستی، بهداشت |
| ړنگتيا | ویرانی، انهدام ، تخریب، خرابی |
| زرغونتيا | سبزرنگی، سرسبزی |
| زړتيا | سالخورده گی، پیری (= زوړتیا) |
| زړه ورتيا | دلاوری، دلیری، شجاعت، جسارت |
| زغردتيا | صراحت؛ چالاکی؛ جرئت |
| زمولتيا | پژمرده گی،ناتوانی |
| زهيرتيا | ناتوانی، درمانده گی پیری و زهیری |
| زيږتيا | درشتی، زمختی |
| ژورتيا | ژرفا ، عمق، چقوری |
| سپېڅلتيا | پاکی، صفا ، تصفیه ، عفت |
| سپينتيا | سفیدی، قصفیه |
| سستيا | سستی، کوندی؛ درمانده گی |

| | |
|---|---|
| سمسورتيا | شادابی؛ شگوفانی |
| سوبتيا | حاضری، حضور |
| ښېرازتيا | سرسبزی، طراوت، خرمی، شادابی |
| ککړتيا | آلودگی، لوث |
| گډتيا | آميزش، اختلاط، اشتراک |
| گرمتيا | الزام، ملامتی |
| گورتيا | (gwar-tyắ) مقابله؛ حريف بودن |
| گورتيا | (gur-) تراکم (جنگل، کشت، زلف) |
| لوړتيا | ارتفاع، بلندی، ترقی، اعتلاء |
| مرورتيا | آزرده گی (ازيک ديگر) |
| مشرتيا | مهتری، بزرگی (درسن وموقف)؛ سرکرده گی |
| ملتيا | همراهی، رفاقت، ياری (= ملگرتيا) |
| وړتيا | لياقت، شايسته گی |
| ويښتيا | بيداری |
| هېښتيا | حيرانی، حيرت، تعجب |

۵-۲-۷ : په -والی

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| آروالی | اصالت، اصيل بودن |

| وېي پوهنه | د بېلبنتي مانانومونو ليکلړونه |
|---|---|
| آرتوالي | فراخي، وسعت |
| اړوالي | احتياج |
| اسانوالي | آساني |
| استازيوالي | رسالت؛ خلافت؛ پيغمبری |
| بوغوالي | درشتی آواز، بدآوازی |
| بوکوالي | سرنگونی؛ تحدب |
| بېلوالي | جدایی، تفرقه |
| پاکوالي | پاکیزه گی، پاکی |
| پڅوالي | کوندی |
| پخوالي | پختگی (= پوخوالي) |
| پلنوالي | عرض، پهنا |
| پلوالي | معافی، بخشش |
| پنډوالي | ضخامت، لُکی |
| پېړوالي | همان |
| تشوالي | تهی بودن، خلاء |
| توندوالي | تندی |
| ټلوالي | رفاقت ، همراهی، شرکت |
| ټيټوالي | پستی، دنائت و فرو مایگی |
| جړوالي | آشفته گی، برهمی درهمی؛ جری (کابل) |
| جګوالي | بلندی، ارتفاع |

| وېي پوهنه | د بېلښتي مانانومونو ليکلړونه |
|---|---|
| جلاوالی | جدايي، فراق |
| جوړوالی | صحتمندی؛ سازش، توافق؛ آشتی |
| خړوالی | تیره گی، غبار |
| ډکوالی | پری، انباشتگی، مملو بودن |
| ډډوالی | جوف یامجوف بودن، کاواکی |
| روږدوالی | بلدیت؛ اعتیاد؛ اهلی بودن |
| روغوالی | سلامتی، صحتمندی |
| رونوالی | روشنی، صفایی؛ وضاحت |
| زیاتوالی | زیادت، فراوانی، فزونی |
| سړوالی | سردی، برودت (سوړوالی) |
| سموالی | درست، راستی، استقامت |
| شاړوالی | لامزروعی؛ بی تربیه گی، بدویت |
| شته والی | هستی، موجودیت (= شتوالی) |
| شنډوالی | تعقیم، خنثی بودن |
| شینوالی | کبودی، آبرنگی، سبزرنگی، سرسبزی |
| غبرگوالی | جفتی، جوره گی، دولایی |
| غټوالی | کلانی، جسامت، کته گی |
| کږوالی | کژی، کجی، انحنأ (=کوږوالی) |
| کلکوالی | سختی، محکمی، استحکام |
| کوروالی | قرابت جنسی زن و شوهر، خانه داری |

| ويي پوهنه | د بېلښتي مانانومونو ليکلړونه |
|---|---|
| کښوالی | کری، کربودن (=کوښوالی) |
| گډوالی | آميزش، اختلاط، اشتراک، شريکی؛ شرکت، باهمی |
| گرموالی | (ابتدأ به ساکن) الزام؛ ملامتی |
| گڼوالی | انبوهی، تراکم؛ کثرت |
| گوڼوالی | غباوت، کندذهنی |
| گوډوالی | لنگی، لنگ بودن |
| لږوالی | کمی، کمبود، قلت |
| لويوالی | کلانی، بزرگی |
| مړوالی | سيری، اشباع (= موړوالی) |
| مورواالی | مادر بودن؛ کودک دارای |
| نېغوالی | عموديت؛ پررويی |
| وچوالی | خشکی، يبوست |
| وېړوالی | گسترده گی، وسعت |
| هېښوالی | حيرانی، تعجب |
| يووالی | يگانگی، وحدت |

۷-۲- ۲: په -واله

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اتلواله | نبوغ؛ هيرويېزم |

| ويي پوهنه | د بېلبنتي مانانومونو ليكلړونه |
| --- | --- |
| انګيروا له | انگارگرایی، پندارگرایی، ایدیالیزم |
| اوموا له | خامی |
| بشروا له | بشریت |
| بنسټوا له | بنیادگرایی؛ بنیانگذاری |
| بېلوا له | تفرقه جویی |
| پانګوا له | سرمایه داری |
| پتوا له | آبرومندی |
| پرګنوا له | توده گرایی، کمونیزم |
| پښتنوا له | پشتونیت؛ افغانیت(= پښتونوا له) |
| توکیزوا له | ماده گرایی، ماتریالېزم |
| ټولنوا له | سوسیالېزم، جامعه گرایی |
| ځائیوا له | جاجی بودن |
| ځپلوا له | خوېشی؛خویشخوری، نېپوتیزم |
| ختیځوا له | شرقیت ، شرقپرستی |
| دودوا له | عنعنه پرستی |
| دووا له | تثنیه،دوالېزم(دینی و دستوری) |
| رښتینوا له | صداقت ، ریالیزم |
| روستوا له | عقبمانده گی، عدم پیشروی |
| سموا له | اصلاح ، اصلاح طلبی، ریفورم |
| سمونوا له | همان |

| ويي پوهنه | د بېلبېلو مانانو ليکلړونه |
|---|---|
| سيمه واله | سمت پرستی، محل پرستی |
| عزيزواله | همقومی ، همتباری |
| غټواله | بزرگی |
| کمکيواله | طفوليت،کودکی؛ کمتری |
| کوشنيواله | همان |
| لويديځواله | غرب پرستی |
| لنگواله | زايش، ولادت |
| مرييواله | برده گي، غلامی |
| مومندواله | مومنديت، انتساب به عشيرهٔ مومند |
| مغولواله | مغوليت؛ دشمنی |
| نړيواله | بين المليت، انترنېشنلېزم |
| هلکواله | کودکی، بچه گی(مردينه) |
| ولسواله | مليت پرستی، نشنلېزم |
| هېوادواله | وطندوستی، ميهن پرستی پاتريوتيزم |
| يوواله | يگانگی، وحدت؛ وحدانيت |

۷-۲-۷: په -ولي، له آره د خپلوۍ او دوستۍ تړاو راڅرگند وي او له دې کبله يې(و) گړنۍ او بيا قياسي بېلگې دومره ډېرې نه برېښي.

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|

| | |
|---|---|
| افغانولي | افغانيت؛ افغان پرستی |
| بشرولي | بشريت |
| پانگولي | سرمايه داری |
| پښتنولي | افغانيت، پشتونيت |
| پښتونولي | همان |
| پلارولي | پدر بودن ، ابويت (= پلرولي) |
| پېژندولي | شناخت، آشنايي، معرفت |
| تربورولي | اودرزاده گی؛ خصومت |
| ترورولي | هم خاله گی؛ خاله بودن |
| څښتنولي | تصاحب، خداوندی؛ شوهر بودن |
| خپلولي | خويشی،خويشاوندی |
| خورولي | خواهری، خواهر بودن |
| خېښولي | خويشی (در ارتباط ازدواج) |
| رښتېنولي | صداقت، راستکاری |
| زويولي | پسربودن، تعلق پسر وپدر |
| سپينولي | راستکاری؛ مبرأبودن |
| عزيزولي | قوميت، همتباری |
| کاکاولي | عمويت، اودر زاده گی |
| کامولي | قوميت، همتباری |
| کليولي | (همبسته گی) همروستايي |
| گاونډولي | همسايه داری |

| | |
|---|---|
| لورولي | دختر بودن، تعلق دختر و پدر |
| ماماولي | ماما گی، ماماخیلی |
| مشرولي | کلانی؛ زعامت، قیادت |
| مورولي | همبستگی مادر و فرزند |
| ورورولي | برادری، برادر بودن |
| ولسولي | ولس داری، ملت داری |
| هېوادولي | میهن دوستی؛ هم میهنی |

# ۷-۳: چارنومېلنګونه

## (مشتقات پیشه یی و اعتیادی!)

## Nomenagentis-derivatives

ختګر، کړونی، خوړونی، خوړونکی، کړوونکی، ښوونکی، ژرخبانی، بورخانی، ګټندوی، ګټیالی، شوکمار، ژرنده ګړی، خونړی، ګوروان، اوښبه، خربون، ښاروال، کارمند، بریدمن، تورن، ډګروال، مرستیال، چارواک...

یو چارنوم (نومن ایجنتیس nomenagentis) هغه نوم ته وا یی چې د یوه چار یادندې په څه ناڅه پرلغښتي کړن و بوختیا اړه لري. اړوند روستاړی یې هم (agentive suffix) بلل کېږي چې بشپړ ډېری یې ترمانانومونو روسته په دویمه کچه له چار

والو کړسته‌و، او په ټوليزه توگه له نومونو، په تېره ستا ينومو نو او اړوندو سته‌و څخه د بېلابېلو روستاړو په نښلونه را منځته کېږي. (اولريښ ۷۹). هرگوره، د بېلښتي چارنومونو ترځنگ ترېښتي (لکه د ← ټاکنترنگونو په لړکې)، اوځينې آريو وستوي چارنومونه هم مخې ته راځي، لکه: غل (د غلاگر ترځنگ)، مو چي، دوبي، جولا، ميا، ملا، ملنگ، ستانه، نوکر، کښبی (کشاورز)، مشر (رهبر؛ رييس)... چې ځينې پکې زاړه (ارکاييک) بېلنگونه برېښي.

په چار نومبېلنگونوکې د ← کړ بېلنگونو، په تېره بيا د نويز ونو ونډه هم کمه نه ده، په دې ډول :

۱: په - ونکي سره، لکه: ښوونکی، پالونکی، ليکونکی، څېړونکی... ؛ (د ژبپوهنې داوه گير هلالي← سريزه) د وينا پر خلاف (ښوونکی) د (جديدالبيان) شاعر پېړۍ پخوا کارولی دی (وييزېرمه۱۴۷):

دا ښوونکی پرې اول شي بې ايمان
که اگر يې نيت د ټوکو وي پرځان

۲: په-ووني،-ونی ،لکه خوړونی (سپی)، خوړووني يا خورووني(خورانند‌ه)، چلووني(رانند‌ه؛ اداره کنند‌ه)، لېږدوونی(انتقال کنند‌ه)، مرستونی يا مرستندوی(کمک رسان، ممد)، ساتونی(نگهدار، حافظ)...؛

ستر خوشال دا راز بېلگې ډېرې کارولې، په نورو ټکو، رغولې دي، لکه ورکړونی، کړونی (د کړونکي تر څنګ) او وړونی يې په دې شعرو کې:

د حلم خوی واخله له بارداري ونې
چې څوک دې وولي مېوه، ورکړونی شه

او وړونی يې له (برده بار) مانا سره:

پرده پوښي کوه، لکه پړونی شه
اواره کړونی شه،د هرچا وړونی شه

او نالېږندې بېلگې (تېرېدونی، پرېوتونی) يې په دې بل شعرکې:

که تېرېدونی، که پرېوتونی
که څو ښه يونی، که څوک بد يونی

(وييزپرمه۶۴ ، ۲۲۲).

د غه روستاړی له يوشمېر وييونو سره ← لوښنومونه هم رغوي.چې څوک دې وولي مېوهورکړونی شه

۳: په - ند ، لکه خورند ، لېږند ، زېږند (دانشواژه های دستوری)؛ پووند-ه

۴: له - ندوی، لکه ويندوی،کرندوی (زارع)، مرستندوی، ساتندوی، ويندوی،گرځندوی، پوهندوی، څېړندوی... ، څارندوی، پالندوی (پيش آهنگ)، لېږندوی (نقل کننده)،

زبړندوی (آفرينشګر)، خورندوی، څېړندوی، بېړندوی (عاجل، هنګامی)...؛

کتندوی (کتونکی، څارن) يو پخواني ويناوال رغولی دی:

تېږی ناست طالب وما دی

کتندوی پر لور د مادی(وييزېرمه۱۵۷)

يا ورپسې د حافظ الپوری دا:

له ظهوره د آدم تر زوره شوره

مهرويان دي واړه تاته کتندويه

۵: په ـندی، لکه کښندی (کشاورز)، کړندی (مبتلا به ضعف و کمتواني دايمی).

۶: په -اند، دا هم له ستاينومونو سره ګډون لري چې هممهاله چاروال (اکتيف) نقش هم راخپلولای شي، د ساري په ډول (ځلاند) په(ځلېدونکي او ځلوونکي) دواړو مانااوو کارولای شو: زړې ببلګې، لکه: اړاند (درګير، ګرفتار)، بهاند، څپاند، لولپاند، ځلاند، ځلبلاند، اسېلاند، نغلاند، (ګرسنه چشم)، هراند (هراسان، بزدل)، ژړاند، وياند، پېژاند، پوهاند (پوهان)...؛ د پېژ د دغو (و)ګړنيو ستاينوميزو مخښبلګو پر ليکه نوې رغولې ببلګې، لکه:

خوراند، ښاند، رغاند، وهاند، هځاند، رغاند، نړاند، برسيراند (کاشف)، څېړاند، کښاند (خطاط)، لولاند (مدرس،

لکچړ)، ژغوراند، ښناند، لوراند، بلاند، توړاند (حکاک؛ پالشگر)، درغلاند (جعلکار)، درملاند، نشتاند (منفی باف)، سهاند (بردبار)، رپاند... بېلاند (جدایی خواه، تجزیه طلب)، چې مانا نوم (بېلاندي) يې د (آب کاریزی که بعداز پر شدن حوض برای آبیاری زمین در جویی جریان داده میشود) یوه ولسي رغاونه ده، هغه ډنډ ته هم (ترېلی) وايي.

ځينې پکې له جوليز ورتوالي سره ستاينومونه دي؛ په دې لړکې (روښاند) هرگوره، هم د نومکړ د بېلنگ، او هم د روښان+اند(-ی) د لنډيز په توگه په ← ستاينومترنگونو اړه لري.

همداراز کېدای شي، تاند، هاند، لالهاند... له ورته لرغونو رغاونو څخه اوسي.

۳۷: په -ړ، لکه: باټړ (لاف زن)، لچړ(سرزوړ)، لنډر(شخص یله گرد) ډنډر(!)...؛ دا روستاړی په الماني (macher)، انگرېزي (maker) او نورو ژرماني (او په اټکلي توگه، په سلاوي (ربوتر)، روماني...) ژبو کې هم زياتره چارنوميز روستاړی دی او په پښتوکې موسم له لاسه له پاسنيو درو(ناسوچه) بېلگو پرته نورې نه دي سهي کړې!

۷: په زور واله - ی (-áy,-ay)، لکه: کنبی، روی (مادرآل؛ شخص حريص و گستاخ)، لوی (دروگر)، ډاگی (بچه باز)،

ډانډسی (ډانډسي)، کوچی، (ډانډولی) د ډانډولۍ (ډنګه ډولۍ) لوبې اړوند غړی چې نور يې له لاس و پښو څوړند يا براب براب نيسي او ټالۍ ورکوي.

۸: په لنډه (- ي) جوړ شوي چارنومونه، لکه ربابي، چرسي، چلمي، نسواري، تيلي، ټوکي، ترياکي ، پلکي، پلنډي، پنډي ، چړي، بدرګه يي، ميله يي، چړچه يي (چړچي)، ډانګه يي ( ډانګيي)، غرغره يي، لکه بلاغواړی (ماجرأجو)، ډاګي، روښي (حلوايي، حلوا فروش)، ټوکي، تبلي، کبابي، نايي(!)، ډانډسي، چې ځينې يې ډانډسی او ډا نډسي دغې دندې ته هم وايي....

۹: په-وی، لکه کروی (چاريکار، پيشکار دهقان)، روی، لوی يا لووی(شاهد)، مرستندوی، پوهندوی، رغندوی، ژغورندوی، ګرځندوی(سياح) او داسې نور ←کړ- او نومکړ بېلنګونه..

د بېلابېلو نومړوستاړو له مخې بېلا بېل چارنومبېلنګونه په لاندې توګه وښنه مومي.

۱۰: په - بون ، او ، - به ، لکه :خربون-خربه، اوښبون-اوښبه، اسبون، غوبون - غوبه، لېربون - لېربه، شېربون، زمربون، اوړبه، بوټبه، خسبه، لرګبه، خټبه ، څرکبه(پل کش، سراغ ګير؛ جاسوس)، کوربه، ګوډبه(کاريزکن)... ؛ شپون (=شپه) له

آره همداسې يوه جوړونه ده: لرغونې بڼه يې (پسوبانه) يا (پشوپانه) ده (مورگن ۷۵). په دې توگه (شپانه) تر (شپون) لرغونی ښکاري چې پارسي (شبان) زړې بڼې ته زيات ور نژدې برېښي، ځکه زاړه آرياني (ا، آ) پارسي ساتلي او پښتو پر (-و) را ړولي دي، لکه واخلې په آب= اوبه، آرد = اوړه... کې.

داهم په زړه پورې ده چې د-بون اوبه ښځينه ځېل تل هماغه تاريخي (-پنه، - بنه) راځي، لکه په شپنه، کوربنه، لېربنه کې.

۱۱: په -چي، لکه: نندارچي، مرکچي، ډندورچي، جارچي، غاوچي (دادخواه؛ پاده وان)، کوټه چي، سموارچي، توپچي، قابچي، نغارچي، تنبورچي، سورنچي، تورم چي...؛ (چلم چي) بيا له ورته رغښت سره يو لوښنوم دی (د بگچی يې له نر مې (-ی) سره بيا يوه کوشينه بڼه ده) او د غزنيچي اړيکنوم. دغه روستاړی په هر ډول له پارسي او تورکي ژبو سره گډون لري؛خو د (هنرمند) اوِ بستا انډول هنريانچو(hunairyančo-) يې آريانيوالی را زبادوي.

۱۲: په -گر، -گار، -کار، لکه: لوگر، (گليم باف)، شلگر (نبزه باز)، ختېگر، زرگر، زيريگر، وېشگر، جوارگر، کوډگر ياکوډلوبی (شعبده باز)، پاړوگر، داروگر، غلاگر(غل)، اما نت گر، بزوگر (شبان بز)، بيزوگر (شاديوان)، اشرگر، ملاز

ګر(چا پلوس،متملق)، ګرګر (ظالم، ستمګر)، ښيوه ګر، چو غلګر، دروېزګر، کارګر (کاريګر)، کر ګر، کروندګر، بزګر، کښتګر، چجګر، ماشينګر، پيلګر يا پيلامګر ، آغازګر)، بنسټګر (مؤسس؛ بنبادګرا)؛ ګګر (آهنګر) ، لولنګر او داسې ورته رغاونې پلټنه غواړي؛ همداسې يې له همريښه (-ګار) روستاړي سره، لکه: وزګار، پرهېزګار، ګناهګار؛

يا يې له (-کار،-چار) سره تړښتي بېلګې، لکه: نمنځچار(عا بد)، بريچار(غالب)، بدکار، سرکار، پخليکار، کښتکار، جنايتکار؛ خپلکار (-ی)، خپلچار (-ی)، سختچاری، ډېر کاری...؛

چاريه کار(دستيار دهقان) د دوست (ژبپا نګه ۲۰۱) له پارسي چار يکارد (چاريک کار) سره يوراز نه بو لي او دخوشال په دستارنامه کې يې راپرګوته کوي:

... دی دې سردار وي، نوردې چاريه کار بزګروي.

او د رحمان بابا په شعر کې يې د (چاليکار) په بڼه:

همسايه او چليکار يې پښتانه دي

او په اصل به موچي يابه قصاب وي.

۱۳: په-ګری، يا لوګری (لوګر، لوی) ، وارګری، ملګری، غاړه ګری(پلوان شريک= پلويځ)،دمګری، ښوګری، چلګری،

ګوابنګرى، شلګرى (نيزه باز؛ نيز ساز=شلګر)، تلګرى، ګوا ښګرى

۱۴: په -ګړى چې له (-ګر، -ګرى، -ګرندى ...) سره همآرى روستاړى دى ، لکه: ژرنده ګړى، وارګړى، اشرګړى، ضا منګړى (تره کى)، منځګړى ، درېيمګړى، زيريګړى (زير يګر)، وراګړى، يا يې هممانيز زومګاړى او دا سې نور .
سرګړى (اذخر، ګياه خوشبوى کوهى) يا (وګړى) هم ښايي، د همدې لړۍ پخوانۍ بېلګې وي!
ځانګړى، او نيمګړى هم له ورته رغاونې سره زاړه ستاينومو نه دي او يوګړى (فرد؛ مفرد) او ډېرګړى (جمع).نوې پښنو بېزې نومونې .

۱۵: په -ګرندى د پاسنيو روستاړو يو بل چارنوميز اندول، لکه په: ګوابنګرندى، تلوارګرندى، تولګرندى (داور؛ قا ضى) اشر ګرندى، وېش ګرندى، ديوالګرندى، زېري ګرندى، او داسې نورو کې(← پق).

۱۶: په -ګير چې د (-ګر، -ګرى، -ر) يو اندول دى او ستاينو ميز هم دى، لکه: په سوالګير، هواګير، بارګير، برګير، تاو ګير، بادګير، څوګير(مترصد)، تماشګير، پرواګير، داوه ګير او داسې نوروکې چې ښايي له پارسۍ څخه راخپل شوي وي.

۱۷: په - مار، چې له هندي ژبو سره ګډون لري او لږو ډېره آلي او ستاينوميزه لوښه راخپلوي، لکه :لوټمار د (غارتگر) او (کلوخکوب) په غبرګوماناوو، ټوټکه ماريا ټوټکه چي (طبيب عنعنی که امراض رابادم وافسون علاج ياد فع ميکند)، شو کمار، جلي مار (دختر باز،زنکه باز)، ، لکيمار-لکيماره، بغر يماره، کچنيماره بچيمار- بچيماره، ، دوکړه مار او تبله مار، دواړه د (طبله نواز) په ما نا، دوپړه مار، دبړه مار دواړه د (لاابالی) په مانا، بډيمار يا خوړه مار (رشوتخور، راشی، کنځلمار، پرخور)، سندرمار (پ.کاروان-ب.عابد)، سرينده مار، پېښه مار(مقلد ؛ بازيگر، ممثل)، پښمار(دمزن آهنگر)، پېړمار (شخص که شربت يا غصارهٔ نيشکر را ميکشد)، سو ټه مار ياکوټکمار، ؛ د(بنجارهٔ سيار) په مانا(سو ټمار) کې ښا يي، سوټ، لکه په (سوټ وبوټ)کې له انګرېزي (suit) نه آره اخېستې وي، همدا سې يې بينمار هم درواخله، ډوډيمار، داړه مار، ګډ نديمار (پارت باز ؛ حريف حزبی)، تړکمار، دوړه مار، جرګه مار، ډوډ يمار(مهما ننواز)،دوکه مار، ډاکه مار، چوغلمار- چوغليمار، چړچه مار، ونډ يمار ( قصا ب)، لانجه مار، ختمار= خټګر (ګلکار)، جګړه مار (جنګره، جنګ سا لار)... ؛ په (ازمار)کې آر ويي د يوه ستاينوم (مکار) په توګه، ښايي،له پارسي (آز= حرص)سره همآری وي!

۱۸: په -وال، چې د اروستاړی هم لړوډېر له ستاینومونو سره هم راځي، چاروال، لکه :ستایوال (خطیب؛ مداح)، بنګړیو ال،کاروال، روغه وال، زغر(ه) وال، پازوال (مؤظف؛ مسؤ ول)، ښېګړوال یا ښېګڼوال، کډوال (خا نه بدوش؛ مهاجر)، جوپه وال، جرګه وال، مرکه وال، روغه وال (مصلح) بدرګه وال، څوکیوال، کوټوال، وسله وال، هټیوال، چو پړوال، ښاروال، بندروال، بریدوال (سر حدی، مؤظف امور مرزی)، لیکوال، څېړنوال، پوهنوال، پا سوال، څارنوال، خبر وال (محرر قاضی)، ولسوال، سمونوال، ډګروال، درستیزووال، بڼوال، ځمکوال، پانګوال، بنسټوال (بنیان ګذار)، ټوپکوال، سیمه وال یا سیمه پال (محل پرست)، نړیوال،کاروال، چار وال (فعال؛ وجۀ معلوم یا اکتیف ګردانی فعل) برخوال ، ګډ ونو ال، مینه وال، روغتیا وال، مرییوال (برده دار)...

۱۹: په والا (wālā-) روستاړي سره چې له هندي سره تر- وال زیات خپلوان بریښي او له پښتو(وال) سره اړیکن بلل کېدای شي. کابلۍ پارسي لړو ډېر د-وال ترځنګ د-والا په کارونګ کې له پښتو سره سیالي کوي چې د ښتنولۍ او کسب وکار جاج رانغاړي، لکه: خروالا ، زن والا ، زدن والا ، چوری والا ، ترکاری والا ، انګوروالا ، دوکان والا... چې له ادبي(-دار) اندول راځي.

پښتو بېلګې يې بيا کوم پوله برید نه لري او نه هم دومره (و) ګړني ګڼل کېږي، لکه: خروالا، آس والا، پنډ والا، بدرګه والا، وار والا، بګۍ والا، ګړۍ والا، ډانډس والا (ډانډسي)، پوروالا، چيني والا، چپن والا، سابه والا، ميوه والا، بڼ والا، سکاره والا، لرګي والا، ډوډۍ والا، ټوپک والا، کوروالا (متأهل)، بڼ والا، هټۍ والا، بټۍ والا، لوروالا، زوی والا، زوم والا....

که د همدغو بېلګونو خج له روستاړي څخه نوم ته ولېږدول شي، بيا نو بېلښتي ځانګړتيا له لاسه ورکوي او پر سستو غونډونو (عبارتونو) بدلېږي او له دې سره يې شمېره لا ډېره غځېدای شي. (تش د بېلګو په تړاو رښتين ۷۳).

۲۰: په- وان چې له پارسي (-بان) سره همرېښه او انډول ايسي، لکه په بنديوان (زنداني؛ زندانبان)، باغوان، پالېز وان، ګاډيوان، موټروان، بيزووان، جاله وان، پاده وان، ګور وان (داستاد رښتين له ويناسره سم دغلته د ګه رم-م غور ځېد لی)، دروازه وان، بټيوان؛ خپلوان د اړيکنوم په توګه هم له همداسې رغاونو څخه بريښي؛ (بټيوان)، لکه (بټيار-ی) له بټ (د نينوکړايي) سره تړاو لري او بټۍ والا له بټۍ (د خښتو داش يا اتومي کوره) سره؛ دلته (بټۍ) له جوليز پلوه د (بټ) کوشيننوم دی، خو له مانيز پلوه ترې لويه ده، نورې ورته

بېلگې، لکه : مورچه-مورچل، جنگی-جنگل(ځنگل)، برج (بورج)-بورجل، ټاپو- ټا پووزمه...
۲۱ : په لنډ- و ، لکه : په ښارو، کړاوو، باټو، لاپو، کړتو، لاړو، خرڅاوو، خېټو، گیډو، نسو، پسو(متواضع)، چورتو، چټو؛ یا د ← جوړه ترنگو په ترڅ کې، لکه: چټو پټو، چټو لړو، او یا سر چپه لړو چټو (پق ۳۳۲ )....
۲۲ : په -ازی، یوه رغېدلې بېلگه (استازی (پیام رسان؛ پیا مبر؛ عضوی پارلمان؛ نمایندهٔ سیاسی، سفیر) ده (رښتین ۸۸) چې کړ نومسته یې (است-) ده، بل هما نیز گړدودي ځېل (استوازی) یې هم دود لري او پق یې د دغو دواړو بېلگونو وینگیز یا لیکدودي ځېلونه (استائی-استوائی) هم راخوندي کړي؛ همداسې ((گوهر)) د شلمې پېړۍ په رو ستیوکې د بې بې سي د ویاندۍ پر مهال ذ ورته کړ ستې یو بل کمپېښی نومبېلنگ (استوزه = پیغام) د ځانگړي گړو یزي یا نویزي په توگه هم رادود کړی وو.
متیازي(شاش، ادرار) ورته روستاړی بربېښي چې له کړ ستې مېت(مېتل-) څخه له یوڅه خپلواکونج سره د نوړنوم په توگه یو ډېرگړی بېلنگ دی او پق ورسره وسمهال انډول مېژ- (مېژل) هم راخوندي کړی او گردان کړی دی، خو د متراوڼ

(شاشوک) بېلنګ يې له(زورکي) او متيزڅک (سلسل البول) ترنګ يې له لنډې-ي سره. همداراز ← ځيزنوم-بېلنګونه.

۲۳: په - يال او- يالی زاړه او نوي چار نومونه له ← ستا ينومونو سره اخښلي راخښلي کارول کېږي، لکه: برېيال (-ی)، پاليال (وفا دار)، غړيالی، مرستيال، جنګيال (-ی)، جګړيال، دوديال (فرهيخته، مهذب)، فرهنګيال - ی، توريال (-ی) د (تورزن) په جاج، ننګيال-ی د (ننګ کوونکي) په مانا، هڅيال، ګټيا لی، زغريالی، رزميال -ی، غوريالی، غوټيا لی (حمله آور؛ غدوديکه زېرګلون بز اويزان بوده و مؤنث آن غو ټيالۍ ميباشد)، ځونډيالی (پوپک دار؛ پوپکساز)، ربړ يالی (رنجبر)؛ ستايوال (مداح، خطيب) له کړستې سره رغېدلی؛ ګړيال (ساعت زنګی برج) د هندي پورويزي په توګه زموږ له دغو رغاونوسره هم اړخ لګوي. د (يال-ی) روستاړو اړوند ← ستاينومتړنګونو ته دې هم مخه وشي.

- لي او - لو، لکه په سپړلي او سپرلو(سوار، سواری عراده جات) کې هم ورته چارنوميز روستاړي اتکلېدای شي!

۲۴: په انی-لانی، لکه له سيل څخه سيلانی له - کر(-کرل) څخه کرلانی ياکرلانۍ.

۲۵: په - تو، لکه: جرگه تو، برجستو د فساد پيشه په مانا؛ چمتو او نامتو بيا ستاينومونه دي او او چړچو، کړتو يا کړ تن(پرگوی) ورسره هسې همجوليز برېښي.

۲۶: په - تي، لکه روژتي، بوزه تي، د کوژه تي ترڅنگه (← پرتلوييونه)، جرگه تي، بنگتي چې د بنگي هممانيز ښکاري.

۲۷: په -ل، لکه: له مارغيت (فريب) څخه مارغيتل (فريب کار)؛ ښايي، پيتل (کم عمق) له پيت څخه د يوه ستاينوم په توگه رامنځته شوی وي؛ وستل (دېره، د غونډې ځای) هم د يوه څيزنوم په توگه ورته رغاونه اټکلېدای شي.

۲۸:په - باڼی، لکه: ورباڼی(دربان)، وراباڼی، غويباڼی (يو بوتی)، څرخباڼی (رقاص، بازيگر)، گوډباڼی(هميونی مزدور)، سرباڼی، شريک باڼی، اشر باڼی؛ سرباڼې (سرباڼه، سرباڼډه) بيا له ورته رغښت سره په لوښنومونوکې راځي؛ د کتباڼی روستاړی له (بڼل) کړ څخه آره اخلي.

۲۹: په - ړی ṛay,ṛáy، لکه: خونړی، چنگړ-ی(شخص بدمعا مله و جنجالی).

۳۰ :په - من-مند، لکه: بريدمن، ډگرمن، ساتنمن، واکمن، دښمن، ميرخمن؛ د-مند بېلگې، لکه: هنرمند، کارمند (ما مور)... ؛ (من) د (زړه، ارادې) په مانا له اميرکروړه ترگگياڼي

د يوه خپلواک ګړ، په نورو ټکو، د يوه زړويزي (ارکاييزم) په توګه هم کارول شوی دی:

غشی د من مې خي برېښنا پر ميرڅمنو باندې...
(امير کروړ: پخ ۳۴، ۲۳۲)؛

تر اول لا په منونو پرې افزون شه
چې صحت د عشق له درده زما من غوښت

(وييزپرمه ۲۰۲)؛ که څه هم په دغه دويمه بېلګه کې (من) د (سپړ) مانا هم رانغښتلای شي(!)

۳۱: په لنډ - و ú ،-وو wú (له خپلواکپای سره)، لکه: ساندو (سانده بول)، کړاوو (باسکون اول: مشق و تمرين و جېمنا ستيک کننده)، کړاوو() څارو، لاپو، باټو، کړتو، ګړاوو، ګړپاوو، ګپاوو (درېواړه: پرګو، ياوه ګو)، چپاوو يا چپاوي (غارتګر)، چړا وو (مرتکب کشتار عام)، بچاوو، ښاوو، پېښاوو، لڅاوو (کشاف)، جګړاوو، لړاوو (جنګړه)... .

۳۲: په - ندوی، چې په کړولی پورې نښلي او له ستاينومونو سره ګډوالی لري لکه:

ساتندوی، ګټنډوی، وټندوی (مقتصد)، پېژندوی، ويندوی، پوهندوی، څېړندوی، څارندوی، پالندوی، ګرځندوی، بو لندوی (فرمانده، قومندان)؛ رغندوی، زېږندوی، ژغورند

وی، بلندوی، بېلندوی، ځلندوی، بېرندوی، منندوی چې ځيني بېلګې يې له ← نومکړ بېلنګونو سره ګډون لري.

۳۳: په-ری، لکه: لوټېری، جنګېری (رښتين۸۲).

۳۴: -اوڼ، لکه: متراون، تيزاوڼ، ډرتاوڼ، پسکاوڼ، ګوزاوڼ يا چونګاوڼ، غولاوڼ چې دا هم له← ستاينومبېلنګونو او بيا ځيزنومو سره جوليز او مانيزګډون لري او يوازې د پښوييز چارونقش له مخې سره توپيرېږي...

په-زن، -ځن چې دواړې بڼې پارسي آرې دي، لکه: تورځن، لامبوځن، ښکارځن، څنګزن (رښتين ۷۰).

۳۵: په -ګرکی، لکه : مينه ګرکی؛ ورته رغاونې ، لکه : ږله ګرکی يا ګله ګرکی (وزېري ژله غری)، غونده ګرکی (جوال خورد)، لکه په دې متل کې: (غوندې نه ژاړي، غونده ګرکی ژاړي) په ← کوشيننومو بېلنګونو کې راځي.

په هر ډول، په وزيري (ژله غری) يا يې کره ځېل (ږله غری) او د پق (واوره غړی) او (لېونغری) کې (-غری) د (-ګرږ-ګرکی) همر يښه ← ستاينوميز کو شينروستاړي بلل کېدای شي.

۳۶: په - آر، لکه : پوزيار (بوريا باف)، چميار، وستيار (تا جر)، ماليار يا مليار، دو تنيار (صحاف)، پوهنيار، ټټار (قلعی ساز)، بتيار-ی (= بټيوان)...؛ که دلته (- يار) يوځپلو اک ګړ (مور فيم) اوسي، نو بيا په تړښتي چارنومونو، په بله

وينا، ← ټاکنترنگونو اړه پيدا کوي ،لکه: لرميار(مادرکيک ها)، پوهنيار، څېړنيار، او وېښيار (هو شيار) خو د نومکړ بېلنگ په توگه په ← ستاينومونو کې راځي.

## ۷-۳: دچارنومبېلنگونو ليکلړونه

### ۷-۳-۱: نوم+گر-ی = چارنوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| انځورگر | نقاش، رسام |
| اخېړگر | گل کار، کاه گل کننده |
| بزگر | دهقان، کشاورز |
| بزوگر | شبان بز، بزچران |
| بلوسگر | متجاوز ، غاصب |
| بنسټگر | بنيانگذار، مؤسس (کره: بنسټوال) |
| بيزوگر | شادی باز |
| پاړوگر | افسون گر، مارگير |
| پاسره گر | صرفه جو |
| پخسگر | ديوارساز |

| ويي پوهنه | چارنومبېلنگونه |
|---|---|
| تالانگر | غارتگر |
| تروښگر | اختطاف کننده |
| ترهگر | دهشتگر، دهشت افگن، تروريست |
| تولگر | ترازو دار؛ حَکم، داور |
| جادوگر | جادوگر |
| جوارگر | قمارباز |
| چجگر | چج ساز ؛ چج زن |
| څارگر | جاسوس، استخباراتی |
| ختہگر | گل کار |
| خوالگر | رازدار (= خوالو، خواله ساتی) |
| داروگر | معالج |
| درمل گر | معالج، طبيب |
| درودگر | اسيابان |
| دروزگر | نجار |
| دروېزگر | گدا، سايل |
| زرگر | زرگر |
| زيريگر | مژده رسان، بشار (= زيريگرندی) |
| زونډيگر | پوپک ساز (= ځونډيالی) |
| سوالگر | گدا، سايل |
| سولگر | رتيانر، کمپيوټر، حسوب |

| ويي پوهنه | چارنومبيلنګونه |
|---|---|
| شلګر | نيزه باز؛ نيزه ساز(=شپلګر) |
| ښکېلاکګر | استعمار ګر |
| ښيوه ګر | غشوه ګر |
| شمارګر | کارکولتر، ماشي حساب |
| غلاګر | دزد |
| کارګر | کارګر (عاميانه:کاريګر) |
| کراسګر | نمدمال، نمدساز |
| کرګر | کشاورز |
| کروندګر | همان |
| کښتګر | همان |
| کوډګر | جادوګر، افسونګر |
| ګګر(!) | آهنګر |
| ګواښګر | تهديد کننده (= ګواښګرى، ګواښګرندى) |
| لاسګړى | دستيار |
| لوګر(-ى) | دروګر |
| لولنګر(!) | آواره، دربدر؛ بى خانمان |
| ماشينګر | ماشينکار |
| نڅاګر | بازيګر، رقاص |
| نيمسيګر | نمدمال، نمد ساز |

| ويي پوهنه | چارنومبېلنګونه |
|---|---|
| نيواکګر | اشغالګر |
| نيوکګر | معترض، منتقد ، احتجاجګر |
| وارګر-ی | دارای نوبت |
| ورمندګر | داور؛ ناصح |
| ورهېګر | کسب کار، کسبګر، فروفېشنال |
| وريته ګر | کبابی |
| وېشاکګر | تجزيه طلب |
| وېشګر | تقسيم کننده، توزيع کننده |
| يرغلګر | يورشګر،چپاولګر |

۷-۳-۲: نوم + وال = چارنوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| بتېۍ وال | خشت پز، صاحب داش خشت پزی |
| بدرګه وال | مؤظف بدرقه |
| بريدوال | سرحددار، مرزبان؛ باشندۀ سرحد |
| برېښناوال | برقي ، متخصص برق |
| بندروال | بندروال |
| بنګړيوال | چوری فروش |
| بڼوال | باغدار |
| پازوال | مسؤول؛ مؤظف، وظيفه دار |

| ويي پوهنه | چارنومبېلنګونه |
| --- | --- |
| پاسوال | پاسبان؛ پادشاه ؛دگروال پولیس |
| پالوال | وفادار، پرورنده، پرهیز گار |
| پوهنوال | دانشمند ، اسوشیت پروفیسر |
| جوپه وال | ساربان (=څاروان) |
| ځمکوال | زمیندار |
| څارنوال | مدعی العموم |
| څوکیوال | پاسبان، پهره دار (باشندهٔ چوکی) |
| څېړنوال | پرژوهشگر، یکی از رتب علمی اکادمی علوم افغانستان |
| خبروال | محررِ قاضی یا محکمه |
| درستوال | سلاح دار (نظانی) |
| ډگروال | دگروال (سرهنگ) |
| روغتیاوال | سرطبیب |
| ساتنوال | محافظ ( پولیس ) |
| سمونوال | سمونوال، سرهنگ ( پولیس ) |
| سنگروال | سنگری؛ باشندهٔ سنگر (لغمان، مزینه) |
| ښاروال | شاروال ، شهر دار |
| ښېگڼوال | شیگنوال ( سکوت، پیشاهنگ ) |
| قلموال | نویسنده |
| کډوال | خانه بدوش، همسایه |

| ويي پوهنه | چارنومبېلنګونه |
|---|---|
| ګډونوال | شرکت کننده، مشترِک |
| لیکوال | نویسنده |
| واکوال | صلاحیت دار |
| وسله وال | مسلح |
| هټوال | مغازه دار |
| هټیوال | دکاندار |
| هګیوال | تخم فروش (مرغ) |

۷-۳-۳: نوم+والا = چارنوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| آس والا | صاحب اسپ، اسپ سوار |
| اوبه والا | سقاء |
| اوښ والا | شتربان(=اوښبه) |
| بار والا | باردار؛ باربردار |
| بیزو والا | شادیوان |
| بېړۍ والا | کشتیبان، ملاح |
| پخلي والا | آشپز |
| پنډ والا | پشتاره دار، با پشتاره |
| تبنګ والا | تبنګ والا؛ تبنګ روش |
| ټغر والا | ګلیم باف، ګلیم فروش |

| ويي پوهنه | چارنومبلنگونه |
| --- | --- |
| چپن والا | چپن فرش؛ چپن دوز |
| چرگ والا | مرغدار ، مرغفروش |
| څرخ والا | شمشیرگر، چاقو تیزکن |
| خروالا | خرسوار، خر کار |
| خَورین والا | کوزه فروش، سفالین فروش |
| دېگ والا | دیگ فروش؛ آشپز (سیار) |
| ډوډۍ والا | نانوا ؛ نانفروش |
| سابه والا | سبزی فروش، ترکاری فروش |
| سکاره والا | ذغال فروش |
| شودې والا | شیر فروش |
| غوټه والا | بُقچه والا |
| کټو والا | کلال، فروشندۀ دیگ گلی |
| کاروالا | صاحب کار؛ سودمند |
| کډوالا | خانه بدوش |
| کراچی والا | کراچی وان |
| کډې والا | خانه دار |
| گاډي والا | صاحب خودرو (موتر) |
| کوروالا | همان |
| گړې والا | کوزه فروش |
| منگي ولال | همان |

| ويي پوهنه | چارنومبېلنګونه |
|---|---|
| ګړۍ والا | ساعت فروش؛ ساعت ساز |
| ګنډې والا | بُقچه دار (دستفروش) |
| لرګي والا | چوب فروش؛ چوب شکن |
| مستې والا | ماست فروش |
| ميوه والا | ميوه فروش |
| وريجي والا | برنج فروش |
| هګۍ والا | تخم(مرغ) فروش |

۴-۳-۷ نوم + وان = چارنوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| باغوان | باغبان؛ فروشندهٔ سيار |
| بټيوان | بريان کنندهٔ پلهٔ جواری؛ داشګر |
| بګيوان | ګاديوان، ګادی ران |
| بنديوان | بندی، زندانی؛ زندانبان |
| بيزو وان | شادی وان |
| پاده وان | ګله بان (ګاو و مانند آن) |
| پالېزوان | فاليز |
| جاله وان | رانندهٔ قايق چرمی يا رابری |
| ځاروان | ساربان |
| څوکيوان | پهره دار، چوکيدار، پاسبان |

| ويي پوهنه | چارنومبېلنګونه |
|---|---|
| دروازه وان | دربان |
| سرايوان | سرای وان، سرایدار |
| شاديوان | شادی باز |
| کراچي وان | کراچی کش |
| ګاډي وان | گادی وان (پشاور: کوچوان) |
| ګوروان | گله بان |
| لاريوان | راننده ی لاری |

**۷-۳-۵**: نوم + ي = چارنوم :

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اپيني | تریاکی |
| الکولي | الکولی |
| بربادي | مخرب |
| بنډاري | محفل باز |
| بنګي | بنگی |
| پلکي | آهن کوب |
| پلنډي | حمال، جوالی |
| پنډي | همان |
| پوډري | هیروینی |
| پناوي | داوطلب |

| ويي پوهنه | چارنومبېلنګونه |
|---|---|
| پيلاتي | فساد پيشه |
| تلواري | عجله كننده |
| تېلي | تيل فرش |
| ټوكي | لطيفه گو(= ټوكمار) |
| جنجالي | جنجال برانگيز؛ پرخاشگر |
| جنګي | جنگجو |
| چپاوي | چپاولگر |
| چپړاسي | چپراسي، ملازم |
| چرسي | چرسی |
| چړچه يي | عياش (= چړچه مار) |
| چړچي | همان |
| چړي | خادم ونان آور مسجد |
| چلمي | چلم كش |
| چلي | فريب كار |
| ډوبي(!) | ډوبی |
| ډاګي | پسته رسان |
| ډانډسي | نداف(=ډانډسی) |
| ډانګه يي | ماجراجو؛ بی بندوبار |
| زنګي | متخصص رقص و پايكوبی |
| ربابي | ربابي، رباب نواز |

| ويي پوهنه | چارنومبېلنګونه |
|---|---|
| شرابي | شرابی، شرابخور |
| ښکاري | شکارچی |
| غرغره يي | ماجراجو؛ بی بندوبار (ل=لنډغر) |
| غمزه يي | غمزه کش |
| کاري | کاري، فعال |
| موچي(!) | موچی، پینه دوز |
| مېله يي | میله باز، عیاش |
| ميندکي | غمزه یی، معتاد به غمزه کشی |
| نسواري | نصواري، نصوارکش |
| نشه يي | نشه کننده |

۷-۳-۲: نوم + به= چارنوم(به-- بون) :

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اسبه | گله بان اسپ |
| اوربه(وربه) | آرد فروش، علاف |
| اوښبه | گله بان شتر |
| بوټبه | چوب فروش ، هېزم کش |
| ثرکبه | پل بر؛ جاسوس |
| ختبه | گلکار |
| خربه | گله بان خر |

| ويي پوهنه | چارنومبېلنګونه |
|---|---|
| خسبه | چوب فروش |
| رګبه | رگ زن، فاصد |
| ستنبه | ابله کوب، پیچکاری کننده |
| غوبه | گله بان |
| کډبه | خانه بدوش |
| کوربه | میزبان |
| ګډبه | شبان گوسفند |
| لاربه | رهنما |
| لرګبه | چوب فروش، چوب شکن |
| لېربه | شبان بره |
| وړبه←اوړبه | آردفروش، علاف |
| وزبه | شبان بز |

## ۷=۴: اړيکنومبېلنګونه

### (اسمای اشتقاقی نسبتی)

### The trible-,cognate denoting derivatives

غرځن، غرځه غريخی، باندېيخی، کليوال، کړه وال، غو يی، غويمه، خوريی، خورځه، وراره، وربره، تربور، ترندار، ترله، ساکزی، اڅکزی، کابلی...

بېلبنتي اړيکنومونه يا اړيکنومبېلنګونه چې روستاړي يې له ستاينوم او ځينو نورو نومونو سره لږو ډېرګډون هم پيدا کوي، هغه ته وايي چې په يوه ځای، سيمې، هېواد، کور، کهول، خپل، ټبر، ولس ...پورې د يوه څيز يا يوه چا اړوندي (نسبت) ښيي.

مورږ يو ځل بيا دا يادونه ورنده بولو چې لکه د نورو وييرغاو نو په څېر، دغه برخه هم په بنسټيزه توګه د هممهالي (ساينکر ونيکي) ليدتوګې په رڼا کې تر څېړنې لاندې نيسو که نه، لکه څنګه چې ځای پرځای مو دېته ګوته نيولې، ښا يسته ډېر او سني ساده وييونه له ناهممهالي (دايکرونيکی) پلوه پخواني بېلنګونه او ان تړنګونه زبادېدای شي.

تړښتي بېلګه، لکه (سپور< آسپوری) او بېلښتي هغه يې،

لکه: تنې<تړ+ی) ،سترګه< ستار+چه= ګه، لېمه <ليد+ مه؛

د پارسي (چشم) پخوانی ځېل (چش) اوس هم د ايران خوا ته ويل کېږي او ترڅنګ يې چشمه (چينه) او سرچشمه (سر چينه له (م=مه) سره ويل کېږي.

مرجونا يا مرجوړا (غواص) هم کېدای شي، آره يې ((مرجان+.ا)

اوسي، خو د دندې په جاج په ← چارنوم اړه پيداکوي!

کوربل، غوبل، غويمه، سپېمه... یا (پیاړمه) د (روستاړي) همما نیز د پارسي (دُمچی) انډول، پیوند، (پونده، پیاوړی، پیلامه، پیغور (پیگاره)، پیوست، پیوستون، پیلڅکی یا سروری (سرباری بارشتر وغیره)، پیلپیلګه (گهواره جنبان)، پیلې، پایلې یاپښولې (پا یزیب)، پیکړه، پیلوړ (کوشش؛ اهتمام، غمخوری)، پیغړی، او داسې نور هم ډېر همدا سې درواخله چې له آره له (پی-) سره رغېدلي زاړه بېلنګونه دي.

بېلښتي اړیکنومونه د بېلابېلو روستاړو له مخې پر بېلابېلو ډولونو داسې وېشل کېدای شي:

۱) په - وال، چې له ستاینوم او چارنوم سره لړو ډېرګډون لري، لکه: کلیوال، بانډه وال، هېوادوال یا وطنوال، انډیو ال، کامه وال، غزنیوال، ځمکوال، پانګوال چې دا دوې بېلګې همماله په ← چارنومبېلنګونو هم اړه پیداکوي.

۲) په -ځی، لکه: بنوځی، غریځی (غرنی)، بانډېځی (بانډ يسی)، غرځه (حیوان کوهی) یې لنډه بنه او غرځن او غرځنی (حیوان کوهی؛ بجل بزکوهی) یې هم غځېدلې بڼې دي.

۳) په - چی، لکه: بانډېچی، غزنیچی چې غزنیوال یې ادبي راځي.

۴) په - آنی، لکه: زمریانی، جمریانی(ګمریانی)، خوګیانی، دوتانی، مشوانی، ګګیانی، کرلانی...، چې/ن/ هم له آره/ن/ دی.

۵) په -زی رغېدلي او رغېدونکي وييونه چې د زوی په مانا يو خپلواک ويی هم دی (وردګ، منګل او نورکرلاني)، خو د ګړدودي ډېري له مخې يې يوه کړولی او بيا اړيکروستاړی کاروو، لکه:

ترورزی، بنزی، لېورزی، ميري زی، نندرورزی، مامازی، محمدزی، متېزی، بارکزی، ساکزی، يوسفزی؛ ښځينه انډول يې-زه، - ځه او -زۍ راځي، لکه: خورزه (خورځه)، ترورزۍ... .

۶) په- ځن، لکه: غرځن چې غرځنی غريځی غرځه او غرزی يې ببلابېل جوليز او مانيز ځېلونه دي (←۲)؛ غرشين (کوه نشين؛ نام طايفه يی از پشتونها ونيز نام شاعری) لکه همآري پارسي (کوه نشين) زوړ رغېدلی ترنګ دی.

۷) په - يسی، لکه: بانډيسی (بانډېځی)، پرديسی يونانيانو (پاراديس) کړی او عربانو (فراديس) ته وراړولی او هله يې يوګړی (فردوس) ورقياس کړی دی.

۸) – مه، لکه د (لېمه) په تړاو چې وار له مخه وويل شول، دا يو ارکاييک څيزنوميز او بيا اړيکنوميز روستاړی دی، نورې بېلگې يې، لکه: ځبړمه، گوتمه(گوتمی)، زبرمه، وږمه، شپږمه، سېلمه، ښبرمه، دورمه، خزمه(خزهٔ شکار)، خورمه (دام؛ دانه يا بخار که روی زنخ پيدا ميشود)، کړمه (= مېړمن يا مېړو ښه: زن شوهر دار)، کوړمه(خانواده)، کولمه، للمه، مېلمه، ژامه...؛

د همدې اټکلي رغاونو په لړکې يو شمېر (-مه) بېلگې يوو ستوې نه بريښي، لکه په پايلامه (علامه، نشانه، خصوصاً علامهٔ قيامت) کې د (-لامه) او په پيلامه (علامه، نشاني، بنياد، خوی؛ سرآغاز)، بادامه(باد تونده وتيز توأم با برف، گر دله)، ډمامه(نقاره، نغاره)، په دويم خج (زمين چقور و آبگير)، جما مه(نوعی شرشم که درگندم زار ميرويد)، ترامه (آهن چا در)، ژامه او سارمه(نوعی سبزی)... کې د ( -امه) په بڼه را څرگند يږي؛ همداسې په رنځړومه کې د(-ړومه)، په پياړمه (پاردُم...) کې د(اړمه)، د(-امه) او گردومه(هاله) په بڼه او دا سې نور؛

له منځېواک(-ې) سره (-ېمه) بڼه يې، هرگوره، زيات د ښځينه ژويو په نومونو پورې نښلي او د(نرطلب) مانا ښندی، لکه غويمه، خرېمه، سپېمه او لاکله ناکله(سنډېمه) د کنځا په تو

گه د ښځمنو لپاره هم کار ول کېږي) ، نورې بېلگې: وزېمه،مرېمه، اسېمه، او ښېمه، پشېمه، مېښېمه... ؛ د مزينې خوا ته دلبوې په تړاو (لېمه) وا يي چې ښايي، مخينۍ بڼه يې (لېوېمه) اوسي،کټ مټ، لکه (غويمه) يې چې (غيمه) کړې ده!

۹) په وښه، لکه : اوښه(اوښکه)، مېږوښه يا مږوښه؛ پېلوښه (ريسمان پای بند خر) او پلوښه ، پلواښه يا غوړاشه (کاج دکمه) ورسره تش له جوليز پلوه ورته برېښي او ښايي، له دوه لومړيو بېلگو پرته دا نورې له ( پل + واښ) څخه رغېدلي او سي؛ پلغاښه (گرهيکه زود واز ميشود) او پلگوا ښه (کمند حلقه دار) هم همدا سې درواخله.

۱۰) په - ينه ، لکه : مورينه چې د مزينې خواته د چرگانو تر ټولو مشرې او گډې مور ته وايي او په دويمه مانا د هر څيز آرې او منشاء ته وايي، لکه : په ژبپوهنه کې د يوې ژبنۍ کو رنۍ مشره او گډه ژبه (مورينه ژبه) بلل کېږي؛ نورې بېلگې يې لکه :نرينه، ښځينه، خورينه (خواهرخوانده) او هغه خپلوا نه يا کليواله ښځه چې بل ځای واده شوې وي او زوی يې خور يين بلل کېږي؛ (خورلڼه) ځېل يې هم پوره دود لري؛ ناينه له نايي(ډم) سره اړوند برېښي او ډمه او ډمگۍ (مشاطه، آرا يشگر، سازنده) يې همانيزونه دي!

۱۱) په ينگه، لکه : خورينگه (خواهرخوانده)، مورينگه (مادر خوانده)؛ په کابلي پارسۍ کې ( يانگه- زن اپور، اپورزن) يوز ته وايي؛ پښتو (اينگه) هغې ښځې ته وايي چې له ناوې سره د مېړه ترکوره ملتيا کوي، خو په لره پښتونخوا او بيا په لو ړو کورنيو کې ورسره د خپل کور مينځه هماغسې تر مرگه مينځه پاتې کېږي، يوه بېلگه يې د حيات او مهتاب شېرپاو خوروه چې له مينځې سره يوځای پر فاروق لغاري واده شوې او په دې توگه ورسره دهغه سرايیکي ژبي ديروجي پښتو پيا ورتيا موندلې ده!

۱۲) په زور واله -ی ، لکه : خوريی، غويی؛ کابلی، کندها ری، ننگرهاری، لغمانی، کونړی، لوگری، چاريکاری، غور بندی، کوهدامنی، پغمانی، ميدانی، هراتی، بدخشی، بد خشانی، ، اوتريشی، سويسی، امريکايی، اروپايی؛. هغه هېوادني نومونه چې د توکمونو (نژادونو) په نامه يادېږي، کوم روستاړي نه اړتيا نه لري، لکه: افغان، تورک، مغول، وزبک (وزبېک)، قرغېز، قزاق، تورکمن، تاجيک، روس، عرب، جرمن، انگرېز يا انگليس... په دې ډول (افغانی، تور کی، آذری...) په پښتو او پښتنو کې نادوده برېښي.

۱۳) په اوږده ( - و) چې زياتره ژبني نومونه جوړوي، لکه : پښتو، يدغو، پاړسو، تيرو، گوجرو، ديگانو ، هندکو... ؛

ترخنګ يې نور زياتره له (-ي) روستاړی سره دود لري، لکه:
عربي، چيني، مغولي،توركي، توركمني، الماني يا جرمني،
انګرېزي يا انګليسي، فرانسي (نه فرانسوي)... او پارسي هم
تر (پاړسو) غوره او كره راځي.

۱۴) په لنډه -ي چې د زوروالې -ی بلګړ (الومورف) دی په
وړاندې له ځاينومونو او تېرنومونو سره نه ، بلكې له ورپو
رې اړوندو څيزونو او پديدو ، په تېره ژبو سره راځي، لكه :
توركي (خوراک، ژبه دود دستور...)، همداسې، وزبكي، جر
مني، انګرېزي، اروپايي... او د وګړنومونو او ځينو ځاينومو
نو...په تړاو ، هغه هم تر ډېره تر پارسي اغېزلاندې دغه(روستا
ړي) ته اړوځو ،لكه :احمدي،خليلي،طرزي، هېروي، پارسي،
عربي، بلوڅي، انګرېزي، فرانسي اسپانيي، ايټاليا يي...؛
که نه دكورنيو او سيمو اړوند نومونه (-ی) روستاړي ته راړ
وو ، لكه: پرواني، بغلاني، سيستاني، نورستاني، كوندو
زی، پنجشېری،كابلی،پېښوری،ايرانی، مصری، هندی،
چينی، فرانسی، اسپانيی، يونانی، سويسی هالينډی ....

۱۵) په - نی، لكه : له لواړګی ښخه لواړګينی، پاسنی، كوز
نی، برنی، لرنی، كښېنی

۱۲) په - بور، لكه : تربور، د زركبوری، (-ی) ښايي كوشينر
وستاړی اوسي؛ له تاريخي پلوه (بور) د (زوی) په مانا ازاد ګړ

بلل کېږي، او لا په ډېرو ګړدودو کې د اريې (بور) يا د توت غوټېو يا (مونګرو) په مانا هم دود لري؛ بوره(زن فرزند مرده) ور سره هم همارې ده چې ښايي، د پېړيو په پوړيو کې يې منفي مختاړی يا الفه نېګتيوم له لاسه ورکړی وي!

۱۷) په -له ، لکه : ترله (دختر کاکا)، چې ښايي له آره (تره لور) اوسي، بيا (ترلور) او په پای کې (ترله) شوی اوسي.

۱۸) په - ګه، لکه : بل ځايګه (شخص خارجی،اجنبی، بيګانه) چې (بلځايي) هممانيز يې هم پق راخوندي کړی دی.

۱۹) په - لڼه ، لکه : خورلڼه (خواهرخوانده)، لکه وړاندې چې پرې رڼا واچول شوه.

۲۰) د(ورور) په منځ خپلواکونج ، لکه : وراره(زن برادر مرده)، وريره؛ په بوره وراره (زن بچه مرده و برادرمرده) کې ورسره هم بې تړاوه نه ده

۲۱) په - نداريا-بندار،لکه : وربندار، تېبندار(=کاني-کواني).

۲۲) په -وان، لکه: خپلوان، پرېوان،ګرېوان او پېژوان، که څه هم هممهاله يو لوښنوم هم دی؛ (خپلوان) د يوګړي او ډېرګړي دواړو لپاره کارول کېږي او دا اټکل هم کېدای شي چې د (خپل) ډېرګړي اوسي، هغه هم د (- و-) له ډېرن سره .

## ۷-۴: داړيکنوم بېلنګونو ليکلړونه

### ۷-۴-۱: ځاينوم+ وال= اړيکنوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| باړه وال | باشندهٔ باړه (پښتونخوا) |
| بانډه وال | ده نشين ،دهاتی، باشندهٔ بانده |
| بېسودوال | ساکن بهسود |
| پکتيا وال | باشندهٔ پکتيا |
| پېچوال | ساکن پيچ |
| پېښه وال | سکن پېښه |
| ترنکوال | ساکن ترنک |
| تيراوال | باشندهٔ تيرا |
| ځمکوال | زميندار |
| څوکيوال | باشندهٔ ولسوالی چوکی |
| زاوه وال | باشندهٔ زاوه (خوګيانی) |
| شيوه کيوال | باشندهٔ شيوه کی |
| ښيوه وال | باشندهٔ شيوه |
| غروال | کوهی |
| کاربزوال | باشندهٔ منطقهٔ کاريز |
| کامه وال | باشندهٔ کامه |

| ويي پوهنه | اړيکنومېلنگونه |
|---|---|
| للمه وال | باشندۂ للمه |
| کاندوال | باشندۂ کاند |
| کډي وال | باشندۂ کډی (مزینه) |
| مزینه وال | ساکن مزینه |
| کلیوال | ده نشین ، دهاتی، هم روستا |
| کوټوال | باشندۂ ولسوالی کوت |
| گاگره وال | باشندۂ گاگره (ولسوالی هسکه مېنه) |
| مزاروال | ساکن مزار (کنر) |
| نرنگوال | باشندۂ نرنگ |
| نړیوال | جهانی، بین المللی |
| هېوادوال | منسوب به میهن؛ هم میهن؛ میهنپرست |

یادښت :

ټبرنوم، لکه (ټنیوال) د (ټنی)، (خوگیاڼیوال د (خوگیاڼی) پر ځای دومره کره نه راځي، همدا راز له ډېرو ځاینومونو سره (- وال) دومره اړخ نه لگوي، لکه :کابلوال د ( کابلي) پرځای، هرات هم هراتي راځي، او ادبي- يې (هروی ) چې ترڅنگ يې زوړ پښتو ځېل ( هریوال) اروانباد (صابر هروی) د راديو د

كمپوزر په توګه ځانته ټاکلی وو، هم په زړه پورې او کره تار يخي بلل کېږي.

۷-۴-۲: ځاينوم+-ی (-áy) اړيکنوم، پارسي اړون روستاړی (-í)

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| الينګاری | الينگاری |
| اليشنګی | اليشنگی |
| امريکايی | امريکايی |
| انګليستانی | انگلستانی |
| ايرانی | ايرانی |
| باميانی | باميانی |
| بغلانی | بغلانی |
| پغمانی | پغمانی |
| پنجابی | پنجابی |
| پنجشېری | پنجشيری |
| پېښوری | پيشاوری، پشاوری |
| تالقانی | تالقانی |

| ويي پوهنه | اړيکنومبيلنګونه |
|---|---|
| جوزجانی | جوزجانی |
| چاریکاری | چاریکاری |
| خوستی | خوستی |
| سیستانی | سیستانی |
| شلگری | شلگری |
| غرجی | غرجی |
| غوربندی | غوربندی |
| غوری | غوری |
| کابلی | کابلی |
| کتهوازی | کتوازی |
| کندهاری | کندهاری |
| کوندوزی | کندزی، کندوزی |
| کونړی | کنری |
| گردېزی | گردیزی |
| لغمانی | لغمانی |
| لوگری | لوگری |
| مالستانی | مالستانی |
| مزاری | مزاری |
| میدانی | میدانی |
| نجراوی | نجرابی |

| ويي پوهنه | اړيکنومبېلنگونه |
|---|---|
| ننگرهاري | ننگرهاري |
| نورستاني | نورستاني |
| هراتي | هراتي |
| هېلمندي | هلمندي |
| هندستاني | هندوستاني |

۷-۴-۳: کورني یاټبرني اړوندنوم+زی (-záy,-zāyí)= اړيکنوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اتمانزی | اتمانزايی (=اوتمانزی) |
| اڅکزی | اچکزايی |
| احمدزی | احمدزايی |
| الکوزی | الکوزايی |
| بارکزی | بارکزايی |
| بايزی | بايزی |
| بنزی | پسر امباق |
| پوپلزی | پوپلزايی |
| ترورزی | پسر عمه وخاله |

| ويي پوهنه | اړيکنومبېلنگونه |
|---|---|
| ترکزی | ترکزایی |
| جلالزی | جلالزی، جلالزایی |
| خلیل زی | خلیل زایی |
| داودزی | داود زایی |
| دویزی | دویزی |
| ساکزی | اسحاق زایی |
| ستانیکزی | ستانیکزی |
| سدوزی | سدو زایی |
| سلیمانزی | سلیمان زایی |
| شملزی | شملزایی |
| شموزی | شموزایی |
| شېرزی | شیرزی، شیرزاد |
| سینزی | سینزایی (ښینزی) نیز مینو یسند |
| کرزی | کرزی |
| لېورزی | پسر یور |
| مامازی | پسر ماما |
| متیزی | متیزایی (= متېزی) |
| محمدزی | محمد زایی |
| مسیزی | مسیزایی |
| مموزی | مموزایی |

| ويي پوهنه | اړيکنومبيلنګونه |
|---|---|
| مينزى | مينزايى |
| نندروزى | پسر ننو |
| يارزى | يارزى |
| نورزى | نورزايى |
| يوسفزى | يوسفزايى |

يادښت: افغاني پارسيوان کورني، ځانګړي او ځيني تېرنو مونه لړ و ډېر په هماغه پښتو بڼه ادا کوي.

۷-۴-۴: د ژوي يا ځيزنوم+ېمه (emá-)...= (ارکا ييک) اړيکنوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| آسېمه | ماديان، نرطلب |
| اوښېمه | شتر ماده در موسم جفت شدن |
| پيارمه | پاردم، دمچی؛ ريسمانيکه حصۀ آخر چارپايی را به آن محکم ميکنند. |
| پيشېمه | گربۀ نرطلب |
| پيلامه | علامه، نشاني، بنياد، خوی؛ سرآغاز |
| څېرمه (!) | مژه، پلک چشم |
| څېرمه (!) | فرعی |
| خرېمه | ماچه خر نرطلب |

| ويي پوهنه | اړيکنومبېلنگونه |
|---|---|
| خزمه(!) | خزۀ شکار، کمينگاه صياد |
| خورمه(!) | دام؛دانۀ خورديکه بر روی و زنخ پيد ميشود. |
| دورمه | دُرمه، نی |
| رنجړومه | سرمه دانی (= رنجلومه، رنجنونې، رنجونې) |
| زېرمه(!) | ذخيره؛ پس انداز؛ سفارش؛ خبر گيری؛ مراقبت |
| ژامه(!) | الاشه، فک |
| سپلمه | فاخته، قمری؛ مؤنث سپلم(روباه؛ غماز، سخن چين) |
| سپېمه | ماده سگ نرطلب |
| سنډېمه(مېښېمه) | گاو ميش جفت طلب |
| سېلمه(!) | خاندان؛ گاونډی؛ (له سېلمې) همه |
| غويمه(غيمه) | ماده گاو نرطلب |
| کړمه (!) | زن شوهردار(= مېړوښه)؛ |
| کوړمه(!) | خانواده ، خانمان؛ اهل بيت؛ خانم |
| کولمه(!) | روده؛ لولۀ آب؛ صفت شخص درازوکشال(=کاشواړ) |
| گردومه | هاله |

| ويي پوهنه | اړيکنومبېلنګونه |
| --- | --- |
| ګوتمه | انگشتر؛ انگشتانه (= گوتمی) |
| لېمه | چشم، دیده |
| لېمه (لېوه مه) | ماده گرگ نرطلب |
| مېږېمه (مږېمه) | میش جفت طلب |
| مېښېمه (سنډېمه) | گاومیش نرطلب |
| مېلمه (!) | مهمان |
| وزېمه | بز نرطلب |
| هېښمه (!) | ابرسیاه و باران ناگهانی |

## ۷-۲-۵:: لوښنومبیلنګونه (اسمای اله)

## Instrumental derivatives

اوړۍ، غاړه کۍ، ګوتمه، کوتمۍ، موتۍ، موتیانه،
ایرنۍ، رسنۍ، غاښۍ، غاښور، لوبونی، چاڼوونی، مالګانۍ،
پنډوس، پنډوسکه، منګلوسه، مروړه، تودمېچ...

لوښنوم (اسم آله Nomen instrumenti) د هغې وسیلې یا لوښي نوم دی چې یو څه پرې ترسره کېږي، لکه: بیاتي، چاړه، چاکو، څټک، قلم یا لیکانی، انبور، تبر، تښنځ، رېبځ (جارو؛ برس)، تېښۍ (برمه) او نور کاراوزار، سامان؛ ګاډی، اورګاډی، څراغ، څمڅۍ، کاندۍ یاکاشوغه، تبۍ، کونډۍ،

کټو، دېگ، خولۍ، پگړۍ، خت، گنډۍ (کورتۍ؛ جمپر) او نور پوښاک...

په پښتو کې د دغو يووستوو لوښنومونو تر څنگه بېلښتي او تړښتي هغه هم لړ نه دي چې موږ يې د لته له ويېنې (بحث) سره سم يوازې بېلښتي هغه راخلو. دا راز نومونه د رو ستاړو له پلوه له نورو بېلنگونو (مشتقاتو)، په تېره ستاينومونو سره ورتوالی لري، د ستهی او ربښې له مخې زياتره کړ نومونه بلل کېږي.

په دې لړ کې مو په استثنايي توگه ځينې زړويزنه (اركاييزمونه) هم رانغښتي چې نن سبا يووستوي برېښي. داستاد رښتين په وينا (۲۳) هماغه يو ډول بېلنگونه، که د سا والاوو لپاره راشي، د ستاينومونو پازه پرځای کوي او که په بې ساوو اړه پيدا کاندې، د لوښنومونو په توگه کارول کېږي، لکه په لاند بنيو زړو او نوو بېلگو کې:

۱) په-نۍ، لکه: ايرنۍ (خاکستردانی)، خوږه نۍ (قندداني)، تودنۍ (بخارۍ)، بارانۍ (بارانی، کوټ)، بدنۍ (لوټه)، مرچنۍ (مرچدانی)، خځلنۍ (زباله دان)، کاغزنۍ (کاغذداني)، هگنۍ (تخمدانی)، غوږنۍ (آلۀ ممد شنوايي)...

۲) په- وونی، چې د لېږندکړ په بنسټ پورې نښلي، لکه: لوبوونی، چاڼوونی، لگوونی، سپېروونی (برونه)، پاکوونی،

غوځووني، ګرووني (خميرتراش) ، نښلووني، ټينګووني ګيرا)، ماتوني، تړوني يا هډتړ (لتۀ شکسته بندی؛ آلۀ بستن، بنداژ) .... .

۳) په نرمه يا زوروالهـ -ی ، لکه : له نيسل ځخه نوسی (ړښتين ۲۳ )، غوړی (ګوشۀ هرچيز؛ کُرد خورد؛ مضراب يا ګوشک رباب، ستار...)، کروښی(تکۀ زير يخن)، خيری يا ځيره(پرزۀ کاغذ ، رقعه)، ځوی(کمينګاه)، ځنګلی(د يرک اول يا آخير خيمه و غژدی)، ځنګی يا وندر، ځنګوښی(بند تفنګ)، خروټی يا اړه (پيمانۀ غله وخرمن)، خوری(کاسۀ ګلی)،ځنګوانښی يا ځنګوبړدی (بالين، متکأ)، ځوروی(خزۀ شکار)،موټی(مشت؛ قبضۀ شمشير کرچ، و ما نندآن؛ دستګيرقلبه...)، ځوری (سنګ تيز)، ځو ری(توشه، زادراه، سفرخرچ)، سولی(چکش تيزکن آسياب)، مولی(دستۀ هاوند).. همدا راز← (کوشيننومونه).

۴) په -نی ، چې په انګينوميزې کړولې (صوتی فعل) پورې نښلي، لکه شرنګنی يا شرنګانی، ټنګنی... (هماغه اخځ).

۵) پهـ ور، لکه : لوړ (lawər کوتک)، ماتوړ د تبرې ماتولو اله (مارتول ، مارتو، مارتلوسې؟).په (متوړه پزه) کې هم ورته لوښنوم ته نغوته کېږي، خو فرانسي آره يې باوري برېښي.

۶) په- ور ، چې سمدلاسه يې يو ساری (غاښور) د پارسي (را کول) له مانا سره.په لاس کې لرو.
۷) په- مار، چې له آره يو پور چارنومېز روستاړی دی، لکه لوټمار (کلوخکوب) چې دويمه مانا (غارتګر) يې دلته بې تړاوه ده.
۸) په- که ، لکه : خورکه ( وړه کټوه)، موکه (پاپيچ نمدی)، غړکه، نانځکه، موټکه(دستګير قلبه)، لومکه، ځرخکه يا ځرخکی(چرخک چوبی پشم ريسی)،لوبتکه (چرخ نختابی؛ بازيچه)، تلکه (تلک)، غدکه(قبأ)، باغکه (تُشلهٔ بلوری)، پلکه(کوکه)، غولکه(غولک)،....
چورلکه چې آرې ماناوې يې(چرخک چوبی؛ بينی و پسکی پيزار) دي، ونجويزی (سېمانتېزم يې(هليکو پتر) دی او پرتلو يزی يې الوتکه(هواپيما ،طياره).
۹) په- زورکي واله -ۍ، لکه : بټۍ، پټۍ، مندرۍ يا والۍ (گوشواره )، اوبۍ، غوبۍ (کلاه؛ چهرهٔ شکار؛ سرگو شی)، سترګۍ (عينک)، شګرۍ(الهٔ ساختن ظروف گلی)، ږمنځۍ (شانهٔ جولا) سرۍ (سرخانهٔ چلم، زين پوش...)، پترۍ (پل ريش؛ برگهای نيشکر)، کټۍ،کونډۍ، کرنډۍ(ملاقه)،موټۍ(دستګير درواره وغيره)، مټۍ، چاټۍ، پنځۍ(خريطهٔ چکهٔ قروت)، ځونځۍ يا ځمځوکۍ(قاشق)، ځونټۍ(چونته،

چولاق)، کرښکۍ يا کور کمبله (گلميکه بالای آن رختخوابها را ميگذارند)، کينډۍ (قالب)، ښويندۍ (يخما لک وسا ختمان آن)، بغرۍ،ثمځۍ، تبۍ، بټۍ، سنۍ، ثنۍ يا انځۍ (سردوز)، ځولۍ، خنگرۍ (يک بغل کاه و علف)، څځۍ (نا وه)، بوجۍ، څپلۍ، سلۍ(انگشتری آهنی که عقيد تاً جهت دفع خطر به انگشت ميکنند)، مورلۍ(تولۀ مارگير)، ډولۍ، انډ ولۍ (کجا وه)، خورجۍ، ځولۍ، بنۍ(انبان؛ دم آهنگر)، کرۍ (کارابزار با فنده گی)، لوغۍ (گاو دوشه) چې ترښتي هممانيز يې (غوا لوشه، غالوشه) هم دود لري،کوناستۍ (چوکی بازو دار کودک)، هم يو ترښتي (کون+ نا ست+ۍ) لو ښنوم ښکا ري؛ کو ناستۍ (د ماشوم لومړنۍ نا سته يا نا ستۍ) هم ورته ترنگ بربښي.

۱۰) په- ين ، لکه : لونگين ، مرغلين (تارتسبيح و غيره)، پوستين، گډين، خورجين....

۱۱) په-انی،- آنی، - ني، -نۍ،لکه کرنۍ(ارکاره، روغنداغ)، پوکنۍ(پوقانه)، کنگلنۍ(يخدان، برف دان)، مالگانی،مالگا نۍ يا ما لگينی، شرنگانی، ليکانی ( قلم)، مرنۍ (خرقه) هم ښايي په ورته لړۍ کې راشي!

مشوانۍ هم که له مش (جېب) سره تړاو ولري،( -وانۍ) بيا روستاړی را ځي؛ وانۍ يا وانې(پی پشت پای)؛ لستونی (آ

ستين) د (لاس) د پخوانی بنې (لست-) اود ترخپلواک(-و-) په منځګړتوب له (-نې) روستاړي رغېدلی کوشيننوم او بيالو ښنوم ياځاينوم دی، نه د استاد رښتين(۴۵) په اند، چې بنستيز توکی يې د (لاس) لنډيز (لس-) دی او (تونې) ورسره د توني روستاړی په توګه نښلول شوی دی!

همداسې لستوڼکی(آستيچۀ نانکنک)، (لاستی) هم له (لا ست+ی) څخه رغېدلی لو ښنوم دی؛ نورې بېلګې يې، لکه په لاسته، لاستورکی؛ پوکنۍ(پوقانه؛ حباب)؛ واوره نۍ (يخد ان) د ځاينوم او لوښنوم ترمنځ خرخشن اېسي!

۱۲) په کړوال روستاړي نوی جوړشوي لوښنومونه، لکه: لر ليد (دورنما)، نړۍ ليد (جهانبيني) اوبتل، لروين (دور بين)، لروينون (تلويزيون) زړې ترښتي بېلګې يې، لکه: مچشړ، سروېړدی، څنګواښتی، لاسماغو يا لاسپېلې.

۱۳) په- کی، -کۍ لکه: اَړکَی (چوب کمان مانند گليم بافی؛ پلۀ زينه)، اَړکَی (چوبيکه که در وقت تنسته تا و بالا ميشود)، اړکۍ (تلک)، واښکی(ريسمان خورد؛ خوشۀ انګور)، يوکۍ (بايسکل)، غاړکۍ(ګردنبند)، نغاړکۍ (توشک لته های کهنه)...

۱۴) په- وس، - يس، -سه،-س، لکه: پنډوس (رښتين ۲۷)؛ منګلوسه(تخت روان، دولی)، پنډوسکه، پنډو سکی يې

غځېدلې بڼې دي؛ غونډسکه او غونډوسکې (توپ)، کنډوسکی (حصهٔ کوچک گِرد، قند...) يې هم همجوليزې او څه ناڅه هممانيزې رغاونې دي همداسې لاړيس (دوچرخه، بايسکل) او (ډانډس) درواخله.

۱۵) په- مۍ، يا مه، لکه گوتمۍ (گوتمه).

۱۶) په- يالی، لکه: غوټيالی (گلوبند)؛ ډبالی (کندوی گلی) ورسره نژدې برېښي..

۱۷) په- کښ، لکه: وسپنکښ، اوبکښ (واترپمپ)، درونکښ (جرثقيل، کرېن)

۱۸) په-نی، لکه: ساگنی (له ساگ څخه) د بشقاب په مانا، درغنی (پايکوب برنج پاکی)...

۱۹ په- له، لکه: ساگله (مسی ديگ)، پياله، منجيله، پتيله

۲۰) په- لو، لکه: ساگلو (ديگبر)، تېلو (پستان بند).

۲۱) په- مونی، ونی، لکه: لړمونی يا، (اور) لړونی يا لړمونی (آتشکاو)، اړمونی (چوب چهل مرده، جبل، رافعه)؛ مونی (حمايل)، مونی (با فشار انجامی: تيری که گوشت لاندي را ازآن می آويزند).

۲۲) په- وستی، -وستنی، لکه: پټي وستی (به امتداد کُردها)، پړوستی (پيهم!)، ملاوستنی (کمربند).

۲۳) په - مېچ، لکه: اوریا میچ (بارومتر)، تود میچ (ترموتر)، نغوږ مېچ (شنوا سنج او دیمتر)، لید مېچ (دید سنج، اوپتو متر)، سږ مېچ (ریه سنج پنیومتر)، سامېچ (دمسنج)، واټن میچ (مسا فت سنج)، ریږده میچ (زلزله سنج)، لوند میچ (رطوبت سنج)، بد لمیچ (میزان الشعر)....

۲۴) په - وندی، لکه: غړوندی (قلاده، گردن بند حیوان؛ سکون؛ نېکتایی)، پښوندی یا پښندی (پای بند بز و گو سپند؛ زولانه)، غَړُوندی (گردن بوتل) ورسره هسې هم لیکی دی.

۲۵) په -انه، لکه: موټیانه (موټی، موټۍ...: دستگیرقلبه و غیره)، گوډانه یامش (بغل جیب)، کوچلانه (مشک مسکه اندوزی)، موښانه (مشک دوغ)، زولانه یا زولنه...

یادښت:

رسنۍ، لکه په ټولیزه رسنۍ (رسانهٔ گروهی) او ټولنیزه رسنۍ یا خوِاله رسنۍ (رسانهٔ اجتماعی) کې د همدې لړۍ نوې جوړونې دي. په آټېران (کلاوه پیچ) کې - ران) هم لوښنو مروستاړی برېښي، همدا راز په څوباړییا دوباړي کې -اړی دروا خله؛ په مختاړي بر-، لکه په برغولي، یاله غړونج سره دلاند ېستون (توشک) د قرینې له مخې په (بړستن) کې هم اټکلېدای شي، که څه هم (-ستن) او (-ستون) له آره ځاینوم

روستاړي دي، خو دلته دغه دواړه بېلنګونه د لوښنومونو
چار پر غاړه اخلي.
همدارنګه يو لړ خواره وواره لوښنومونه چې کومه ډله ټپله نه
رغوي، لکه: مزغاړی (سرمه دانی، کیسهٔ پول و هممانند، سا
خته از پوست بز و بزغاله)، ټکټک یا ټککه(تکک بیل)،
ټکټکه، ټکټکی یا ټکټکانکه(شیطانک آسیاب)، لووړی
(قسم به)، لوکړ یا غاښور (گاو زنبیل، را کول)، ترنګړ یا تر
نګړ، شلومباوڼ (خلتهٔ چکه و پنیر)، ګوړدم(چارتراش کلان)،
ګوړکه یا ګیتۍ(کلولهٔ نخ)، ګوګړ(گوگرد ، کبریت)، مشکڼه(
مهرهٔ میده وریزه)، مشکوله، چخله یا چوکه، ولانګه(تختهٔ
مرده شویی)، لنګه یا لانګه (پچاری چارپایی)، مړوی(میخ
چوبی)، پړوی (هریکی از چوبهای در سروپای تنستهٔ بافنده)
کتولی(طبراق انجیر چینی)، کنډولی یا کندوړی (کاسهٔ
سفالی)... یا په چارنومروستاړي(-ګر) یوازېنی نو یزی
(سولګر= رایانه، کمپیوتر).

## ۷-۵ : د لوښنومونو ليکلړونه

۱: نوم+ ی (-ə́y)= لوښنوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اځۍ | قفس |
| اوږۍ | گلوبند بيشترينه نقره يی |
| اوږۍ | گريبان شانه يی (=اوږه يي غاړه: قادر خاطر) |
| بټۍ | داش خشت پزی، کورهٔ ذوب آهن وآتم. |
| بغرۍ | هاوند |
| ببرۍ | کشتی؛ پابند اسيران باوزنه |
| بيندۍ | چلهٔ انگشتری (کنر) |
| تبۍ | تابهٔ (آهنی، گلی يا سنگی نانپزی |
| تتۍ | کاسه و پيمانهٔ چوبی؛ سينهٔ شتر |
| ترۍ | کشکول آسياب؛ ناوه |
| ترۍ | ناوه، ناوه دان |
| تغندۍ | کاسه |
| توښۍ | بخاری |
| تېڅۍ | برمه، (ښوڅنۍ) |
| تېلۍ | هميانی |

| ويي پوهنه | لوښنومېلنګونه |
| --- | --- |
| تيلۍ | دانۀ گوگرد ؛ قاش تربوز... ؛ پرخچۀ تيز و دراز چوب |
| ټوکرۍ | سبد |
| جړۍ | زهر مهره؛ هفته بارانک |
| چوخلۍ | چوب نوک تيز براى پوست کردن يا جدا کردن خوشۀ جوارى از غلاف |
| چوخۍ | چوکه چوب |
| څڅۍ | ناوه، ناوه دان |
| څلۍ(=څله) | حلقه و چلۀ گوش وانگشت |
| څمڅوکۍ | قاشق نانخورى، چاى |
| څمڅۍ | چمچه |
| څنګرۍ | يک بغل کاه و علف |
| څنۍ(انځۍ، سنۍ) | سردوز |
| خلتېمۍ | خريطۀ موى زنها |
| ځولۍ | کلاه |
| ډبلۍ | دُره يى بافته از پارچه هاى تکه در بازى اطفال |
| ډينګرۍ | پاروى کشتى و جاله(کشتى مشکى) |
| زندۍ | حلقه اختناق، غرغره ، حلقه دوانک اختناق |

| ويي پوهنه | لوښنومېلنگونه |
|---|---|
| سترگۍ | عینک؛ لخک؛ سوراخ چشمه؛ پردۀ چشم حیوان |
| سرۍ | سرخانۀ چلم |
| شپېلۍ | توله، نی، ترومپیت؛ سوراخ گوش، میلۀ تنفنگ، گلوگک آسیاب |
| شکرۍ | شگور (=شکور) |
| شگرۍ | آلۀ ساختن ظروف گلی، آله کوزه گری کلالی |
| ښاخۍ | شاخی خرمن و علف |
| ښنگۍ (وندر) | کمند حلقه دار گوسپندان و امثال آن |
| ښوڅنۍ | برمه (=تبڅۍ) |
| غاښۍ | شاخی خرمن و علف (= ښاخۍ) |
| غړۍ | حلقۀ گردن؛ تصغیر غاړه (گردن) |
| غوږۍ | کلاه گوش پوشک؛ گوشک یا گوشی تلفون و مانند آن |
| کاندۍ | قاشق، روغ، سوپ وغیره |
| کټۍ (کټو، کټوۍ) | دیگ گلی |
| کڼۍ | پلۀ تنستۀ کارگاه بافنده گی |
| کرکۍ | فال اسپار |
| کرنډۍ | ملاقه |

| ويي پوهنه | لوښنومېلنگونه |
|---|---|
| کرۍ | چوبی مربوط بافنده گی |
| کوتۍ | قطی |
| کَورَۍ | گاودوشۀ چوبی |
| کوزړۍ | نوعی بته؛آفتابۀ خورد که باچرخشش دزد را با مال دزدیده کشف میکنند. |
| کونډۍ | کاسه |
| کېڅۍ | کیسه |
| کېرندۍ | تفچۀ بودنه ها |
| کېږدۍ | غژدی، چادر، خیمه (از پشم سیاه، صحرا نشینان وکوچیان |
| گاډۍ | گادی |
| گدۍ | اریکه،مسند (قدرت)؛ (زن هرجایی) |
| گنډۍ | قبای نیم تنۀ ضخیم نمدی و پنبه یی؛ کرتی وجمپر امروزی (باجوړ) |
| گوتمۍ | انگشتری، انگشتانه (=گوتمه) |
| گوډیارۍ | مشکوله |
| لاړۍ | چوب آسپار که طور عمودی در کُنده آسپار نصب بوده و در سر آن دسته قر دارد |
| لښتۍ | گوشواره |

| ويي پوهنه | لوښنومېلنگونه |
| --- | --- |
| لوغی | گاودوشه ، ظرف دوشیدن |
| ماټوی | ماتیکه،نام زیوریست طلایی که زناز بر پیشانی تاکنارگوشها به شکل محراب میبندند |
| مټی | جک، خم کوچک دوغ زدن وغیره |
| مری | مهره |
| مرنی | خرقه |
| مشکونډی | نافهء مشک |
| مشوانی(!) | دوات ، بوتل رنگ نوشتن |
| ملاخی (ټکک) | تکک، شانهٔ بېل |
| موټی | دستگیر قلبه (= موټانه) |
| مندری | حلقهٔ گوش (زیور) |
| نتکی(نته) | بلاق، زیور بینی |
| والی | همان (=غوږوالی، پلترې) |

۲: نوم+ی (-áy)= لوښنوم

| ويي | پارسي مانا |
| --- | --- |
| باری | جبل ، میله آهنی، رافعه |

| ويي پوهنه | لوښنو مېلنگونه |
| --- | --- |
| بغبغي | كرنا، بوق، غبغب گلو، بغبغه (كابل) |
| پوزى | بوريا |
| پېزواني | چوبک يوغ؛ افسار گاو و ميش |
| تبخى | تابه، آهنى نانپزى، بشقاب |
| تختى | غورى و طبق گلى |
| ترسرى | آفسار (آسپ گاو وغيره) |
| توغندى | موشک، راكت |
| تونگى | صندوقچه و جزدان خورد از نى و بور |
| تېكى | غلاف شمشير؛ پوش عينک |
| تيلى | چوبک گوگرد |
| چاپيرى | پركار، پركال |
| چخ چخى | چوب نوک تيزيكه به آن خشاوه ميكند |
| چښنكورى | نولهٔ كوزه، شير دهن، نل وغيره |
| څانښى | دوک چرخه و غيره |
| څپڅپى | چچ |
| څرخى | چرخهٔ دستى سردوز |
| څوباړى | چوب جامه كوب |
| څورى | انبانچهٔ سفرى (=كورى) |
| درغنى | پايكوب |
| دوباړى | مانند څوباړى |

| ويي پوهنه | لوښنومېلنگونه |
|---|---|
| ډبالی | کندوی گلی |
| رپی | لرزه، اهتزاز؛ بیرق |
| رمبی | آلهٔ آهنی برای تراش چرم و پوست،ونخیشاوه |
| رووی | طبراق نان |
| ژغی | زنبیل ، تسکیرهٔ مجروحان وبیماران اواز کفش وغیره |
| ژندری | الهٔ سیمکش زرگران |
| سپرخی | سوزن چوبی کلان غژدی دوزی |
| غربی | سگک کمربند وغیره |
| غوزی (ووځی) | پشتاره |
| غوندی | جوال دوپله یی غله |
| کرښی | خط کش ، مسطر |
| کادری | سنگدان مرغ؛ هزارخانهٔ شکمبه حیوا |
| کرکړی | دولاب، چرخ آبکش |
| کرندی | کلند یک سره |
| کلوچی | چرخه ی نخ ریسی |
| کنوښی | زین اسپ |
| کنی | تنستهٔ بافت؛ بنات النعش، نبات پیچک |

| ويي پوهنه | لوښنومبېلنگونه |
|---|---|
| کواندی | قسمتی از هار وافسار شترکه از سردوز های رنگ رنگ بافته، برای اشتر حامل عروس بکار میبرند |
| کوبی | دسترخوان |
| کوری | ترنگن، کاه کش ، پوزبند لُخی وغیره |
| کوریلی | سینه بندچرمی، مریض سینه و بغل، پوربند ، اشرت مست و غیره از گیاه ا و مزری |
| گډوی | صراحی |
| گنجی | جاکت ؛کل؛ خوشهٔ جواری کم دانه |
| گنډنی | پیراهن کمر چین |
| گوتی | گونیا ، آله رسامی و مهندسی |
| گوډی(په دویم خج) | داس کوچک خیشاوه |
| گوډی | انبان،دستهٔ مشک دوغ،غوزهٔجواری |
| کوری | (ابتدأبه ساکن) ترنگن، کاه کش؛ پوزبند مواشی |
| کوری(څوری) | (بافشارانجامی) انبانچهٔ سفری |
| کوری | نمکدان |
| لاستی(لاسکی) | دستهٔ افزار والات |
| لرزی | دستکش خاروخس |

| ویي پوهنه | لوښنومبېلګونه |
|---|---|
| لمبۍ | چراغ ، لمپه |
| لوبځی | بازیچه |
| مږوی | میخ چوبی مواشی |
| موټی(-ی) | دستگیر قلبه ، قبضهٔ ، شمشیر |
| نخسی | چوب تابیدن پشم بالای چرخه |
| نګښی(نګوښ،نرګوښ) | چنگک ماهیگیری؛ کامه(،) |
| ووځی(غوزی) | پشتاره |
| وښی | چوری یا کرهٔ نقره یی |

۳: نوم+ه (a-)= لوښنوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| پلنډه | پشتاره؛ جوال |
| تراډه | تریشه، نوار، فیته |
| ترازه | همان |
| تښکوره(سسکوره) | تیشهٔ، بته کشی، کج بیل |
| تنبځه(تنبځ) | تیشهٔ نجاری |
| تلاژه | تریشه، نوار، فیته |
| تله | ترازو |
| تمبه | تنبه؛ چارتراش |
| تبغنه(تبی) | تابه |

| ويي پوهنه | لوښنومبېلنګونه |
|---|---|
| چوکه | چوب راندن گاو وغیره که در نوک آن میخ آهنی نصب شده باشد؛ عصای سکی و غیره |
| څپښه | پاپوش کهنه ، چپلک |
| څرخه | چرخه (تارریسی، کاغذ پران وغیره) |
| څله | چلهٔ نامزدی؛ یقین ، اعتبار؛ چهلهٔ زمستان وتابستان، چهلهٔ اعتکاف |
| رنجاړه | تریشهٔ جامه، فیته، نوار (=ریتاړه،ترا |
| ژندره | قفل،قالب درست کردن کارتوس (<هندکو، اردو... :جندره) |
| سپښته (بېډۍ) | بجل برای بازی وقمار |
| ښته | جوال دوپله یی که برخرو...بارمیکنند |
| سربانده | چرمینه ی که قلبه به آن بان بسته می شود |
| سسکوره(تِسکوره) | تیشهٔ کشاورزی |
| سلواغه | (دلو) دولچه ؛ برج دلو |
| سومبه | سُنبه ، سوراخ (بیل، تبر... که دستهٔ چوبی در آن محکم میشود ؛ نوعی پیچتاب لوله مانند |
| مورلۍ | تولهٔ مخصوص مارگیر |

| ويي پوهنه | لوښنو مبېلنګونه |
|---|---|
| میاځه | هاوند سنگی، تخته سنگ پهن و هموار که برآن چیزی میده میکنند (=درغن) |
| ښتره | آلۀ پاک کردن برف و امثال آن |
| میانده | هاوند سنگی، تخته سنگ هموار برای میده کردن نمک، مرچ ومساله |
| غوله | کندۀ چوب؛ آلۀ پیماش شیر و آب |
| کته | پالان شتر، خر وغیره |
| کټاره | خنجر، بیش قبض دولبه |
| کټوله | حجلۀ عروسی، دولی |
| کځوړه | خلته (خریطه) |
| کنډه | مثقال ترازو، ترازوی طلایی |
| کنګوله | کنگینه ی انگور، ظرف گلی |
| کڼاوه | کراوی، یکی از نعلین چوبی |
| لبنده | فلاخن، راړی، کمان، قوس |
| مچنوغزه | فلاخن |
| متروکه | تازیانه، قمچین |
| مروړه | صافی میلۀ تفنگ بافته از تریشه های تکه |
| منځه | دیرک مابین غژدی |

| ويي پوهنه | لوښنومبېلنګونه |
| --- | --- |
| منګانبه | سه شاخه ی خرمن بادی |
| منګلوسه | تخت روان؛ دولی یا کجاوۀ عروس |
| نته(نتکۍ) | بلاق، نوعی زیور؛ افسار چوبی که در بینی شتر می اندازند. |

# ۷-۶: ځاینومبېلنګونه

## (مشتقات اماکن)

## Toponymical derivatives

رغځی، اجلځی، ارامځای، دریځ، ګهیځ، زېلانځ، مېږتون، چړتون، مرېستون، مېلمستون،اورغالی، ژارغالی، ښرغلی، مندتۍ، سنځلۍ، مېچنۍ، ګلاپړۍ، ناړۍ، ناوه ګۍ، مغولګۍ، آریانا، لودیانه...

په پښتو، ويي رغاونه کې ځاينومونه د څيز نومونو يوه غوره برخه جوړوي چې په هغوکې بيا تر يووستو وروسته بېلښتي ځاينومونه د لرغونوالي، رنګارنګوالي او ډېروالي له مخې پوره په زړه پورې دي. په دې لړ کې له يو نيم زاړه مهالنوم سره هم اړخ بدلوي، په دوديزه نومونه، د نورو ژبو غوندې

(ظرف زمان) پر (ظرف مکان) اوړي، لکه واخلې (ګهيځ) د پارسي (سحرګاه) د انډول په توګه.

بېلښتي ځاينونومونه، په نورو ټکو، ځاينومبېلنګونه هم پر خپل وار د راز راز روستاړو پر بنسټ پر بېلابېلو ډلو ټپلو وېشنه مومي.

۱) په -ځ ، چې تر(-ځی) هم ډېر زوړ او تر رو ستي بريده رالنډ شوی دی، بېلګې يې، لکه : دريځ؛ ختيځ ، لويديځ ، پلويځ (ګاونډی...)، پخلنځ ، مينځ ؛ وريځ، په ګهيځ کې بيا مهالي جاج ښندي؛ په ړمنځ، ترخځ، تنبځ ، زېلانځ (رحِم)، خورمنځ (خوا هش، مزاج)، غولانځه، غوړانځه، لمنځه، برلنځه.. اوان (ښځه!). کې يې هم همداسې درواخله!

نوې بېلګې يې، لکه : اخځ د مأخذ (زيار) او لوبيځ د ستيج په مانا (ربنتين) او داسې نور.

۲) په تون، لکه : مېړتون، پنډتون، چړتون يا چېنتون (غلاف شمشير)، بودتون (بتکده)

نوې جوړونې،لکه : پوهنتون، روغتون، درملتون، مرستون، نندارتون، نياوتون (محکمه، دادګاه).

۳) په -ستون،-ستان، لکه : مړستون يا مړيستون مېلمستون، لاندېستون د توشک په مانا (باجوړ) چې (بړستن يې لا پخوا نۍ بېلګه برېښي، افغانستان ، پښتونستان ، وزيرستان،

کاکړستان، ارغستان، نورستان، ما لستان، شهر ستان يا شارسان د ربښتين (۲۹ مخ) په ګروهه لستونی هم همداسې يوه بېلګه بريښي.
کستان) د منځنۍ پښتو په لومړيو (۱۹۰مز) شاوخوا په ( سا کستانه کې راغلی او د (-ستون) په بڼه يې د لومړي دار يوش (۵۲۲-۴۸۶ مز) د بګيستون (بيستون) له ډبرليک سره تړاو در لودلی دی.
۴) په غالی ، لکه :اورغالی، ژارغالی، ژورغالی، کوتغالی (جای کو چک آفتاب رخ وبغل کوه يا تپه)، هوارغالی (جايی هموار در سر و يا بغل کوه وکمر)، کوزغالی (ظرف شکسته و چرکين مختص آب و نان مرغ و سګ)، پنډغالی(فرامګاه ګوسپند ان، کمپ، اردوګاه)، شپون غالی، شپولغالی، سو غالی، چو غالی، کوغالی (چقوری؛ خانهٔ محقر)، کوډ غالی يا کونډغا لی د خانه محقر په مانا ، چې کوډ غاله، کوډغل، کو ډغله، ډو او کوډخل يا کوډل، کوډله، کوډکه هم دود لري)، تبرغالی (جيب بغلی زنان) کورغالی (کُرد خورد)، ډوغل ( چقو ری او داسې نور ورته روستاړي راښيي.
نوې رغولې بېلګې يې، لکه: لوبغالی(ستوديم)، شپېغالی (نايټ کلب)، جنګغالی (ميدان جنګ، نبردګاه)، کارغالی (کارګاه، ورکشاپ) ....

۵) په - غلی، چې د -غالي بلګړاو مترادف دی، لکه: ښکار غلی، جارغلی یا جارګنهی(دیگدان بیرون خانه)، کرغلی یا ښرغلی د میرېیو او داسې نورو ځالو په مانا، سترغلی، پوند غلی... یې هم همداسې بوله؛ برغولی او ځانته غولی (صحن اتاق) هم په ورته آرې (منشأ) پسې ځي.

۶) په - جل، چې یو لرغونی تونی روستاړی دی، لکه: په غوجل، اسجل او بورجل کې؛ چل د رښتین (۲۹) په اټکل د جل بلګړ دی، لکه: په چاپېرچل کې، خو په مورچل کې دغه کوشینروستاړی هم کېدای شي، ځکه آره یې مورچه ده، دغه راز نوموړی (-ګل) هم له دغه راز تونی روستاړی انګېري، لکه: په نورګل، دیوګل، وایګل، شیګل، باشګل... کې چې آره یې دردي او نورستاني یې تر څنګه (-ګام) هم لري، لکه په بارګام (سپین کلي)، مانا دا چې په ګام یو خپلواک ویی هم دی.

۷) په -ګره، لکه: غنمګره، جوارګره، شولګره، خو دا چې دغه تونی روستاړی په کرونده پورې اړه لري، نو ښایي له آره (-کره) اوسي، لکه څنګه چې د سوات په منګوره کې د یوه ځای نوم هم (ګلکره) دی.

۸) په -ګړ، چې د -ګړی (کلی یا کلا) په مانا، د کلیو په نومونو کې راځي، د ګړ په بڼه له هندي ژبو سره هم اړیکي

لري، لکه : په خوشالګړه او شهبازګړه کی، نورې بېلګې يې
لکه : شېرګړ، ياغی ګړ، راجګړ ، تراګړ.....

۹) په غلط مشهور (-انه)او (- انا) او په سهي بڼو ،(a -) او (ā)
چې له نورو خپلوانو (هندو اروپايي) ژبو سره يو لرغو نی
ګډ توني روستاړی بر ښني او لويې ، لويې سيمې څرګند
وي،لکه : لوديانه، هريانه،اوديانه (سوات)، آريانا ، سوغديا
نا ، پښتيانا(پښتونخوا) ، يا اسيا ، امريکا ، اروپا ، افريقا ،
انتارکتيکا ، لوزيانه، کاليفورنيا ، اريزونا ، ويرجينيا ، ليبيا ،
وېنزويلا ، کولمبيا ،کوبا (کيوبا)، وينزوويلا ، بولوويا ، ملېز
يا ، اندونيز يا ، کوريا ، کمبوجيا....
/ن/ د (آريانا) پرلاسوند د ډېرګړي (جمع) لپاره راغلی او په
اړوند نوم توک دی، نه د روستاړي.

۱۰) په - آنه ، لکه : اغزيانه، څوزيانه، کوکيانه، وښيانه... ؛
نوې خپلاسی بېلګه يې بوټيانه ( د بوټو بڼ) چې اروپايي انډ
ول يې (بوتانيک ګاردن) دی. هندوانه، اډانه، اډانه يا هډوا
نه (چار چوب؛ استخوانبندی)، غوړيانه (يو راز سوسن)، غو
يلانه (سمنک)، کوزيانه (مراسم معرفی دا ماد به خانوادۀ عر
وس)، بکيانه (درخت رنګان)، ممانه، ترانه(خشم، قهر)، کر
بانه(رنګ سياه براق)، وانه ياګونډی(خوشه های جغل شدۀ
ګندم د خرمنګاه)، وانی هندي آرې پانه(برګ) چې نرۀ کرلانی

ځېل يې (پښنه pə́xǎ) دی او دا سې نور يوو ستوي وييونه د
دې لړۍ له ځاينو مونو سره هسې جوليز ورتوالی راښيي.

۱۱) په - نۍ، - نی، يا - نه، چې لوښن (ظرفی) نومونه هم جو
ړوي، لکه: پوکنۍ، اوبنۍ (آبدان، اورنی (آتش خانه)، واوره
نی (يخدان؛ برف دانی)؛ او بڼه يا پريوان (مشيمه)، هم ښا
يي، د همدې لړۍ رغاو نې اوسي.
همدارنګه مرخنۍ (عناب) هم يوه داسې لرغونې جوړونه
ابسي، د رښتين (۲۹_۳۰) په ګروهه چونيانۍ (تشناب)،
ښويدانۍ (لخشک)، پڼۍ (پايدان) چې راروسته پونۍ او
پوړۍ شوې دي، د همدغې لړۍ وييونه دي؛ په دې توګه چو
نۍ او مشوانۍ هم ورسره پرتله کېدلای شي.
۱۲) په- غه، چې له ګاه سره انډول بريښي، لکه: کرغه (ابتدأ به
ساکن: زمين خشک وکم ګياه)، کَرغه (مزرعه، چراګاه و
علفزار) او همدانيز (برغه) يې په اسماعيلخان ديره کې د ځايو
نومونه دي (رښتين ۳۰ مخ)، په مرغه او لارغه (مکث، وقفه)،
زړغه يا زړغۍ (تردد)... کې هم ښايي، ورته روستاړی اوسي.
۱۳) په -ونده، لکه: کرونده، چې بانډه يا وانده (اقامتګاه
موقت کوچي ها و مالدارها) ورسره رغاونيز او مانيز ورتوا
لی لري.

۱۴) په – ونج، لکه :له گړی څخه گړونج (د گړيو اېښوولو مېز) چې کوشينه بڼه يې ونجړی دی.
۱۵) په – ړومه، لکه په رنجړومه کې د تړ خپلواک (-و-) له ډېرن سره د (-مه) بلگړ اټکلولای شو.
۱۶)- ټ په ډيوټ کې هم د رښتين (۳۰) پړ اندو واند يو تو نی روستاړی دی، نو که داسې وي نو (کټ) يې لاښه بېلگه ده!
۱۷) –اټ په کوناټ (د هگۍ، منگي، کوزې... کونه يا ببخ) کې هم همدا سې يو روستاړی اټکلېدای شي چې کوناټی (سرين) او پرتليز(سومباټی) يې اړيکنومونه او ستاينومونه راځي.
۱۸) د ځاينومونو په لړ کې بوډيالۍ، پنډيالۍ، غلنۍ، گور گورۍ، سنځلۍ...؛ وټه پور، کټه پور، لاچه پور، سلطانپور، لو نگپور (چپرهار)، لالپوره، اکبرپوره(اټک)؛ کاڼيگرام، با گرام(پېښور)، بگرام(پروان)، وډيگرام (سوات)؛ ننگرهار، کند هار، چپرهار؛ تاشکند، سمرکند، يارکند(سينکيانگ)، چمرکنډ، ملکنډ؛ راجواړه، باجوړ او داسې نور د رښتين په انگېرنه (۳۱) لرغوني تو نی بېلنگونه دي، خو دغه ټول يو مخ نړه پښتو گڼل يوه ښنده (مبالغه) ده، په – گړ، -گل او – لام جوړ شوي ځاينومونه هم همداسې دروا خله – لکه چې له مخه يې يادونه وشوه.

(- هار) له ګندهاري- هندي ويهارا (بوت) سره تړاو لري، (نو وهارا) ، کندهار، بيار (بيهار)، چپرهار، بهارابات (د ننګرهار پوهنتون مخا مخ (بودايي سمځې او اړوند کلي) په هر ډول، چې ان وردګ (وردک) هم له آره (ويهارادک = بتکده، بودتون) دی؛ (-دک، --کد ، -کده، -ګت) تونروستاړي د پارسي او پښتو له ګډو آرياني پاتوړو ګڼل کېږي چې مزګت يا مزدک (مسجد ، معبد) يې هم ارکاييکې بېلګې دي او –ګاه او – غالي والا هغه يې نومهالې؛ (جلدک) او (جګدلی) بيا تورک- مغولي برېښي..

۱۹) هرګوره، (-کند) روستاړی ځکه بشپړ سوچه ارزولای شو چې د پښتو په ساکي نياګنۍ او خوتني خور ينګۍ پسې ځي؛ کو شينه بڼه (کوندي) يې په ( دايکوندي )کې ليداى شو؛کاندی، کوندی او ځاينومونو (کاند ، کندی(کامه) او داسې نورې ژو ندۍ او نيمژواندې بېلګې يې هم لرې نه دي؛ خو د کندهار (کند-) له آرنامه (ګندهارا) سره تړاو لري، چې په ګندهاري ژبه يې مانا(لوی بوت) ده او پښتو او پارسي ګونده (غټ) ترې هم آره اخلي؛ بت، بوت، بود( بودتون←پخ) بيا پرخپل وار د بودا له آرنامه (ګودمبود) څخه.

۲۰) په کوشينروستاړو (-ک، -که، -کی، -کۍ، ګۍ...) ، لکه ځيزنومونه او لوښنومونه، ځينې ځاينومونه هم شته لکه: ناوه

ګۍ، درګۍ، چرګۍ، ورځک يا ورسک، لولکي (چوب لوله مانند)، ناوه کۍ... ؛ ياد ونو بوټو ژويو او نورو اړوندځاينو مونه، لکه: مندتۍ، کجو رۍ، لوخۍ، اېنځرۍ يا اېنځرۍ، شينکي ياشينکۍ(زابل)، املوکۍ، ناوه ګۍ، سنځلۍ، ګورګورۍ، مغو لګۍ، تو تګي، خوګي، لواړګي، دربګي؛ خرکي (پاپين)، (ج۱۲)، کټ مټ، لکه: حصارک، منډ يګک، رامک، د هک يا ديک، بازا رک، جنګلک، تاله و برفک، تولک(غور)، يا خاواک او داسې نور. په پښتو، پار سي او ښا يي، د هېواد په نورو ژبوکې هم همد ا سې اوسي پرځاى کوي. (د شا رل کيفر له يادښتونوڅخه).

## ۷-۲-۶: د ځاينومبېلنګونو ليکلړونه

### ۷-۶-۱: نوم + ځ= ځاينوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اخځ | مأخذ (نو) |
| پخلنځ | آشپزخانه، مطبخ |
| پلويځ | همسايه، همجوار |
| پيليځ | مبدأ (نو) |
| ترخځ | تريز پيراهن |
| تښځ | تيشه |

| | |
|---|---|
| تلنځ | مذهب (پق) |
| چورلیځ | محور، مدار (پق) |
| ختیځ | مشرق، خاور |
| دریځ | منبر؛ موقف؛ موضع؛ موقعیت |
| لوبیځ | جای نمایش، ستیج (نو) |
| لویدیځ | مغرب |
| مینځ | میان، مابین، مرکز (منځ) |
| وریځ | ابر |
| ولنځ | دکان یا دستگاه کالاشویی (نو) |

۷-۶-۲: نوم + تون = ځاینوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اتلتون | یکی از اصطلاحات سابق اداری اردو |
| اړتون | محبس، توقیف خانه |
| بودتون | بتخانه |
| بولنتون | قشله، گارنیزون، قومندان |
| پوهنتون | دانشگاه |
| پنډتون | فراهمگاه، گوسفندان |
| پیژنتون | ریاست ثبت اسناد نظامیان |
| چړتون | غلاف شمشیر |

| ويي پوهنه | لوښنومېلنګونه |
|---|---|
| چښتون | همان |
| څارنتون | بیطارخانه |
| څارتون | نظارت خانه، توقیف |
| درملتون | دواخانه، دوافروشی |
| روزنتون | پرورشګاه |
| روغتون | شفاخانه ، بیمارستان |
| زېرمتون | تحویلخانه، ګدام خانه |
| زېږنتون | زایشګاه |
| کتابتون | کتابخانه |
| لېونتون | دارالمجانین |
| مرستون | دارالمساکین |
| مېږتون | لانه مورچه |
| نندارتون | نمایشګاه |
| نیاوتون | دادګاه، دادګستری، محکمه |
| وسلتون | میګزین ، مخزین، دیپوی اسلحه |
| هنرتون | هنرستان (ص.پسرلی) |

۷-۶-۳: نوم + غالی= ځاینوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|

| ويي پوهنه | لوښنومبېلنګونه |
|---|---|
| اورغالی | آتشدان؛ آتشگاه |
| پنډغالی | فراهمگاه حیوانات؛ کمپ، اردوگاه |
| تبرغالی | جیب بغلی زنانه |
| چرغالی (چرخالی) | مرغانچه |
| چوغالی | طویلهٔ شتر |
| ژارغالی | گودال مسکونی مالدارها و کوچیها |
| ژورغالی | چقوری بین کچری قروت و هممانند |
| سوغالی | غار خرگوش |
| شپولغالی | جای آرام گوسفندان |
| شپون غالی | محل بود و باش چوپان |
| شپېغالی | خوابگاه، لیلیه، باشگاه (نایټ کلپ) |
| کارغالی | کارگاه، ورکشاپ |
| کوتغالی | جای کوچک آفتاب رخ و بغل کوه یا تپه) |
| کوډ غالی | خانهٔ محقر |
| کورغالی (کوراړی) | کُرد خورد زمین |
| کوزغالی | ظرف شکسته ویژهٔ آب و نان سگ و مرغ |
| کوږ غالی | غار کفتار |
| کوغالی | چقوری، گودال؛ خانهٔ محقر |

| لوښنومبیلنګونه | ويي پوهنه |
|---|---|
| همان | کونډغالی |
| ستدیوم ورزشی | لوبغالی |
| جایی هموار درکوه وکمر | هوارغالی |

یادښت:

لکه چې له مخه وویل شول، ښکارغلی ( شکارګاه )، کرغلی یا ښرغلی د میرېو او داسې نورو ځالو په مانا ، سترغلی، پوندغلی (پسکی چپلی، جای پاشنه درپیزار، بوت و دیکر

## ۷=۷: کوشینومبېلنګونه

### (مشتقات اسمای مصغر)

### Demonotive derivations

زويک، څاڅکی، څڅواکی، څڅوېکی، بچکک،
نروکی، ښایستوکی، هډوکی، ښځکه، زړوکی، زړګی،
زړګوټی، پېغلوټې، ګډوری، خسټی، پیڅاڼی ...

په دې ډله کې بېلابېل نوم ډولونه، لکه: څیزنومونه، ستا ينومونه، لوښنومونه، چارنومونه او داسې نور راځي. دا ټول په يو ډول روستاړو جوړېږي، په بله وینا، په ښتو کې کو شینروستاړي ټول نومډولونه راکوشني کوي، .دا اړینه نه ده چې ښووییز چار يې پر خپل اکر پاتې شي، خو زیاتره د څیز نوم دریځ راخپلوي، د بېلګې په توګه، (ښایستوکی) څوک يو

ازې د ستاينوم په توگه دومره نه کاروي چې ووايي، يو (ښايستوکی نارينه) مې وليد، بلکې لنډ پرلنډه وايي:: يو (ښايستوکی) مې وليد.

د نورو بېلنگونو په څېر دا ډله هم د بېلا بېلو روستاړو له مخې پر بېلا بېلو ډلو ټپلو وېشنه مومي او هماغه ډېرى ډولونه يې په ليکلړونو کې هم وړاندې کوو.

١ = په -ک، چې له نورو خپلوانو ژبو سره گډ دی، لکه: چرخولک، موږک يا مږک، سترگک، سابونک، زمرک، ببرک، خوازک، گوټک (چرخ جرثقيل و امثال آن)، گرانک، شونډک، مرغک، مرچک (مرچ)، بونک، زويک، لالک، جگدلک محلی مرز تاريخی بين اقوام درانی و غلجايی)، تورک، موټک (له موټي څخه)، شپېلک، خپک، چنغړک (قانقورتک)....

دغه راز اټکلي بېلگې، لکه: ککرک، توندک (عصبانی)، تندرکی (شقيقه)، ککړک (د سره رود يوه سيمه)، سنک يا ښنک (ښانک)، هلک، ختک، بارک، سپک، ورک، چابک، ځيرک ( زيرک، چټک، پټک (کاسهٔ غولک)، (په غبرگو زورکيو) پټک (يکی از حبوبات خوردنی)، چورلک يا تيندک (بدری، سکندری)، تيند لک (بدری خور)، تلک، پتک، تمبوزک، تېمبوزک، تېنبوزک ...(پوزبند، روی پيچ؛

افسار)، ناوک، ناوس يا ودگرى(شاه درارتباط* عروس)، سوکړک يا سوړ سک، بچکک (د تمکو له ستې راټوکېدلې بېګټې ريښکۍ) بيا دوه غبرگ روستاړي راخپل کړي دي؛ ککی (ريزه گک؛ نينيگک، طفلک) ښايي د کک(ذره) کوشيننوم په توګه يو (-ک-) غورځولی وي.

0 په -که چې د -ک ښځينه پښوييز انډول دی او د نرينه (-ک) پر وړاندې، داسې ښځينه نومونه جوړوي چې زياتره يې نرينه انډول نه لري، لکه: خورکه (کنډول)، څڼکه، بڼکه، غړکه، رنځکه (شنگلهٔ انگور)، تيندکه (فواره)، توکه (غوزهٔ جواری پاک شده از دانه)، چوغکه، (ټيو) ټيوکه، گوړکه يا گوټکه (کلولهٔ تار)، څرخکه، خزدکه (حشره)، ټيغکه (پرندهٔ کله خورک)، بڼکه، نيمکه (نيمه افغانۍ)، تورکه، پټکه (پنيرخام)، نيوکه (اعتراض، انتقاد)، پټکه (ماکيانی نو برتخم آمده)، کونجکه (خرمهره)؛ چوغکه، چورلکه (چرخک چوبی؛ بينی پيزار، پنجه و پسکی پيزار) چې سېمانتېزم يې (هيلکوپتر) راخي او الوتکه يې بيا د دې لړۍ پرتلويزی (قياسي رغېدلی ويی) دی، اوښکه، څريکه، څړيکه، څوښکه يا مښوکه (نولهٔ چاينک، آفتابه...)، چرگک (ملا گک)، شونډک (خرطوم، ښځنوک، ښځونک، يا ښځوکی

(زنچه)، چاودینک نېغلکه ، یا نېغله (نیغله، دختر نیم با لغ)، سبونکه (برنج با شفتل خشک پخته شده)، جوارینکه، غلمینکه (نوعی شیرینی ازبیخ لخ، یا به اصطلاح خوشگنبد جلال آباد: الیتار)، سبونکه (غذایی مخلوط ازبرنج وشفتل خشک)، بولانکه ( بولانی)-دواړې بېلګې:: خیرآباد- لغمان)، ټوپکه (نام محلی در چرخ لوگر) او داسې نور هم له آره لرغوني کوشینیو مونه بربښي.

همداسې له لړ تو پېیر سره، باجونکه (بلبله)، تناکه، تپیاکه، ثپیاکه، ښخیاکه (غچی)، ټیټاکه (درختی کوهی، هممانند درخت خنجک)... یا پنډوسکه، غونډسکه ...؛

په دې لړکې مښوکه (منقار، نوله) ښایي له کرسټې (مښ-) څخه د ترخپلواک (لنډ- و) له ډېرن سره رغښدلې اوسي.

0 په-کی-کی، چی د-ک او-که بلګړ (مترادف) دی ، بېلګې يې، لکه: خوارکی، وړکی، ډګرکی، ډولکی، ټوپکی، بنډ کی (چارتراش)، پنډکی، کوټکی ( دکو ټګی همانیز )، غونډ کی، ګرد کی، خنډ کی، لنډ کی، نره کی، ښویکی، شینکی (سبزه)، غوړکی (نام علفی)، ټیټکی، تورکی، سورکی (د شفق په مانا هم دود لري)، مرچکی د پېښور خوا ته هم پرخیز نوم اوښتی دی.

همداسې تريوه کی، برگکی، زېړکی، خخوڅکی، خپرکی، اغزکی، ختکی، ټوپکی، سخوندرکی، خوسکی، وره کی، اورکی، سپينکی (ساسج ؛ په لنډه-ي د وازدې ميده گې)، پياز کی سيخکی (سيخک مو)، ...(ربنتين ۲۳)؛ وړکی، گرد کی، غونډ کی، يومکی (بېلک شانه)، سپېرکی (بوته يی سپيد دشتی و کوهی برای سوخت ودرگيران)، مخوڅکی (بو ته يی طبی خود رو)، کولکی يا کولک (خاسۀ چشم)، وتکی (نوجو ان که مؤنث آن بوتکۍ است)، تنکی، کمکی، ويتکی (شو خک) او داسې نور چې ستا ينومو نه پکې زيا ته ونډه لري.

O په کۍ، پردې سربېره چې د نرينه ((-کی) ښځينه انډول دی، يو نوربيز (يوجنسه) نومونه هم جوړوي،لکه: لکۍ، سپېرکۍ، لپکۍ، نيمکۍ، غاړکۍ (گردنبند)، نغاړکۍ (توشکی از لته های کهنه)، ټوپکۍ (حصۀ پوشيدۀ کاريز)...؛ هسې خو، لکه چې يادو نه وشوه، په پښتوکې د نرينه انډول بشپړ ډېرې ښځينه ستا ينومونه پر خيزنومونو اوړي چې هر گوره، دا يو کلتو ري-ټولنيز توسن (سبب) ولري چې ولې کو شيننومونه او ښځينه نومونه سره گډوالی لري.

همداسې اغزکی، تریوه کی، او ښکۍ اوښۍ یا اوښاره (گهو اره جنبان)، ناوکۍ (عروسک؛) ، غاړه کۍ، لولکۍ (پروانهٔ گل؛ نوعی فرنی کودکان)، توتکۍ ، لپکۍ، غوړکۍ، پوڅکۍ (له پوخ او یا پوست ځخه)، پوستکی (جلد)، پوټکی (پوست نبا ت)، خټکی یا بېخټکی xaṭə́kay- (بیخ ساقهٔ جواری بعد از درو) په مانا ، خټکۍ xaṭkə́y د پاورکی او سپلمۍ هما نیز ( شیرآهک) او خټکی xəṭkáy (تودهٔ خاکی خورد؛ کالبد انسان؛ غوزهٔ شیرآهک)، نیغکی (برگک فرج)، منځغکي (با صیغهٔ جمع: مغزیانه، مغز یات بادام، پسته، چارمغز...).

0 په ککی، چې تر پورتنیو روستاړو یو څه زیات ټینگار او سختوالی لري، لکه : سپینککی، ټوپککی، شینککی ... کېدای شي دغه جوړښتونه تیار په گړدودو کی شته وي او یا پرتلیز (قیاسي) جوړشي؛ د مزینې خواته ککی (طفلک ،ریزه گک، اُشتُک، نینیگک ) ښایي، له کک ( ذره ) نه رارغېدلی او دهلکی (هلککی) او نورو غوندې پکې یو(-ک-) مدغم شوی اوسي!

0 په-کو، لکه الکو، لالکو ، کاکو، ککو، ادکو، بیبي کو، شا کوکو....

0 په -وکی چې د ککی غوندې له نورو انډلونو سره یو څه توپیر لري، لکه : پنډوکی، کندوکی، ډنډوکی،

ځلندوکی، خنډوکی، منډوکی، پړسندوکی، سروکی، زړوکی، زیړوکی(زردگون)، زیړوک (یکي از ولسوالی های هم سرحدوزیر ستان شمالی)، هډوکی، کرپندونکی، پړوکی، وړوکی، لړوکی، کوندروکی، بچوکی (د مچنوغزې د مزیو سر)، منډوکی، مښوکی، ښځوکی، ښځنوکی یا ښځنوک، (زن صفت)، خسوکی، خځوزکی، پړسندوکی، نروڅکی یا نروچکی (باریکک)، دژوکی (د لاچي ختک یې له سرېبوا کغونډ سره د ((واړه د ژ)) په جاج کاروي)، وچوکی، ډارندوکی، ویرندوکی،...؛ پر نومو اوښتې ښځینه بڼې یې، لکه: دړوکۍ، چړوکۍ یا چوړکۍ، بوړبوکۍ، بوړبوړکۍ، بړبښکۍ یا بړبوکۍ (گردباد)....

0 په- وښکی، لکه: څڅوښکی (قطره گک)، ډډوښکی یا ډډ ښکی (خالیگاه شقیقه)، کڅوښکی یا کڅوک (سر خکانچه).

0 په- گ، چې یو لرغونی کوشین روستاړی برېښي، لکه: تخرگ (له ترخ، تخر څخه)، خښتگ چې پارسي انډول یې خشتک دی، ستگ (سنجاق، پق) په سترگه کې که ښځینه پایله (خاتمه) په پام کې ونه نیول شي، هم یو لرغونی کوشینی یا تصغیری (گ) دی، ځکه د سترگې

بنسټ له (ستو ري سره همآری دی؛ مورگه ، درگه، گرگه، غوړگه، نړگه، مړزگه. هم په دې لړکې ځای نیسي. هرگوره، په ( چرگ، چرگه) کې /گ/ د نوم توکی دی، لکه د دربېمې پېړۍ شاعر رودکي یې پارسي انډول (چرغ) کارولی او په اردو کې یې هم څرک لگي. په پښتو کې نور ورته نومونه هم لږ و ډېر سهي کولای شو

0 -گی، هم د نورو ډېرى کوشینروستاړو په څېر دوه رازه رغاونې رانغاړي:

0 لرغونې یا ارکاییکې هغه چې پر عادي څیز نومونو او ښتي او نه جلا کېدونکي رغنده توکي یې بلل کېږي، لکه لرگی، لوگی، جارگی، کتگی، زیږگی، جولاگی(جو لا گک)، پېرگی (تخم بلوط)، غرگی (ډ بره)، تنگی (د تنگگي لنډه بڼه!)... ؛ ښځینه انډولونه یې، لکه: هگۍ، لېوه گۍ (د لېوه ښځینه-مزینه)، غرگۍ (نیزوړی-کامه)، پیشوگۍ ( چه چۀ پروا نه که برگهای درخت خورده تابه مثابۀ پروان ای زیبا رشد یابد )...؛ (غواگۍ) هم د کونړ خواته د (غوا) ځایناستې شوې ده؛ په (هزاره گۍ (ښځینه هزاره) کې هم (-گۍ) وییرغاونیز روستاړی نه، بلکې پښنوییز روستاړی دی.

0 هغه رغاونې چې راروسته رازبږېدلې او کوشینروستاړي يې په ډاګه نومبرل کېږي، په نورو ټکو، د رغاونو نه جلا کېدو نکي توکي نه ګڼل کېږي، لکه:

ځايګی، زړګی، برګی(پيس، مبروص)، کدوګی، چنارګی، توتګی، غزګی، (او نورې ونې)، پېرګی يا پرګی (ميوهٔ بلوط)،کورګی، کتابګی، جوماتګی، ملاګی، طالبګی، ببړاګی،درمندګی، خرګی ، کوټګی، انګړګی، خوړګی، بالښتګی، خوړګی، جامګی،جارګی، دالانګی...؛ منګی، لرګی، لوګی... يې زړې رغاونې دي.

همدارنګه يې ښځينه انډولونه: کوټه ګۍ، دېره ګۍ، جارو ګۍ، دنياګۍ... يا شمله ګۍ، لکه:

په شمله ګۍ دې شوم غلته
چې کور ته راغلم مور دې لنګ وهلی وونه

0 په زورکيواله ( - ۍ ) جوړ شوی ښځينه کوشينومونه چې زياتره ښځينه خيز نومونه هم ګرځيدلي دي،که ، لنډۍ (يو ډول شعر او يو ډول مار)، کېږدۍ، سترګۍ، سپوږمۍ، پنډۍ، کېږدۍ، غوړۍ، غاښۍ، پښۍ (رواش) بټۍ، ژبۍ، کوټۍ، جنګۍ، څمڅۍ، ګنډۍ (کرتۍ)، ټالۍ، اوړۍ ، لړۍ، غونډۍ، کونډۍ، کوکۍ، کوپړۍ، ککرۍ، مامۍ (مانۍ، مو انۍ)، کاندۍ (قاشق)

کټوی، کنې، کجې (د کجي) تر څنګ د يېوی يوه برخه، مرغۍ، مچۍ، متۍ، مخۍ (په اندړو او ور دګو کې د بدلګرۍ ښځې او په کونړکې د معما او چيستان په مانا، چې په ستاينوميزه مانا د ((مقابل)) په مانا هم کارول کېږي)، مړۍ د (مروړه) تر څنګ (لته کش تفنګ) سپږۍ (شبشک) منځۍ (مرکز) ونډۍ، مونډۍ، ډبلۍ، سرۍ، هو سۍ، کبلۍ، ښجلۍ، ډېرۍ، مکۍ، ملۍ، لولۍ، بلۍ، اوو رۍ، ډوډۍ، شړۍ، وړۍ، کوډۍ، ګوډۍ، اډۍ ... هم ښايي له آره زاړه کوچني نومونه وي.

0 په زورواله (-ی) جوړيدونکي نرينه کوشيننومونه ګر ځي، لکه: غوږی (کُردک؛ انبانچه؛ د کوشني پټي او ګوډي په مانا) په ګنډی (خت)، ښانکی، پرتوګی، ګردی، غونډی، ګونډی، مرګی، ملخی، چتی، وندی، ګونګی، ګرِدی، لنډی...

څنګه چې داراز روستاړی د زياترو يوستوو زړو څېزنومونو پايله هم جوړوي، يا په بله وينا، د ستاينوم او څېزنوم ترمنځ ګډ دی، نو کېداې شي سړی، منګی، ګړی، جونګی، ځلمی، وری، خوسی، مړی، دوبی، ژمی، منی يا خړمنی، پسرلی، موږی يا مږوی، ... هم له آره کوشيننومونه وي!

O په اوږده ( - و ) لکه : مرگو، پاسلو(کمينه، خاکسار)، پېږغو(اجورهٔ چوپان)، گلو، جمالو، صابرو، ليلو، شهو، درخو، سدو، خيرو، خړو، ميرو، او داسې نورځانگړي نومونه. ښايي پيشو، بيزو، شادو... هم له آره همداسې کوشينومونه اوسي، بچو بيا په لنډ- و راځي.

O په- گوټی، لکه زړگوټی، وزگوټی، کورگوټی، ميدان گوټی، باغ گوټی، منگوټی، ځايگوټی، چېلم گوټی، دالان گوټی، خرگوټی، کټ گوټی، ښځينه بڼې يې، لکه: بياتي گوټې، تخته گوټې، مورگوټې، لږگوټې (يا لکوټې)، حسابگوټی، کتابگوټی، کمگوټې؛...

O په- وټی چې له- گوټی سره يې گډون هم راتلای شي، لکه: منگوټی، زړگوټی، زړوکی، څپوټی يا څپټی(چادر و دستمال سر)، ټوټی (سينهٔ اشتر، کاسهٔ چوبی)، چرگوټی (چرگگوټی !)، ورکوټې، وړوکی، کمکوټی، هلکوټی يا (هلکگوټی)، کوشنوټی، مرگوټی، خروټی(خرک!)، خروټی (xəroṭay پيمانهٔ غله)، کوټی (کُرهٔ خر)، کمکوټی، فرهنگوټی او زياروټی (رشاد)، لنگوټی، مشروټی، کشروټی، څپوټی(چادر سر)، زېړوټی (زردرنگ، زرد نما)، سړوټی(مرده که)، زېړوټی؛ نمسوټی ( نمسوټې)، کټوټی يا کټوټکی(په کېږدۍ کې

دننه د ماشوم ټالوزمه خو بځای)؛ نجلو ټې، پېغلوټې د همدې لړۍ ښځينه انډولونه دي.

0 په- ټه ، لکه : خوټۀ (له خايه، هايه ، هويه ...څخه)، سکر وټه؛ لوټه، سوټه، تروټه، ټوټه ... هم لرغوني کوشيننومونه انګېرل کېدای شي..

0 په-ګوړی، لکه : وزګوړی، منځګوړی ( منځکوره، منځوی، منځنی) ، انارګوړی يا ننګوړی چې د (اننګی) کو شنيوالي هم ښيي، چرګوړی (چرګګوړی ) جا مګوړی، شاګو ړی ( پارچه بيکه طرف پشت پيرهن ميدوز ند)، لمګو ړی، لمکټی، لمکنډی يا لمګډی (د مغوزک؛ دُمګک)....

0 په-ګړی، -ګنی لکه : جارګړی،جارګنی،( جارګی، جار غلی: آتشدان بيرون خانه يا درهوای آزاد)، نيمګړی، ځا يګړی (زرمله)، شی ګړی يا شی ګنی؛ دغه روستاړی چارنوميز هم دی لکه : ضامنګړی، ژرنده ګړی، دربمګړی، منځګړی، واوره ګنې، شی ګنی(چيزک)، اورګنی(آتشدان) او داسې نور چې همماله په لوښنومونو او ځاينومونوکې هم راځي..

0 په- نګړی، لکه : پيشونګړی، خوارنګړی، تورنګړی، پچونګړی، شا نګوړی، بلونګړی ( له بلو څخه چې په

اوردو کې پیشو ته وایي) او بلونگړی نولی ته (ربنتین ۳۳)

O په وړی په لنډ (و) لکه : خسوړی، برخوړي، (زیاتره د بر گړی)، کبوړی، بچوړی، تندوړی (شقیقه)، سنګوړی (نوعی بوتهٔ کوهی ودشتی)، کد وړی، دیګوړی، کودوړی یا کرد وړی، سنګوړی (چوچهٔ چاغک و مقبولک حیوان و انسان)، خروړی (خیرونکی یا داړونکی سپی) ؛ سګروړی اوسی، چې په ورتیره لړۍ کې یې راتلل هم کیدون لري.

O په- ړی، - (ا) نی، لکه : د(کودی ترخنګ) کودړی (کود نی)، توتنی (توتړی)، خسنی، کندوړی، ونجړی (میزخورد)، خیګړی (مشک خورد شناو ری)، اومړی، نو مړی، اوږدړی، نغړی، ښځینه بڼې یې، لکه: مرنۍ(قبا ؛خرقه)، کړۍ (حلقه)، مشوا نۍ ،کوزه ړۍ، تمبه ړۍ ( ربنتین(۵۰).

۲۲) په – ړ/-ڼ ، لکه : بندړ (د پسته دود شول په وړاندې یې شینواري دغرنیو میوو شکولو قدغن ته وایي)؛ نور ساري يې لکه :خسړ د خسوړي ترخنګه، سندړ (شترکلان)، ایسړ، نومړ (نامزد ؛ نامبرده)، لَوړ(کوتک)، لغړ، ربغړ، رنګړی (رنګی)، شینګړ (طلاقی)، کومبړ یا کومړ(سوراخ البسه و

زخم و پرهر)، سندړ(اشتر کلان)، سنگېړ (سنگزار)، اخېړ، لوکړ (گاو زنبيل)، لومبړ (روباه)، خپړ، ثپړ، بوسړ (خريج آتش)، شخړ (سيل پرنده گان)، شيشړ (پرنده يی سياه کم خوردتراز مينا)، گودړ له لنډ-و سره(پارچۀ پاره وکهنه)، گودړ(حيوان پير ولاغر)، گودړه(پيرزال لاغر)، شينگړ(هغه چې ښځه ځنې پټې پالا وتښتي او شينگړه هغه پېغله ده چې په خپلخوښي يا کوژده مېړه پسې د پلار له کوره وتښتي)؛ ککړ، چکړ يا ترنگړ د ترنگې، انگړ د انگڼ او کنځړ د کنځڼ (زړه بړستن) ترخنگه. ښايي د همدې لړۍ بېلنگونه (مشتقات) وي؛ تېر نومونه، لکه اندړ، مندړ، دوړ... هم همداسې درواخله.

0 په-ورى، لکه: گډورى، مړکورى، تمبکورى، مټکورى (مټکور)، چاټورى، سټکورى(چکيده گى نان درتنور)، ثو خکورى ياڅوښکه، چوښکه، څوښۍ (نوله نولۀ چاينک، آفتابه...)، خمزوړى، خيټورى، ډنډورى، ډانگورى، کنډوري (اسم جمع: گُند، صمغ)، کنډورى (فاصلۀ بين انگشت سبابه و ابهامه)، غومبورى، غونډورى... (همدا راز: رښتين ٢٢-٣٣)؛ کجوره او ججوره هم آريوهيز سپيناوى غواړي.

0 په ري- رۍ، لکه: سرۍ، ګنيرۍ يا ګنډيرۍ)، کچرۍ، سترۍ، ډينګرۍ، مونګرۍ(شګوفه)، څنګرۍ يا ښنګړۍ (اند ازۀ يک بغل از علف، کاه وغيره)، کوترۍ او کونګرۍ بيانر ينه نوږۍ هم لري (رښتين ۲۲ همدارنګه انډيرۍ، دانډي) کوشنيوالي ښيي(!)

0 په -ړه، -ړ، لکه: څوکړه (قله)، چپړه (زړه پنه) چيړړه، جړه يا جرړه، پېړ يا پرېړ، توکړه، موړه، سنګړه، لکړه، جونګړه، څپړه يا څپېړه، خپړه يا خپېړه. دغه روستاړي تر ډېره څيز نومونه رغوي؛ په مروړه، مشوړه، کڅوړه يا سوړه کې هم ښايي همداسې يو روستاړی بربښي!.

0 په -ړی، -ګړی، -ګېړی، لکه خربړی، مرغېړی، مرخېړی، کرړی، خيګړی (له خيک څخه)، ګينګړی، نيمګړی، اومړی يا د (سرلوخ مرادزی)اومګړی، تينګړی(قاب؛ امپلق) او بنګړی هم ښايي همداسې کوشيننومونه اوسي، ښځينه انډولونه يې، لکه: کوزه ړۍ، او بړۍ، ډينګړۍ يا ډينګرۍ (سمارق؛ پاروی جاله و کشتي)، کوپړۍ(جمجمه) له هندي آرې سره)، شړۍ، وړۍ، پګړۍ، مړۍ، کړۍ او داسې نورې بېلګې هم اتکلېدای شي.

0 په (-ړ) لکه: وندړ، کنډر، ډنډر، ډنګر، کانکر (کانکړ)
کچر، کنډر، سنګر، بکر...... کې؛
ډېر کېدونلري چې (-ړ) او (-ر) سره بلګړونه اوسي او ړ/ ڼ
سره پرخپل وار هم همداسې (→۲۲).

0 په -چه، لکه: باغچه، سراچه، کلاچه، ریچه، زلوچه،
الوچه، غالیچه، توشکچه، کړمیچه، کچه یا خچه
(انګشت حنصره)، مورچه (سنګر)، منګاچه (د پیشواو
داسې نورو ژو یو پنجه، چنګال)، ... همداسې جوړونه
برېښي، په نیمچه کې ښا يي ستاینومیز روستاړي
اوسي چې له مخې یې لیکچه (کتا بچه) رغول شوې ده..

0 په څه- چې د چه انډول دی، لکه: یایخه، کوڅه، دریڅه
(دریمڅه)، مرغومڅه، کلواڅه (جنسي خونه بها)، کیڅه،
ښوڅه (سوراخ؛ تنګنا)، (په اوږد-و) ښوڅه (دانۀ جلد).

0 په- چی او -چي، لکه: دیګچی، مرغچی (ګلوبند
مروارید)، چېلمچي.

0 په- څی، لکه: نیمڅی، غریڅی (کوهی)، لوبڅی (بازیچه)
هم ښايي په دویم چار سره لوښنوم ګرځېدلی وي.

0 په- چک، لکه: غلچک، ببخچک، ارامچک، سپین
چک، تورچک، پولچک، په ورڅک یا اڅک کې ښایي
د چک بلګړ اوسي.

0 په -چکي، لکه: غلچکي، ارامچکي، سپین چکي، تورچکي، پیچکي، چې (-څکي) یې بلګړ بریښي، لکه: نروڅکي، مچوڅکي؛ په دې لړ کې (نروچکي) کېداى شي، د (نرى+وچ) کوشینتړنګ اوسي.

0 په- وسکي، لکه: کنډوسکي (ربنتین ۲۳) چې ښا یي، ← خځوځکي (میده گی نان و هر چیز همانند) هم له آره ورته رغاونه وي.

0 په- نک، لکه: (ولیشتینک یا لویشتینک)، چاودینک، سابونک (بوتهٔ دشتی که ازآن کار صابون میگیرند)....

0 په-ل،- له چې لرغونی دی او له نورو خپلوانو ژبو، لکه: پارسي (سنگچل) جرمنی شاختل (قطی)، انګلیسي سپارکل (سپرغۍ پړک)، فرانسی مارتل (ماتوړ) او داسې نورو سره ګډه آري برېښي، لکه نجل، مورچل، ګوګل، څنګل، منګول (!)، غونډل (غونډۍ: غنه)، غاټول (غټوی: ووړ غاټول)، وربل (و: بوی: حیطهٔ خانه)، بورجل، بوځل، کچل، کوډل، کوډله، شاخل، ګردله یا ګرګله، پخله، شاخله، ټیکله، غورله، جاله، څیرله...؛ په پایله (نتیجه، عاقبت)، غونډله، اوډله، ګډله، ربړډله، ورله او ټوخله، پخوله، بخوله کې (له) یوځیز نومیز روستاړی

بر ښني، نورې ببلګې يې: اوبله، بېخله، زورله، ژاوله ...؛ په پشېرله، دوشېرله او سپرلي کې (-له، -لی) ښايي، د (پسرلی) رغنده توک اوسي (←آرپوهيز سيند ګی ۲۲۷، ۲۳۵).

0 په - بخن يا - بخون ځينې رنګ ستايونومونه کوشنی کېږي، لکه: سوربخن، سپين بخن، توربخن، شين بخن، ژير بخن، خړبخن (رښتين ۵۳)؛ سوېل لويديز (-بخون) ځېل مو دېته رابولي چې له پارسي (خون) سره يې تړاو ورکړو!

0 په- وشمه د رنګونو کوشين ستاينومونه جوړېږي، لکه: سور وشمه، سپين وشمه، شين وشمه ... (رښتين ۵۳).

0 په- وبره، لکه: سوروبره، سپين وبره، شين وبره، ژيړوبره ... کله کله له سپېره او خړ سره هم راځي.

0 - وزمه چې پر رنګونو سربېره له خوندونو سره هم راځي، لکه: خوږ وزمه، تريخ وزمه، تريو وزمه، تاپو وزمه (جزيره نما)... له روستې ببلګې راڅرګندېږي، چې له ځينو کوشينو وستاړو سره سرچپه مانا رامنځته کېږي، نورې ببلګې، لکه: مورچه- مورچل، غونډ- غونډل، وربوی- وربل، ځنګل (جنګل) د هندآري په توګه ورته رغاونه بربښي، ځکه تر څنګ يې جنګی (د ګڼو ونو بڼ) هم شته او کېدای شي، جنګ (حرب) هم د توركي جونګ (مجموعه) سره هم څه اړاو تړاو ولري!

0 په -لوړی، لکه : خوږ لوړی چې ښځينه يې خوږه لوړې را ځي، دا چې د لته بنسټ (خوږ) صرفي لوښه (نوږی) له لاسه نه دی ورکړی، نو ښايي (لوړی) له آره يو خپلواک ويی اوسي، خو په تريو لوړی او تريخلوړي کې يو رښتيني روستاړی دی.

0 په – چن، لکه سپيره چن (رښتين ۵۲) همدغه روستاړی په سپين چن او سرېچن کې هم راښوولی دی.

0 په غيچن او غيجن لکه : مرغيچن مرغيجن ...

0 په بوجن، لکه خړ بوجن، غاړبوجن (قارچی، فنگس) ....

0 په - مېچن او - مېچن، لکه : غوړ مېچن، غوړمېڅن.

0 په- مېږن ، لکه : وچ مېږن ، نيم خشک)، کړمېزن له کړوېزن (انسان يا حيوانی که از دهن و بينی آن آب جاری باشد) ځېل سره هم وزنه کوشين ستاينوم برېښي.

0 په- بگی، لکه : وړه بگی،- بگی ښايي له بگ (لوی ښځه اخېست شوی او دلته يې مانا سرچپه شوې وي!

0 په- غونی، - غونې چې د غوندې يوه ناخپلواکه شوې بڼه برېښي، يا په بله وينا، په رښتينه يې د يوه روستاړي بڼه غوره کړې، که څه هم له تاريخي پلوه خبره سرچپه ده، لکه : مړه غونی (ځنظل، ژړغونی، تېره غونې، رنغونې، ربغونی، لرغونی، ترغونی، ترلغونی، لېغونی (نوعی

بوتۀ کوهی)، او داسې نور ورتني وييکي د پر ستاينومونه کوشني کوي.

0 په- همدا راز (شانې يا شانته او شانتې، لکه، ووړ شانې -شانته- شانتې، غټ شانې- شانته- شانتې، نری شانې- شانته- شانتې، سپين- شانې- شانته- شانتې....

0 په- نجی، -غنجی او -غونجی، لکه: خوارنجی، زېړ غنجی(زردالو) ، مړغونجی يا مړغونجا(سست و تنبل).

0 په-ين، -ينګ، چې يود بل بلګړ بريښي،لکه: نرينګ ، دړينګ، غزين چې د ده سبز او نور پښتانه يې د خورا زيات خوار او د نګر د ستاينوم په توګه کاروي، د ننګرهار خواته يې غزی بولي او بل مانيز يې هم (مزی).

0 په -غلن او = غبړن، لکه: اومغلن، ژيړغلن ، کرغبړن ، اندغړن (نيم خصی) ، مرغبړن....

0 په آنی، - نی پيخانی او غوچانی؛.. ؛ په ← اړيکنومو نو او بيا ټبر نومونو کې، لکه:کرلانی، ګګيانی، مشوانی، جمريانی يا ګمريانی... کې ورته روستا ړی لرو. زېړانی ښايي د ورمکې (-ړ-) له لاملـه پخوانی (-ن-) غبرګژبيز کړی نه وي!

0 په -لی، لکه: کمکلی ، شمکلی يا چمکلی، ټيکلی، نيمکلی.

0 په (-گرکی) هم يونيم ښيز پر کوشيننوم اوړي، لکه ږله گرکی، يا د لغمان د عمرزيو په يوه متل کې: ((غوندی نه ژاړي، غوند (ه) گرکی ژاړي)).

0 په-کتی، لکه په لمکتی، لمکنډی لمگډی يالمگوړی (دُم غوزک)، زومکتی

۵۶)-ټه او-وټه، لکه په: خوټه، سکروټه ياهم کوټه، تروټه، لوټه، ټوټه... کې هم کوشينروستاړي انگېرل کېدای شي،

۱_نوم+ک=کوشينښيزنوم

| | |
|---|---|
| ويي | پارسي مانا |
| ارغجنک | الوچه |
| اړخک | صيد رابسوی دام هر طرف راندان |
| اوربلک | بوته ی آتشک |
| بالښتک | بالش خورد |
| بتخک | شيخ دو، پرندهٔ معروف است |
| بشپړک | پسر بی پروا، پسريکه سخنهای، پخته و سنجيده در محضر کلان ها گويد |
| بمبوټک | نباتيست کوهی |
| بمبيرک (خمځلکی) | بمبيرک (= اوښی، اوښياره |
| بنټک | انبلق |

| | |
|---|---|
| بنچک | بیخ و بنیاد چیزی |
| بندک | بند بینی؛ نوعی بجبازی |
| بنگک | گیاهی خار دار بادانه های سرخ |
| بوجک | نوعی از خربوزه است |
| بیلک | هدیه تحفه یک داماد به خانه عروس میفرستد |
| پنډيرک | نام گیاه هیست زهر دار |
| پنېرک | نوعی سبزی خودرو |
| پوچک | بی مغز ، کارتوس خالی |
| تخنک | رغبت و خواهش زیاد |
| تلتک | لحاف (ترکی) |
| تمبوزک | تفنگ سرپوش (=سرپوښ) |
| تندک | عصبانی |
| توپرک | پوستین |
| تېمبو زک | پوز، بیني؛ افسار .پوزبند |
| تیندک | بدری (خوردن) |
| ټوپک | تفنگ، (توپک ، نیز گویند) |
| جیجرک | نانی که به فردای عروسی از خانهٔ پدر به عروس آورده میشود |
| چجک | پاشنهٔ تفنگ |

| ويي پوهنه | کوشيننومبلنگونه |
|---|---|
| چرگک | هد هد |
| چنغړک | حصهٔ بیرون حلقوم زیر زنخ |
| چورلک | بدری، سکندری |
| چوړک | قفل، تنبه ، پله ، دروازه |
| ځیرک | زیرک ، تیزبین ، دقیق |
| ځپک | به اندازهٔ چار انگشت پنجه،چانبه |
| خمنډک | فربه و کلوله گک |
| خوازک | نام شخص |
| خیدک | پنیر پخته |
| دادک | لقب پدر |
| داړک | شخص دراز دندان |
| رنجک | باروت میده ، جلغوزه تفنگ |
| زرک | نام شخص؛ نام محلی در وزیرستان شمالی |
| زمرک | شیرک، نام خاص |
| زندرک | استخوان زنخ والا شه |
| زومبک | خوشه جواری، انگور، پوپک |
| زویک | پسرک ، بچه گلک |
| ژړک | زردگون |
| سترگک | چشمک |

| ویې پوهنه | کوشینو مېلنگونه |
| --- | --- |
| ستړک (سوټک) | چکش؛ چکش کلان، پتک |
| څټک | همان |
| څکک | چکک |
| سنډک | تکه ی صاف کردن ماست و غیره |
| سنک | کاسه یی کلان چوبی؛ نام شخص |
| سیندک | ماهر درنشان زنی |
| شپیلک | اشپلاق؛ زمزمه، اله ملی اشپلاق |
| شنگرک | عقاب، شهباز |
| شولک | بشره، پوست بدن |
| شونډک | خرطوم پیل |
| ښانک | طبق کلان چوبی |
| ښومک | مرض خرمرگی |
| کالک | غوزه |
| کڅوک (کڅوړکی) | مرض سرخکانچه (←کڅ) |
| کراړک | شورپنیر |
| کرک | (ابتدأ به ساکن) خط قلبه (=کیل، کیله) |
| کرک | لای خشکیدهٔ سیلاب |
| کنډک | گروه؛ رمهٔ بز؛ کندک (نظ) |
| مچک | چنگک، چوبیکه سرآن طبیعی چنگ باشد |
| مرچک | مرچ سرخ |

| | |
|---|---|
| مرغک | لخک دروازه؛ لخک چرخ آسیا ؛ آهن نوکتیز |
| مږک | موش خانگی خورد |
| موټک | جلق، استمناً بالید |
| مېخک | میخک، میخ خورد ؛ میخک پای |
| هوتک | عشیره یی از غلجایی ها |

0 نوم+کی= کوشیننوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اړکی | اله چوپی جولاها که در وقت بافتن در بین تنسته جارمیگردد |
| اړمکی | ارمگی، چوب چوپان، چوب چهل، مرد آسیاسنگ |
| اړیکی | ارتباط، تعلق، وابسته گی |
| اغزکی | خارک، ، خاربته تلخ |
| انگرکی | آتش اطفال |
| اورکی | همان |
| اوړکی | تندمزاج |
| اوږکی | گندنا |
| بنډکی | کندهٔ کلان و کلوله چوب که قابل لولاند |

| | |
|---|---|
| | باشد |
| بڼکی | طنین مگس، نجوا |
| بېختکی | بیخ یا ستاک جواری، پنبه چوب، نیشکر... پس از درو |
| پاټکی | پلهٔ زینهٔ چوبی؛طبقه |
| پړکی | ساق بوته ودرخت |
| پوستکی | پوست حیوانی، جلد |
| پوټکی | پوست نباتی |
| تنکی | تازه، نازک |
| تورکی | دودهٔ تابه وغیره |
| توره کی | سیاه گک |
| ټوغکی | بیماری مرغ مری |
| ټيټکی | پست قامت، کوتاه قد، کوزپشت |
| جامکی | پتلون کوتاه؛ نیکر |
| چخابنکی | کلی گیک، الاشه بند وحصه آخر الاشه |
| ځوانکی | نوجوان، جوانک |
| څاڅکی | قطره، چک (کابل) |
| څکالکی | خفاش، شب پره |
| څمڅیرکی | شلند |
| خټکی | تپهٔ خاکی خورد، کالبد انسان |

| وېي پوهنه | کوشينئومبلنگونه |
| --- | --- |
| خلکی | دندان خلال |
| خوشکی | مرد بیکار وآواره گرد ؛ بیگانه |
| ډنډکی | کچری قروت؛ حوض خورد |
| ډومبکی | طبل، دهلک اطفال وغیره |
| رښکی | استخوان بلند برآمدهٔ گوش |
| زورکی | فتحهٔ خورد حرکت در پشتو (شواه) |
| ژښکی | مراهق ، نوجوان |
| سپښسکی | رباط مفاصل بین دو استخوان |
| سپینکی | ساسیچ، سختو روده ی که از ریزگی ، گوشت پرکرده شده باد |
| شپونکي | شبانک ، یعنی شبان خورد |
| شپیلکی | مصغرشپیلی، اشپلاق بواسطهٔ دهن، دیگ بخار |
| شتکی | رفتارسریع (= شت) |
| شونډکی | شخص کریه منظر |
| شینکی | گیاه و سبزه، (شنکی نیز گویند) |
| غرکی | آواز نرگاو در وقت مستی |
| غوړکی | نوعی علف ونیز مرض چربی گیاهان پیچک |
| غونډکی | شخص کوتاه قد ؛ جوک تفنگ |

| ويي پوهنه | کوشيننومبلنگونه |
| --- | --- |
| کجکی | فک الاشه؛ بند آب وولسوالی یی درهلمند |
| کرکی | خر، الاغ |
| کښکی | آواز کشیدن چیزی؛ سال معتدل |
| ککی | طفل نوزاد؛ تور، قسمی از چکن دوزی |
| کمکی | خورد، ریزه؛ کودک، طفل |
| کنجکی | پنگ، قسمی از سوزن؛ استخوان فک اسفـ |
| کنځکی | تیر افقی غژدی |
| کنډکی | پارچهٔ منجمد |
| کنرکی | کباب گوشت لاندی یا گوشت قاق |
| کوټرکی | کرهٔ خر |
| کورکی | خانه خورد، خانه گک |
| کوړکی | کشتزار خورد |
| کونسترکی | تکهٔ فنداق کودک که کارلُنگ و ازار ازا، میگیرند |
| گوجرکی | فقره و مهره پشت، مهرهٔ ستون فقرات |
| لږه کی | اقلیت |
| لستوڼکی | استینچه، نانکنک (نانوایی) |
| لوَړکی | فتحه، زبر |
| لَوړکی | چوب نوک تیز ساجق کشی؛ چوب لُک نیم گزه |

| | |
|---|---|
| ليتكی | چراغ چوب |
| مرچکی | مرچ سرخ خورد، تند مزاج و تندخوی |
| وچکی | چوبک؛ درگیران |
| وړکی | (بافشار آخیر) خورد ترک |
| وړکی | (با فشار اول) بچه، پسر؛ کودک |
| هلکی | (با ادغام -ک- اصلی) بچه گک |

0 نوم + که = کوشیننوم (ښځینه)

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| ادکه | مادرک |
| الوتکه | هواپیما، طیاره |
| اوبکه | پرنده خاکی رنگیکه منقارکوتاه و بالها؛ دراز باریک دارد |
| اوښکه | آشک |
| اومکه | زمین، خامه |
| بادکه | گیاه که با آن خارش راتداوی میکنند |
| باغکه | تشله، سانقهٔ سنگی و بلوری |
| بتکه | قاز، بط |
| بوټکه | نباتیست مانند خمزوری لا کن به زمین چسپیده و برگ های آنرا برای دفع شبش بک |

میبرند

بڼکه — پرِ پرنده

بڼکه — باغچه

پاپکه — بته ییست که از بیخ آن ساجق میکشند؛ پیاز کوهی که بیخ آن خام خورده میشود

پختکه — فاخته

پوپکه — ورم، آبله

پیڅکه — گوشهٔ چادر و غیره منسوجات

پیشکه — گربهٔ خورد؛ پروانهٔ که از برگها تغذیه میکند

ترښکه — راه باریک

ترنځکه — امپلق

تورکه — قره قوش (پرنده)

تمبکه — خانه و صندوق زنبور عسل

تناکه — ابله (دست، پا، جلد)

ټوټکه — تداوی عنعنی، دم و دعا؛ تحفه ییکه بخانه عروس میبرند

ټیټکه — پت بخار، یک نوع حساسیت جلدی

چورلکه — چرخک چوبی؛ پسکی وبینی پیزار؛ هلیکوپتر

| ويي پوهنه | کوشينونو مېلنګونه |
| --- | --- |
| چوغکه | گنجشک، عصفور |
| ځوانکه | جوانی دانه، دانه ییکه در اول جوانی بروی انسان پیدا می شود |
| ځریکه | نوک و طلوع آفتاب، تابش |
| ځړیکه | خله و درد؛ نوک آفتاب، پدیده |
| ځڼکه | کاکل، زلف، سرپوش شیشه بوتل، ابریشم غوزهٔ جواری |
| خپسکه | کابوس |
| خزدکه | حشره |
| خمنړکه | کنه، نوع حشرهٔ گزنده |
| خوَرکه | کاسهٔ خورد گلی |
| خوړکه | دود کثیف، بوی بد، تعفن |
| دادکه | لقب خواهر بزرگ = دادا |
| رنځکه | سمت های خوشنهٔ انگور، شنگله |
| ساړکه | ساچ (پرنده)، ساړه |
| سبونکه | برنجیکه با شفتل خشک میپزند |
| سویکه | نوع از موش دشتی |
| شیشکه | شیشک، مادر آل، مستی |
| شینکومکه | کبوتر صحرایي |
| غجکه | سرینده |

| ويي پوهنه | کوشينومبلنگونه |
|---|---|
| غونډسکه | گوی توپ بازی |
| کړيکه | چيغ، ضجه؛ صدای مهيب (=کړيغه، کړ |
| کونجکه | خرمهره |
| گوډيکه | گدی خورد، کاغذپرانک |
| لشکه | نيش نباتات، نيش زنبور وامثال آن |
| مچکه | بوسه گک |
| نانځکه | گوديگک، عروسک |
| نيمکه | نيم يک افغانی |
| نيوکه | انتقاد |

نوم + وکی= کوشينوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| باوکی | نسيم، باد نرم، شخص فريب خور والۀ دست مردم |
| بچوکی | قيطان دستگير طرف چپ فلاخن |
| پتوکی | نوک های هر دو ريسمان فلاخن، نوک پيزار |
| پړوکی | ريسمان خورد؛ تصغير پړک (رمۀ خورد گوسپندان)؛ فصل، باب (کتاب) |
| پنډوکی | پشتاره گک؛ قنجوغه |
| پيوکی | موی باف |

| ويي پوهنه | کوشيننومبيلنگونه |
|---|---|
| چرندوکی | چرخه |
| څاڅیروکه | دانهٔ خورد تربرف |
| څمڼډوکی | فربیه و کلوله گک |
| خوروکی | خورنده |
| خوږوکی | شیرینک |
| خسوکی | خس کوچک |
| دړوکې | پرخچگک چوب؛ چراغ چوب |
| ډنډوکی | برکه، استحر خورد، تالاب کوچک |
| ریږوکی | حقیر و ناتوان |
| ړنوکی | شقیقه |
| ړندوکی | کوردلیل |
| زړوکی | پارچه کهنه؛ چادرزنانه |
| زیږوکی | برس دندان وغیره |
| ښایستوکی | زیبا، دلپسند |
| ښځوکی | زنچه، زن صفت (=ښځنوک، ښځنوکی) |
| غوږوکی | گوشهٔ چادر و جوال و امثال آن |
| کرپندوکی | غضروف |
| کنډوکی | پارچه گلک |
| کوکی | گندنا |
| گړوکی | کوزه گک |

| ويي پوهنه | کوشينومبېلنګونه |
|---|---|
| ګرندوکی | خرخرهٔ اسپ، غشو |
| لروکی | داس کوچک |
| لېږوکی | لیرگیرک اطفال |
| منډوکی | شاخچهٔ درخت، مصغر (شاخ) |
| مڼوکی | تصغیر (ماڼو) به معنی مورم، حب الاس |
| نغرندوکی | بلعنده |
| وچوکی | چوبک در گیران |
| وړوکی | کوچک، طفل |
| ویرندوکی | ترسو |
| هډوکی | استخوان |

0 نوم + کۍ = کوشینوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| دادکۍ | مادرک |
| بربښکۍ | گردباد |
| برېکۍ | همان |
| بڼکۍ | انبانچه |
| پسکۍ | چس، بادشکم |
| پوڅکۍ | بناگوش؛ سمارق نازک |
| تارکۍ | عنکبوت خورد |

| ويي پوهنه | کوشيننومبپلنگونه |
|---|---|
| توتکۍ | پرستو |
| ټوټکۍ | عينک زانو ؛ کاسه چوبی خورد ؛ استخوان سرين |
| ټوپکۍ | حصه پوشيدهٔ کاريز |
| چونياکۍ | بته و گل بنفشه |
| چوړکۍ | کارد خورد (چړوکۍ) نيز گويند |
| چيټاکۍ | ربع يک خورد (مقياس وزن) |
| ځرمښکۍ | چلپاسه (=شرمښکۍ) |
| څوکۍ | چوکی، صندلی (ايران) |
| خورکۍ | خواهرک، نوعی بازی دخترها |
| خوسکۍ | گوساله گک (ماده) |
| رښکۍ | پارچه دراز جامه، تريشه (=ريښکۍ) |
| رنجکۍ | باروت دانی |
| رڼکۍ | شيشه نمک |
| سپېرکۍ | جوانی |
| سورکۍ | آلوبالو |
| سوه کۍ | دانه های خورد بر روی جوانان (= ځوانکي) |
| شينکۍ | کاسهٔ گلی؛ نام زنانه |
| غاړکۍ | قطاروزنه، کمر بند کارتوس؛ گردنبند زنانه |
| غوړپکۍ | قفاق، سيلی، تپانچه |

| ويي پوهنه | کوشيننو مبېلنگونه |
| --- | --- |
| کومکۍ | نوعی از فاخته |
| ګېټکۍ | سنگچل، سنگریزه |
| لپکۍ | چمچهٔ چوبی آبخوری؛ پیمانه |
| لېشکۍ | گل جعفری؛ نوعی از علف که غالباً کنار جویبار ها میروید |
| مورکۍ | مادرک |
| ناوکۍ | عروسک ، گودیگک |
| نتکۍ | دنک یا نتک بینی (نوعی زیور) |
| غوږکۍ | گوشکانی با همدیگر، نجوا |
| کرښکۍ | گلیمی که در داخل خانه هموارکرده رختخواب هارا بالای آن میگذارند |
| کرکۍ | فال اسپار |
| کړکۍ | کلکین، پنجره (ایران) |
| کوکۍ | پروانهٔ گل؛ ریزگی شیشه؛مردمک |
| لکۍ(!) | دُم |
| مکۍ(!) | نام زنانه یی |
| نتکۍ | بلاق (زیور) |
| نجلکۍ | دخترک |
| ننکۍ | دانهٔ سرخکان (=نونکۍ) |
| نیمکۍ | نوعی شعر عامیانهٔ پشتو |

| ويي پوهنه | كوشيننومېلنگونه |
|---|---|
| نیمچکۍ | نقشی منحنی حاشیهٔ گیلم |
| وچکۍ | نوعی بیماری اطفال |
| ورښکۍ | تسمه؛ پارچهٔ باریک و دراز |
| وره کۍ | بره گک (مو) |
| وږمکۍ | ماهتاب، روشنی مهتاب |
| ويتکۍ | صفت دختر شوخ و بی حیا |
| یومکی | بېلک شانه، استخوان شانه |
| یوکۍ | بایسکل، دوچرخه (= دوڅرخه، لاړیس) |

۷: نوم + گی= کوشیننومړ دا روستاړی تر-کی هم ډېر زېږی دی.

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| ارمگی | چوپ مخصوص چوپان |
| بوډاگی | مصغر بودا، مردکی پیر |
| تاروگی | یک نوع پروانهٔ گل |
| تنگی | تنگی |
| ټولگی | صنف، جمعیت گروپ، گرده |
| جارگی | گوشه یی برای پخت و پز در حویلی (=پخلیځی) |
| خیرگی | کرد مستطیل، کرد دراز، هر چیز |

| ويي پوهنه | کوشیننو مبېلنگونه |
|---|---|
| | مستطیلی |
| خرگی | خرک |
| خواگی | طرفدار؛ معاون مخفی؛ نوعی تشله ییکه در تشله بازی رولی مخصوص را ایفا میکند |
| دالانگی | دالان کوچک (=دالانگوټی) |
| دلگی | گروه ده نفری درنظامی، اصلاً (ډلگی) باشد |
| زیږگی | خارپشت |
| سمندرگی | بحیره |
| سیندگی | دریاچه ، آب ایستاده، جهیل؛ چوچه ماهی میدوزند (=شاگوړی) |
| شاگی | پارچه ییست که زنان طرف پشت پیراهن خود |
| شلگی | سرنیزهٔ خورد |
| شوړگی | هاون؛ ظرف دوغ |
| غرگی | کوه خورد ، کوه بچه؛سنگ |
| غزگی | درخت خورد گز |
| کټگی | چارپایی خورد برای نشستن یک نفر |
| کوټگی | قلعه چه، حصارک، حصار خورد |
| کورگی | خانه گک، خانه خورد |

| ویي پوهنه | کوشیننومبېلنګونه |
|---|---|
| کېږه ګی | ظرف یاکپۀ مدور از خمچه ها |
| کېله ګی | ګوسالۀ کلان، نام محلی بین دوشی و پلخمری |
| ګرګی | ګاو زنبیل؛ نوعی بازی |
| ګرګی | (با زورکی ګاف اول) استخوانبندی |
| ګړګی | کلوله؛ غلتک |
| ګماګی | نوعی آهوی پت دار |
| ګوډاګی | عُمال، آلۀ دست دیګران |
| لرګی(!) | چوب |
| لواړګی | منطقه یی شینواری نشین درۀ خیبر |
| مزدورګی | مزدورک |
| موټګی | مشت خورد، مجازا مقداری اندک هرچیز |
| نیالګی | نهال |
| هندوګی | هندو بچه |

۸_ نوم+ ی = کوشیننوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| ارغنچي | ګیلاس (میوه) |
| اړخی | دامنۀ کوه، بغل کوه، زمین مایل؛ قبرغۀ علیا |

| ویي پوهنه | کوشیننو مبیلنگونه |
|---|---|
| اړمی | تنبۀ دروازه، چوب چهل مرده |
| بانبی | نوعی از پرنده |
| پوکی | پف ؛پفک ؛ زرگران؛ پفک برای شکار مرغان |
| پېزوانی | چوبک یوغ گاو |
| ترښځی | نوعی از چکن دوزی برآستین و یخن |
| تریخی | زهره ، تلخه، کیسۀ صفراء |
| تلی | کف و زیر پایزار، کف و زیر پا پوش، پارچه وپوری چرس پخته، جوانی خاکشیر وغیره |
| تریلی | آبگیر، جاییکه آب کاریز، چشمه و بارار در آن ذخیره شده و پس از پر شدن کار آبیاری را از آن میگیرند |
| ټوکی | قماش، توپ تکه منسوج؛ نوعی از گیاه |
| ټولی | جمعیت، جماعت صد نفری عسکری |
| ټیټی | احدب، کوز پشت |
| ججوری | جاغور مرغ و غیره ؛ حوصله |
| چاودی | مویک ظرف چیني وشیشه یي چرگی حیوان قشقه برناق، حیوانی باخال سپید بریشانی |

| ويي پوهنه | کوشينو مېلنگونه |
|---|---|
| ثپکی | قمار |
| ثرخی | کلولهٔ نخ و سردوز، چرخهٔ دستی سردوز ریسی |
| ثنگی | ریسمان حلقه دار رمه |
| ختی | زیرجامه ، زیر پیراهنی |
| خرثی | توشه، خرج |
| خوسی | گوساله؛ غورسی |
| ډانډی | خوشهٔ انگور، دسته خورد قلم نوک آهنی وغیره |
| ډانگی | کوتک خورد ، سوته گک |
| راشی | برف کوچ |
| رگی | رگ خورد ، کنایه از عرق نژادی و رشتهٔ قراب |
| غاښی | کوتل، گردنه یا دندانهٔ کوه، لاش کوه |
| غرگی | کوه بچه؛ سنگ |
| غورځی | بابا غوری، رعد |
| غوږی | گوشک رباب و مانند آن |
| کیلی | میخک پای |
| گاټی | سنگچل، سنگریزه، کرهٔ چشم، تخم چشم |
| گړندی | سبکرو ، تیزرو |
| مغزی | (پس) گردن؛ چرم زرورق آلود لب پایزار |

۹ : نوم + ی = کوشيننوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| ارتاوی | کشمش سرخ آفتابی |
| اری | اره کاه بری |
| اړکی | تلک ، فلکهٔ لت کردن |
| انډولی | کجاوه |
| انګړی | سراچه ، مهمانخانه |
| اوربشی | گياه کوهی ودشتی مشابه به جو |
| اوږی | گلوبند ، طوق نقره يی زنانه |
| بټی | داش، کوره، بته |
| بغری | هاونگ |
| بندی | بندخورد ؛ بند بين دو چقوری |
| بينډی | فاصليا |
| پټی | بندو پتی مخصوص که دک، پانسمان |
| پښی | رواش |
| پلوی | د ختر بالغه ييکه از بيگانه روی بپوشد |
| پنډولی | چادرپنبه چيني و ميوه چيني |
| پنډی | ساق، صندق، چوبی |
| ترنجی | سنگ تيزيکه از آن چو پانها هنگام |

| ويي پوهنه | كوشينومبېلنگونه |
|---|---|
| | ضرورت كار ذبح كردن بزو گوسفند ميگيرند |
| ترنزى | تيرك آب، فواره |
| ترى | گذر وراه تنگ بين ويا بغل كوه |
| تورى | ترايي (سبزى) |
| تورى | خاله |
| ټوپى | پشته كوه، كلاه، سرخانهٔ چلم، تودهٔ خاك ياريگ |
| ټينډى | كدوى خورد |
| جړجړى | شرشره |
| جړ | هفته بارانك، هفته بارش |
| جنگى | درخت زار، درختان انبوه جنگل |
| جوړى | پوست مسترخى اله تناسل كه ختنه نشد باشد |
| چترى | چترى باران و آفتاب |
| چوچورى | حشرهٔ چرچرك، حشره ايست كه در وقت شام چرچر ميكند |
| چرگى | چارخشتى، آشتدان درون خانه |
| څيلى | بياره يا ساقهٔ گياه زاحف؛ ريشه |
| څپلى | چپلى |

| ويي پوهنه | کوشينو مېلنگونه |
|---|---|
| ختې | پشت تیغ |
| خنگې | سنگ چین کاریز و غیره |
| دارې | تیرک آب، فوارهٔ آب |
| درې | شطرنجی فرش |
| ډبلې | کلوخ کوب، آلهٔ ضرب و زدن |
| ډرې | تمسخر ، ریشخند |
| ډلې | ظرفیکه در آن خاکروبه را جمع میکنند |
| ډنډې | شاهین ترازو ، نرمهٔ گوش |
| ډورې | لحد قبر، گور، نام دریایی در کندهار |
| ډولې | حجلهٔ عروسی که برشانه ها می برند |
| ډېرې | تودهٔ خاک، پارووغیره |
| زرندې | زیر زمیني، تهکاوی |
| ژبې | زبانچه، کوچلک؛ تریز جامه |
| ږلې | ژاله |
| ږمنځې | شانه ی خوردهٔ شانه ی جولا (بافنده) |
| سپرغې | شراره، جرقه |
| سپږې | شبشک غله و گیاهان |
| شانتې | سد آب، پایه یی برای جلو گیری آبخیزی |
| غړې | گردنک؛ گردن کوزه و غیره |
| غوږې | سرگوشي، چهره ی شکار، گوشک |

| کوشینو مېلنګونه | ويي پوهنه |
|---|---|
| ګرداب؛ توده، جمعیت؛ فوج غیرمنظم وایلجاری یا تنظیمی و قومی | غولې |
| تپه ی خارکی، غُندی (کابل) | غونډۍ |
| ملاقه | کرنډۍ |
| جمجمه | ککرۍ |
| خس پوشک کمبین گاه شکاری | کنډۍ |
| جمجمه ، کاسهٔ سر | کوپړۍ |
| غچی، پرستو | کوچې |
| کاسهٔ چوبی | کونډۍ |
| چیستان ، لطیفه | کیسۍ |
| چپلی | کېړۍ |
| بازیگر، رقاصه ، رقاص | لبنتۍ |
| فاصلیا | لېړۍ |
| کمانک اطفال؛ کمانک تفنگ؛ قوس (آذر ماه) | لینډۍ |
| زنبور، زنبور عسل | مچۍ |
| زنی که به اساس نکاح شغار عروسی شده باشد | مخۍ |
| گنجشک | مرغۍ |
| مفغن مصراع | مسرۍ |

| | |
|---|---|
| منځی | حصۀ هموار و مایلی واقع در کنار کوه؛ مرکز |
| موری | چجه بام، سوراخی در بیخ دیوار |
| نړی | دنیا، جهان |

۱۰ : نوم + وټی، -وټې، - -کوټی، -ګوټی = کوشیننوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| پېغلوټې | دختر نوبالغ |
| جلکوټې | خترک |
| ځلموټی | جوانک |
| څپوټی | چادرکوتاه زنانه، روبند |
| زړګوټی | دلک (برای تحبیب) |
| زېړوټی | زردنما |
| سړوټی | ادمک، مردکه |
| کشروټی | خورد ترک از همه خورد، کودک و پس کرکی |
| کمکوټی | خورد ترک، بسیار کوچک |
| کورګوټی | خانه ګک |
| کوشنوټی | طفلک، خورد ترک |
| لنګوټی | لُنګی خورد |

| ويي پوهنه | کوشيننومبېلنګونه |
|---|---|
| مشروټی | مهترک ، کلانک |
| منګوټی | کوزۀ خورد ګلی، کوزه چه |
| نجلوټې | دخترک |
| نمسوټی | نواسه ګک (مؤنث: نمسوټۍ) |
| ورکوټی | خورد ترک |
| هلکوټی | پچه ګک، پسرک |

۱۱: نوم + ګوړی = کوشيننوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| انارګوړی | نارخورد |
| اننګوړی | رخسارک؛ انار و درخت انار |
| بانګوړی | انبور |
| پيشونګوړی | بچۀ ګربه |
| چرګوړی | چوچه مرغ |
| ځوزګوړی | ترنجبين |
| څانګوړی | شاخچه |
| خروړی | سګ درنده |
| دانګوړی | بادرنګ |
| دوبګوړی | صيفيه، ييلاق، جای تابستان |
| ژمګوړی | شتاييه، ايلاق، محل اقامت زمستانی |

| ويي پوهنه | کوشيننومبېلنگونه |
|---|---|
| گانگوړی | شخصيکه در حالت تاثير تتله شود |
| لمگوړی | (دمغوزک؛ دُمگک) |
| منځگوړی | متوسط، متوسط الحاق بين البين |
| منگوړی | کوزه گک، کوزه چه |
| وزگوړی | بزغاله گک |

۱۲ _ نوم + ل= کوشيننوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| بورجل | اقامتگاه، مسکن، سنگر، کمينگاه |
| بوځل | باره |
| بمبل | گل جواری |
| پل | پی، قدم |
| پيتل | فلز نازکيکه از آن پيپ سازند؛ کم عمق |
| ټوپل | جغۀ دستار، طرۀ تاج؛ نوک يا راس قله |
| چېخل | الۀ يخمالک (وسيکی) |
| چوربل | ريسمان موی بز، اسپ، از نخ و موی بز |
| څنډل | ميدان هموار سرکوه که بی علف باشد |
| څنگل | آرنج |
| خځل | خس و خاشاک |
| خډل | صفت سگ بسيار کلان |

| ويي پوهنه | كوشينونومبېلنگونه |
| --- | --- |
| خنډل | زرک نر، کبک نر |
| درشل | سبزی معروف خورودنی گندنا |
| درشل | آستان ، آستانه |
| ستوگل | شخص بداندیش و بدذات و بیکار |
| سنځل | سنجد |
| سورل | اسب کرنگ |
| ښنگل | شوره |
| غاټول | گل لاله (غټوی: بوتهٔ لاله) |
| غندل | نارگیاهان، ناروساقهٔ گل، شاخچهٔ نورسته و نازک نباتات؛ ستون بیني |
| غونډل | عنکبوت زهردار، غُندل (کابل) |
| غوډل | غُندل، عنکبوت زهردار |
| کندیل | خندق، چقوری هموار |
| کنگل | یخ، یخبندی، یخ بسته، منجمد |
| کوډل | کلبه خس پوشک |
| کونځل | کنجد |
| گوگل | صندق سینه |
| منگُل (منگول) | پنجه، چنگال |
| منیل | موسم خریف، خزان ، پاییز |
| مورچل | سنگر، استحکام جنگی |

| | |
|---|---|
| نل | نی؛ نل |
| وربل | کاکل |
| وستل | میدانی، صفه |

۱۳: نوم + وړی = کوشيننوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| ازخوړی | نوعی از خار |
| اننګوړی | رخساره |
| اوړی(!) | تابستان |
| بچوړی | بچه گک؛ چوچهٔ پرنده |
| برخوړی | ریزگی نان و امثال آن (= خسوړی، خخوثکی) |
| بوړی | دهن پتک، صراحی و غیره |
| تروړی | قرچه (= چورندک) |
| تیندوړی | خیشوم؛ شقیقه |
| ټاپوړی | عصای بغلی لنگ |
| چربوړی | گوشت سرخی |
| چرګوړی | چوچه مرغ |
| چکوړی | گوساله گک |
| چندوړی | تیکر، خذف |

| ويي پوهنه | کوشيننومبلنگونه |
|---|---|
| ثوړی | پرندهٔ کوهیست دم دراز اشپلاقی |
| خسوړی | خس خورد ؛ ریزگی نان و امثال آن |
| خروړی | سگ درنده |
| خوړی | گاویکه شاخهایش خمیده باشند |
| دبوړی | دیگ خورد |
| زرکوړی | چوچه کبک |
| زوړی | پشتاره |
| سگروړی | ماهی خورد |
| کربوړی | شلند کوهی و بیابانی |
| ککوړی | شیریني تولدی |
| کندوړی | کندوی خورد |
| کودوړی | تیکر خورد |
| کیکوړی | کلچه؛ چاکلیت |
| مچوړې | جراب ساقدار |
| منگوړی | کوزهٔ خورد |
| موړی | کلولهٔ لته هاکه سوراخ حوض را به آن میبندند |
| ننگوړی | انارخورد ترش |

۱۴: نوم + ورى= کوشيننوم

| ويى | پارسي مانا |
|---|---|
| تختورى | بادرنگ خورد |
| چاټورى | خم خورد |
| ځنګورى | خوشهٔ انگور |
| څنبکورى | نولهٔ آفتابه، نل کوچک |
| خمزورى | نوعى از بوته ى خاکى رنگيست |
| خولبورى | دهن بند بوتل و مانندآن |
| خيټورى | عصاى بغلى |
| ډنډورى | خوشهٔ انگور |
| ژنګورى | همان |
| ستکورى | چکيده گى نان در تنور؛ غولک چوبى |
| غومبورى | رخسار |
| غونډورى | کلوله |
| کنډورى | اندازه بين انگشتان سبابه وابهامه |
| کنډوري | (اسم جمع) گُند، صمغ |
| ګډورى | بره گوسفند |
| گونګورى | خوشهٔ انگور و همانند آن |
| مږکورى | موشکک |

۱۵: نوم + له = کوشيننوم

| ويې | پارسي مانا |
| --- | --- |
| اوبله | زاد و توشه |
| اوډله | تگميم، واحد جمله |
| بخوله | فاجعه |
| پخله | برگهای سوارۀ گندم |
| پاژوله | جراب (از پشمی) |
| پايله | پايزيب؛ نتيجه؛ خاتمه (زبانشناسی) |
| پخسله | خشت پخته |
| پخوله | سياه سرفه |
| جاله | کشتي که از مشک ها ميسازند و در رو خانه ها ازآن کارميگيرند |
| ځاله | آشيانه؛ خانواده ، خانمان |
| چخله | چوکه |
| خرپله | گليم کهنه |
| خواله | همدردي، راز دل |
| خوله | خوی، عرق |
| زورله | دشنام ، فحش |
| زاوله | اثاث البيت، موبل خانه |

| ويي پوهنه | کوشينوميلنگونه |
|---|---|
| ژاوله | ساجق، ریشه جویدنی گیاهی |
| ساونیله | زانو بند اشتر |
| سدوله | مرد کوتاه قد |
| سریله | خاک سرخ |
| سنځله | سنجد (درخت) |
| سوگله | چارق؛ چموس، سُگلی، نوعی موزه از چرم گاو |
| سوله | کباب |
| شاخله | شاخچه |
| شانډوله | پشتک دادن |
| شوبله | هزارپا؛ شیله؛ ټانک جنگی، نفت یا آب |
| غورله | مادر، مادر کلان، امجده |
| غونډله | جمله (نو) |
| کمبله | کندوی کلان ، انبارخانه |
| کمبله | کمبل یا کمپل؛ شال پشمی؛ گلیم، شطرنجی |
| کویله | مرغی خوش آواز، بلبل هندی (کویل) |
| کوریله | نوحه وگریه با آواز بلند ، تلاش وتپش زیاد |
| کهاله | هدف، نشانه ، اماج |

| ويي پوهنه | کوشينومبلنگونه |
|---|---|
| کيله | خط قلبه؛ اندازۀ زمين در حدود چهل جريب |
| گانډوله | طرز نشستن بادوزانو |
| ورله | حامله (حيوان) |

۱۲ـ نوم + ړ = کوشينوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| انکړ | وضع يا حالت نامطلوب |
| انګړ | حويلی خانه |
| ايسړ | آه |
| بوسړ | خريج آتش ، گلخن |
| بشړ | جاييکه در جامه از دوختن مانده باشد |
| بنجړ | انجر بنجر |
| پوهړ | شخص بی نظافت، احمق، ساده لوح |
| ترپړ | ترپال؛ سست و تنبل |
| ترنګړ | کاه کش |
| ترينګړ | آلۀ سه گوشی موسيقی |
| توپړ | زيان ، صدمه ، آسيب |
| جکړ | باد شديد |
| جمبړ | لباس کهنه و فرسوده، جامه ژوليده و کهنه |
| چړ | گذر رود و دريا ؛باران تند ؛درويزه |

| ويي پوهنه | کوشينومبېلنگونه |
| --- | --- |
| چمپړ | کرباس منقش ، روی جایی منقش |
| چکړ(!) | خیت، گل آلود |
| چندړ | صندل (هندی) |
| چنگړ | شخص بد معامله و بد خلق |
| څپړ | چپلاخ |
| خپړ | پنجه، پنجال |
| څوکړ | کوسه← سوکړ |
| خسړ | خسک، خاشاک |
| خوپړ | ناختنه |
| دبړ | فربه ، چاق |
| دوپړ | مصیبت، پریشانی، ذلت؛ مرض؛ گرسنگی |
| ربغړ | اهل، عیال و اولاد یک خاندان مستمند |
| سوسړ | خوگ دریایی |
| سوکړ | تنک ریش و کوسه؛ قد بلند و باریک اندام |
| سوگړ | ممسک ، سوگت |
| شپړ | شش کلکه، شخصیکه دریک دست شش انگشت دارد |
| شخړ | خیل و سیل بزرگ پرنده گان |
| شوپړ | ناختنه |

| ویي پوهنه | کوشيننو مبلنگونه |
| --- | --- |
| شونګړ | خواب برده گی پای |
| شیشړ | مرغی سیاه که در میان بته ها پی شکار گشته و خود به دست شکاری و یا گربه میافتد |
| کبړ | کمند اسپ ها ، ریسمان ضخیمی که به آر اسب ها را می بندند ؛ کیبل |
| ککړ(!) | آغشته، آلوده |
| کنځړ | (کهنه) لحاف (= کنځڼ) |
| کوبړ | پژمرده ، خزان زده |
| لغړ | لچ، برهنه |
| لګړ | شیله، مسیر رود و سیل |
| لوکړ | گاوزنبیل، راکول، ماله ی دندانه دار |
| ګوګړ | زنبق کوهی؛ گوگرد |
| متړ | شخص احمق و کودن |
| مستړ | احمق و کودن |
| مندړ | نام عشیره یی؛ چوب سطبر که با آن چو بهای، جاله (کشتی مشکی) را میبندند ؛ معبد هندوان |

یادښت:

دغه پاس او ځينې نورکوشيننومونه زياتره ارکاييک دي، او هسې په اتکلي توگه راوړ شوي دي. په دې لړ کې اړوند رو ستاړی (-ړ) او يايې (-ړه) ځېل د پخواني غږ(ر) او غږ غونډ (رد) پرمختيا يي بڼه ده، لکه د (زړه) اوېستايي (زرد) او زوړ پارسي (دېرد)، او يا لرغونی (کر) چې پښتو د هندي غبر گڅبيزوالي تر اغېز لاندې پر (کړ) راړولی او پارسی پر (کرد) او داسې نور.

۱۷_ نوم + ړی= کوشيننوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اوړی (!) | ريشمه های برای همآميزی بوده وتنسته |
| اوږدړی | درازک |
| بوخړی | چوچه مارکوچک؛ برگک عضو مخصوص زن (= نېغی، نېغکی) |
| بنگړی | چوری |
| تينگړی | قاب، بشقاب؛ امپلق با انگشت |
| چوپړی | نوکر، خادم |
| خيگړی | مشکوله، مشک خورد برای شناوری |
| رگړی | کودکيکه از شير جدا شده باشد |
| رنگړی | تُنک (نبات، ريش، موی...) که رنگی نيز |

| | |
|---|---|
| | گوېند |
| کنگړی | ژاله ، خورد و سخت |
| کوپړی | چقوری، عقب بند زانو |
| کودړی | تیکر، سفال |
| کوراړی | کُرد کوچک |
| کوړی | گوساله ی خورد ،گوساله گک به زبان اطفاا |
| گونگړی | شورنخود (اسم جمع: گونگړي) |
| گینگړی | زنگوله |
| لومړی | اول، اولین، نخستین |

# ۸= څپرکی

## ترڼگونه (ترکیبات compounds)

لړوډېر، مخامخ، اخلی پخلی، اجلځی، تشپاټی، پرهر پاټه، کلي پرکلي، وطن گټو ، ښځگله، نرگله، وربش لو ، غنم لو ، غوبلرگی، توا ، تبا ،
خپسر، پسلغ ...

پښتو ترڼگونه (ترکیبات) چې د دود له مخې ورته نومترڼگو نه (اسمي ترکیبونه هم ویلای شو ، له دوو یا زیاتو څیز نومو نو ، ستاینومونو ، شمېرنومونو ، نومځرو ، ← کړ نومونو ، نو مکړونو ، کړسټو ، کړولو نو ، وییکو او همدا راز له انگینومو نو (اصوات طبیعي) او بې مانا توکو ( مهملو) څخه منځته را

ځي. لکه په ← لومړي څپرکي کې يې چې پېژند (تعريف) وړ اندې شو، د ويبرغاونې تړښتي يا ترکيبي (compositional) ډول هم د بېلښتي هغه غوندې په (و) ګړنى ژبه کې د ويونکيو له خوا په ناګاهانه او په ليکنى کې د ليکوالو له خوا په اګاها نه ډول رغول کېږي. په نورو ټکو، يو تړنګ (ترکيب) د شته بېلګې يا بېلګو له مخې دوه يا زيات يووستوي، يا هم لږ و ډېر نايووستوي ويي له بېلا بېلو پښوييزو او مانيزو اړخونو سره داسې يوځای کېږي چې د لومړي ويي يا ويبو واوېلي پا يلې زياتره، او خجونه (له ← جوړه تړنګونو او ← بيا ځلي تړ نګونو پرته) يومخيز غورځي ياکمزورېږي او يوازې روستى ويى يې د ټول تړنګ په استازی يو پياوړی (ديناميک) پا يخج راخپلوي او له اړتيا سره سمې ورپورې لږوډېرې صرفي، نحوي يا لغوي پايلې او روستاړي ننبلول کېدای شي.

په هره توګه، بېلابېل تړنګونه له پښوييز او مانيزپلوه زياتره د بېلښتي (ستاينوميزو، مانا نوميزو، چارنوميزو، لوښنو ميزو ...) رغاونو، تړښتي اندولونه دي.

هماغسې چې د ووريانکوف (پښتو ژبه ۱۹۶۰) يې هم ياد ونه کړې: ((پښتو تړنګونه د بېلنګونو په پرتله کم دي)) .رښتيا هم نيمه پېړی پخوا، د نورو ډېرو پرمختيايي ختيزو هېوادو د ژبو غوندې دغه پرتله پرځای وه، خو له هغه را

هیسې په دې نیم پېړ ییز مهالپېر کې له نوې نوې ټولنوټېزې او علمي- فرهنګي غوړیدا سره د ترڼګونو اړتیااو پراختیا پر مخ تللې او لرې نه ده، هغه پرتله سرچپه بڼه راخپله کاندې.

هسې خو پښتو د نړۍ د نورو ژبو او بیا لرې نژدې خپلوانو دوی غوندې د ← جوتنو مغونډونواو بېلنګونو ترڅنګ دو مره آرې او (و) ګړني ترښتي بېلګې لري چې د ورته ټولیز ژبني ((زېږځواک)) له مخې یې ناپایه نومُونه او نومَوني او بیا تر ڼګونه را منځته شي؛ زموږ د دې ارتې بیرتې لیکنې څېړ نې مخه او موخه هم تر هرڅه له مخه د پښتوارې پانګې پر را سپړنه، وړاندېینه او غځونه ټیکاو لري

په دې توګه، دا په زغرده او پوره ایمان و باور ویلای شو چې تر دې روسته له پرلپسې رامنځته کېدونکو نومَونپوهنو (تر مینالوجیو)سره تر بېلبنتي رغاونو، د ترښتي او ترښتي وزته (غونډېزو) هغو میدان دومره پراختیامومي.چې بېلبنتي دا یې له ټاکلو مخبېلګو او اړوندو تاړو سره د سیا لۍ جوګه کېدای نه شي.

د ترڼګونو تر څنګ د ← جوتغونډونو د رغاونو کچه خو بیا ګړ سره ناپایه ده، که مخبېلګې یې دومره ډېرې هم نه وي، د بیا بیا یوځای کولو شونتیا یې څه پوله برید نه لري. رغنده ټوکونه (متشکله اجزأ) یې بو خوا، ټوله آره بنستیزه پانګه،

په نورو ټکو، يووستوي، بېلښتي او ترښتي وييونه يومخيز رانغښتای او بلخوا يې رغنده غړي هم بېشمېره کېدای شي، يانې د ژبې د زېږندويه قانون له مخې په يوه يوازېني (نحوي) ترړنګ کې ناپايه رغنده ټوکونه (اجزأ) برخه اخېستای، ډېرېد ای او اوږدېدای شي.

په (و) ګړنی پښتو کې ډېرې (پخې) ترښتي بېلګې دوه يا درې ټوکيزې دي او څه ناڅه په کمپېښې (نادره) توګه ترشپږو وييو نو او وييکو پورې هم پيدا کېږي، لکه: وطن ګټو (په لغمان کې د يوه ځای نوم)، له اوښکو ډکې (ستر ګې)؛ تر ډېره بيا د جوړه ترړنګونو په توګه، لکه: (وابه پر خوله-رسی پرغا ړه) چې له څلو رو خپلواکواو دوو ناخپلواکو توکو (مورفيمو) څخه رغېدلی ترړنګ دی؛ يا له نورو ژبو سره ګډې ټولی (مقولې)، لکه: وخوره- مه مره (بخور ونمير) يا نړيوا له هغه: بېل يې کړه- ابل يې کړه (تفرقه انداز و حکومت کن devide and rule) چې د همدې بېلګو پربنسټ يو لړ اوږده علمي- تخنيکي ترړنګونه را منځته کولای شو.

په دې لړ کې ښايي، نورې راز راز اوږدې بېلګې هم وموند لای شو، لکه واخلې له وييکو (اداتو) رغېدلی کړولي (قيدي) ترړنګ (وبله ته پسې) د (پرلپسې) په مانا چې ژبپانګې (٥٨٨) د ستر خوشال د دستار نامې پر اخځ وړاندې کړې دي:

... حديث د پيغمبر دی،هره عورته چې د خپل مېړه اووه ورځې (وبله ته پسې) خدمت وکا چې مېړه يې له خدمته راضي شي...

د لنډيزونو په بڼه، لکه په سوېل لويديزه ګړدودي ډله کې:توا (ته وايې)، تبا (ته به وايې)، او همدا راز د پخوا نيو ليکوالو لنډيزونه هم په زړه پورې دي، لکه:
خپسر(خپل ځان)، پخسر (په خپل سر)، پسلغ، پسلغه (پس له هغه)، وبله (يو له بله)... .

پر نړيوال او بيا د هندو اروپايي ژبکورنۍ دننه جرمني د اوږدو اوږدو ترنگونو له پلوه يوه ببساري ترښتي ژبه ده او په دې توګه جرمنيان د پوهنيزو، فرهنگي او تخنيکي او بيا ځو اړخيزو قانوني او سياسي جاجونو د ځرګنداوي لپاره د اوږدو نومَونو (اصطلاحاتو) جوړولو له پلوه پوره نوم لري چې د ((اوږده چينجي)) په نوم يادېږي او د نړۍ په بله هېڅ کومه ژبه کې ساری نه لري.

ځو کاله وړاندې چې د اروپايي ټولنې په غړيو هېوادو کې د (لېونۍ غوا mad cow) په نامه د غواغويو يوه بوږنوړې نا روغي رامنځته شوه او غويني غوښې د يو شمېر وګړو ماغزه لکه اسفنج پوده پوده کړل او پسې مړه شول، نو جرمنانو ورته پر خپل وار له۲۳ توريو (او غږونو) ځخه دا اوږد (پوخ) ترښتي

انډول ور ورغاوه:

Rindfleischetikettierungsueberwachungsaufgabenuebertragungsgesetz (د غوايي غوښې لېبل څارونکي واک لېږدونکی قانون).

اروپايي ټولنې د يو قانون جوړولو لپاره دغه اوږده نومَونه (اصطلاح) له منځه يووړه او پرځاى يې دغه (توشيحي) لنډون RkRe UAUG ورسره ومانه، چې دا هم پرخپل وار يوه ګران وينګه نومَونه وه.

په زړه پورې بيا دا چې کله اروپايي ټولنې په ونډ بځيو، کو تلځيو، (مسلخونو) کې د څارويو طبي کتنې ته پايټکی کېښووه،او اړوند قانوني توک (ماده) لرې شوه، نو هغې نو موني ته هم نوره اړتيا پاتې نه شوه.

د جرمني ژبې دا بله ((اوږد چينجي)) نومې اوږده ترښتي بېلګه هم په زړه پورې ده:

Donaudampfschifffahrtsgesellschaftskapitänswitwe (په دا ينوب سيند کې د چلېدونکي بړاس بېړۍ د سرماڼو يا کپېتان کونډه).

هرګوره، په Wörterbuch کې يې تر ټولو اوږده نومونه Kraftfahrzeughaftpflichtversicherung ده، چې مانا يې (د ګاډو بيمه) ده. خو جرمني ژبپوهان په دې باور دي، چې

دغه ډول اوږده اوږده ترمونه ډېر لږ کارول کېږي، او په (کره) ژبه کې يې کره والی ستونزمن دی (له يوې انټرنېټي رسنۍ، ۱۵جون ۲۰۱۳).

د پښتو ويبيرغاونې د دغه پرلپسې پرمختلونکي ډول په تړاو د دوو (او څه ناڅه درو- څلورو) رغنده غړيو نويزونه چې د يو دوه بېلګو او پرتلو پر بنسټ رغول شوي دي، لوستوال او مينه يې وينګونه (تلفظونه) او ماناوې له پارسي انډولونو او ژباړې سره سره د اړتيا له مخې په اړوندو ليکلړونو، لکه پق (پښتو قاموس)، د نويزونو سيندګي او يانورو سيندګيو او سيندونو کې موندلای شي.

د کتاب پايته پر وړاندې شوي ټوليزاخځليک سر ببره د متن دننه هم بېلا بېلو ګړدودي او وګړني اخځو ته لنډې لنډې نغو تنې يادونې شوي دي.که دلته او هلته ترې ډډه شوې، هرومرو يې د ليکوال په خپل ګړدود او موندنو اړه درلودلې او ژمند ويي يې پر غاړه اخلي.

پارسي ماناوې او انډولونه هم ښايي، تر تش پرنامه کرښې وراخوا پښتنو ته سهنوړ (قابل هضم) نه وي او له ناچارۍ مو څنې کار اخيستی، بياهم هيله ده، يو پرتليزه (نسبي) مرسته وکړای شي. څکه پر پارسي ويپوهنه او ويبيرغاونه کوم خپلو اک نښير، ان په ايران کې هم نه دی ليکل شوی او دلته راوړل

شوي انډولونه هم د ليکوال پر خپلو ليکنو څېړنو اړه درلود لې چې يوه لړۍ يې په اتيايمو زېږدي کلونو کې د ((خراسان)) مهالنۍ او بيا د ليکلارښود له لارې وړاندې شوې ده.
دغه راز د ليکوال له خوا په دې روستيو کې د ځينو پارسي نښيرونو، لکه د دوکتور ببرک ارغند د دوو نومورو ناولونو د ژبني-ګړدودي کره کتنو په ترڅ کې د کابلي ګړدود يو شمېر نومېرلي بېلګې هم د پوره پاملرنې وړدي.
د جوړه ترنګونو بېلګې يې، لکه:
مرګ و مردن يا مرګ و مير، پرس و پال، بردوباخت، ساخت و باخت (ساخته و بافته)، کم و کاست، خاک وخون، جنګ و جدل، جارو جنجال، مال ومکنت، مال و منال، جاه و جلال، جد و جهد، بلاوبتر، تب وتاب، تب و تلاش، سوزو ساز، ناز و نياز، رازو نياز، بندوبست، زدو بند، کار وکسب، شان و شوکت، شوخ و شنګ، ديد و اديد، سر و بر، داد و قلم، داد وستد، دار و دسته (ډله ټپله)، تار و پود، نوشت و خوان، خط وکتابت، ارسال و مرسول، نشيب و فراز، فراز و فرود، پرس و پال، سروپا، سروصورت، دست و پا، راست و دروغ، رُک وراست، بيخ و بن، مال ومنال، کم و بيش، کم و تُم، ګرګ و ميش، خورد و بزرګ، دور و دراز، دور وبر، راه و رسم، راه وروش، خورد و ريزه، خورد و خمير، ګرم و سرد، نشست و

برخاست، جستجو، جست وخیز، جسته وګریخته، جمع و جور، جمع و جارو، جمع و غند (غونډ)، خانه و کاشانه، آب و هوا، حال وهوا، کوه و دشت، کوه و دمن، پاره وکنده، زشت و زیبا، صبح و شام، ګاه و بیګاه، کته و سوته، پت و پنهان...
د بیائلي ترنګونو (۴- څپرکی) د (مهملو) په تړاو له پښتو سره تر ډېره د نورو افغاني ژبو ترڅنګ د کابلي پارسي ګړ دود یو لړ همرنګی هم لیدل کېږي، لکه له (- م) سره د څیزنوم راغبرګېدنه:
سنګ منګ، کلخ ملخ، کله مله، کار مار، خانه مانه، باران ماران، دفتر مفتر، چوکی موکی، چوب موب، سرک مرک...
د ستاینومونو په تړاو چې په پښتوکې تر هر څه له مخه له (پ-) او څه ناڅه (ب-) او (م-) سره مهمل ترنګونه رامنځته کوي، پر وګړني (عامیانه) کابلي ګړدود باندې د اغېز او پور ونې له مخې تش یو لړ شمېر بېلګې سهي کولای شو، لکه:
پخته و مخته (پوخ موخ)، کهنه مونه (زوړموړ)، شخ و پخ، چتی پتی (چټي پټي)، تېروبېر...
د ایران خواته یې بیا په لیکلې بڼه ډېر لږ څرک لګي، لکه (خرت وپرت) چې فرهنګ کاشانی odds (غیرمعمول، بېډ وده) راژباړلی دی.

همدارنگه د (یونکر و علوی) فارسی- آلمانی فرهنگ هم ورته بېلگې راخېستې دي، لکه: شپا شاپ (آواز مسلسل تیر اندا زی)، اخم و تخم (تابش)؛ هیرو ویر (درهم وبرهم)، یا کابلي (کج وج)، (کجی وجی) غوندې يې له (-و) سره مهمل بېلگې يې بيا د پښتو په پرتله ډېرې ناڅيزې دي.

کابلي گړدود داسې بشپړې مهملې بېلگې له پښتو او پښتو- هندي نه راخپلې کړې دي، لکه: چتل پتل، تت ولغت (ټرت و لغت)، گدود (غزنيچي او هزاره گي: گټ وټ)، (اخ ودب) په آره مانا (زدوخورد) نه، بلکې د دپ وغپ، ډب وغپ يا ډب و غب په مانا (دب، ويار) کاروي (اروانباد استاد غلام حسن مجددي).

## هندواروپايي څلور گوني ترنگونه (ترکيبات)

هرگوره، موږ پر خپل وار له لويه سره د پښتو ترنگونو د ډلبندۍ بنسټ د سانسکريټ پرهماغه تولمنلي ((څلور گزني وبش)) ږدو چې د هندواروپايي ژبو وييپوهانو پرکار اچولی او ليکوال تري لومړۍ پلا په خپل ډاکتري تېزس کې له څو نورو څېرمه ډلو ټېلو سره گټه اخېستې ده؛ اړوندې نمونې يې دا دي:

۱.

Sanskrit:Dvanda
Engl: Copulative compounds
Germ: Kopulativkomposita

پښتو: جوړه تړنګونه

پارسي: ترکیبهای جوره (عطفی)

۲.

*Skt. Bahuvrīhi*
Engl. Attributive or Ajectival compounds
Germ. Attributivkomposita

پښتو: ستاینومتړنګونه

پارسي: ترکیبهای وصفی

۳.

Skt. Tatpuruṣa
Engl. Determinative compounds
Ger. Determinativkomposita

پښتو: ټاکنتړنګونه

پارسي: ترکیبهای تعیینی

۴.

Skt. Amredita
Engl. Reduplicative compounds
Germ. Reduplikationskomposita

پښتو: بیا ځلي تړنګونه

پارسي: ترکیبهای تکراری

د پوره پوهاوي لپاره: د لیکوال دا جرمني اثر:

Zyar,M.A. Die Nominalkomposita des Paschto(۳۱، ۴۹، ۲۱، ۷۵) Diss. Uni. Bern ۱۹۷۴.

پښتو ترنګونه (ترکيبونه) هم د همدغو بنسټيزو څلورګونو ډولونو، او بيا د يوځای کېدونکو وييونو د ګډو ښندونکو ماناوو او پښوييزو چارونو (نقشونو) له مخې پر ستاينو مترنګونو (ترکيبات وصفي)، جوړه ترنګونو (ترکيبات وصفي)، تاکنترنګونو (ترکيبات تعييني) او بيا ځلي ترنګونو (ترکيبات تکراري)، او يو لړ بېلابېلو څېرمه ډولونو او ← تولیو (۹- څپرکی) سره وبشنه مومي.

## ۸-۱ : ستاینومترنګونه (ترکیبات وصفی)

Attributive compounds(Bahuvrihi)

سرلوڅ، هېرزړی، دربسکلی، نیمه خوا ، خوږ اروا...

لمغوټه، غندلغاړی ، پیمخی، لمر مخي...

تر ساده او بیا بیلښتي ستاینومونو (اشتقاقات وصفی) روسته ترښتي ستاینومونو هم پرخپل وار د پښتو ویي رغاونې او په دې توګه د پښتو ویپانګې یوه پرلپسې را زېږېدونکې ارزښتناکه برخه ده، ترښتي ستاینومونه د پښتو د نورو نوموالو ترنګونو (ترکیبات اسمي) غوندې زیاتره له دوو (څه نا څه) ساده ویيونو څخه جوړېږي او تر دوه زیاتو ویيونو بېلګې یې یوازې په ← جوړه ترنګونو کې تر سترګو کېږي.

د نورو ترنګونو په څېر له نحوي ترنګونو، په نورو ټکو، غو نښونو سره د ستاينومترنګونو توپير همدا دی چې د هغو د رغنده ټوکونو (غړيو) ترمينځ اضافي ويېکی (د) په جوليز ډول شتون نه لري او ځانګړي لغوي فشارونه يې سره پر رو ستي غړي باندې يوکېږي، په بله وينا، د نورو ترنګونو په څېر رښتينی ترښتي ستاينوم (صفت ترکيبی) هماغه دی چې په يوه نحوي چاپېريال کې د يوه يوازېني ناشننوړ ويي په تو ګه خپل شتون وساتلای شي.

له بشپړ بياڅلي (تکراری) هغو پرته د نورو پښتو ترنګونو په څېر د ترښتي ستاينومونو رغنده غړي هم هرومرو يو راز ويي او بيا يو راز اوډون نه لري، بلکې کېدای شي (د دوه ټوکيزو په ترخ کې) لومړی غړی څېزنوم، روستی هغه ستاينوم، يا سر چپه لومړی ستاينوم او روستی څيزنوم او داسې نور نوموال ډولونه اوسي، روستی غړی زياتره يو ستاينوميز (صفتي) رو ستاړی، نوږېزه (جنسي) يا اوښتوني (مغيره) پايله هم په ځان پورې نښلوي او په سرچپه توګه يې، مخني غړي کله کله خپلې پايلې له لاسه ورکوي، دغه راز د غړو ترمنځ يونيم ← ترخپلواک (ويل ارتباطی)، هم لږو ډير رامنځته کېږي.

پښتو ترښتي ستاینومونه د راز راز غړو وییو د چارومانا او مخکې روستوالي له مخې په دې روسته لس- یوولسو ډلو وېشنه مومي :

۸-۱-۱: ځیزنوم + ځیز نوم = ستاینوم، لکه: اریړه وربوز (عبوس)، ایروپز (پوک)، ځان تېری، ځان مینی، پښتون مین (-ی)، ولس دښمنی، اروابناد ، اروا وږی، ځټ مخی، کمر غوږی (کمعقل)، لمغوټه یا لکۍ غوټه (دُم بسته؛ بید رنگ)، لمرمخی، سپوږمۍ مخی، پایڅه دوړ (لوده)، یا یمخی (ماقبل آخر)، پیمخی (خوبرو)، سربادی، سرهوا ، سر زوره یا سرزوری، کورواکې، ساخولی (بردبار)، ختوبریتی (زلمی)، زور متی، شنازگېډی ، غندلغاړی، مورغاړی، ادې غاړی، دودبویه ...

نوی بیلگې یې، لکه : پښتو ژبی، پښتو آری (پښتو اصلی)، سامی توکمی (سامی نژادی)، ولسواک (دیموکرات)، وگړواک، ډلواک، لویدیز گروهی، اروپا گروهی یا اروپا لوښی (اروپایي مشربي)، سویل ختیز، ټولنو ټیز (سوشل اېکانو میک)، امریکا پلوی، ایرانپلوی، چین پلوی، سمون پلوی، اخوان پلوی، طالب پلوی، حکومت پلوی...

۸-۱-۲: ځيز نوم + ستاينوم = ستاينوم، لکه : ارواوړی، ځانگ غوځ، ږيرخريلی، مخ ماتی (لحاظ دار) غوږ بوچی، ځان وزگاری، لاس اړی، لاس پراخی، کوروداني (ميرمن)، مخروښی، محتور، مختورن، مختوری، ملا شينی (خوارو خسته)، مورمړی، پلارمړی، زومړی، وررورمړی، سرغوځ، سر پرې، يا سر پريکړی، سرتېر، ځان تېر، شاغوټی، شا کوپ، شاکوپی، ملا کوپی...؛ ملا ماتی (← سرماتی، غا ښماتی)، برخه خواری (بد قسمته)، خوا ټولي (خاطرجمع)، خواخپوری (پريشان)، خواخوږی (همدرد)، خوابدی، کور گډی، کوروراني، کورخوری (خپوری)، کورډاگی، اورپکی، سرلوړ (-ی)، سر ځوړ (-ی)، سر ټيټی، لړمون خوړينی، زړه خوړينی، زړه چاودی، سرلوځی، سرپټی، خولپوټی يا خو لپوري (ساکت؛ سر پوش)، خولځيري (دهن پاره)، خولپوښ يا خولبوری (سرپوش بوتل)، خولخوږی (گنديده دهن)، زړه خوږی، پښه ارتی (پايواز)، لاروركی، پښې لوځی، مخلوځی، مخپټی، ځان خو ښی، ځانښکاری، ځانوينی، ځانمنی او نور.

يو شمېرنوې رغولې بېلگې:

بېديا مېشتی، لويديځ مېشتی، ښارمېشتی، اروپامېشتی، امريکا مېشتی، ايران مېشتی، پاکستان مېشتی، لوی چا ری، سترچاری (کلانکار؛ انجام دهندهٔ کارهای سترگ)، نو

چاری (نوښتګر (نوآور، مبتکر)، نو ځوان، ځانخبری (خود آګاه)، ځان مین، پوهنمین (علم دوست)، هېوادمین، ولس مین، بوت ماتی (بت شکن)، زنځیرماتی (زنجیر شکن)...؛ ځان اسان(تن اسان، راحت طلب)، لکه د حسین په شعر کې (ژبپانګه ۲۲۰):

ځان اسان ځان نیوی نه شي ضرور ته
له بلادمینې تښتي، زړور نه وي

همداراز (ځانمړی) چې ژبپانګې(بلاوهلی، بدمرغه) مانا کړی دی:

دی حضرت هغه ځانمړی
په حدیث معلون نومړی

ورته اخځ(ځان کوتلی) یې هم د (ځان حلال کړی، ځان وژلی) په ماناد حسین په شعر کې سهي کړی دی:

ګنه ډېر دي ځان کوتلي ستا پر مینه
زه مین پرتا تروارو یم څرڅوک

۸-۱-۳: ستاینوم + څیز نوم = ستاینوم، لکه: درون هډی، وړسولی، وړسترګی، کوږسترګی، موږسترګی، مړسترګی یا خړسترګی(شرمسار)، سپېرستر ی (خاطر)، سپورسترګی (پق)، سپین ستر ګی، بد سترګی، چوخ سترګی، چغرسترګی (کسیکه یک چشمش نسبت به دیگری کوچک باشد)، تور

غوږی، کږخولی، سپین ږیری، بد ژبې ، بدمرغه یابدمرغی، نیکمرغه یا نېکمرغی، ښه مرغی، تور زړی، سپین سری، تورسری تورسرې (ښځه)، سپین ږیری، تورږ یری، نیمه خوا ، مړه خوا ( نارا ضی)، مړه خوا (راضی، بی نیاز)، نیم ژبې (ترن )، پاکلمنی، پاکزړی، پټخولی(خاموش)، ارت خولی، وازخو لی، ویتخو لی، چینگخولی، وېړ خو لی، وچخولی، پوچ خو لی، بدخولی، مړخولی، سپېرخولی، خوږ غاړی، بوږغاړی (بدآواز)، لاس وزری (دستیار)، رسا لیندی (تیرانداز ماهر)، پراخ ټندی، ورین ټنډی، بدلوښی (بدعا دت)، بدخویه، بد سری، کمبخته ، غټ سری، سړ وزمی، سوړبو یه، بدبو یه، دود بویه، بدسولی، وږسولی(گرسنه چشم)،خپل سری، خوږاروا ، موړاروا ، لوی اروا ، تشلاسی، ورکلاری، ورک لوری، بدلا ری، بدورده یا بدورگه (بدکردار)...؛ تور سرې (ښځه) بیا پر نوم اړول شوې ده؛ وچموری (شیرسوخته) چې (مچموری) یې همماڼیز گړدودي، ځېل برېښي، خو ژبپانگې (۵۲۸) د دالپوري په شعر کې ( د فقرالجوع ناروغ ) مانا کړی دی:

د هماسوری دولت بخش په خوارول د نفس شو
شکم پرور په خوږو خوړو کې مچ موری پاتې شي

نوې بېلگې، لکه :

روڼاندی، روښاند-ی (روشنفکر)، لنډ اندی (کوتاه فکر)، اوږداندی (دوراندیش)، بداندی (بداندیش)، پوچ اندی، بد لاری، ورکلاری، تریخژوندی، خوږ ژوندی، هوسا ژوندی، لنډ ژوندی، اوږد ژوندی، کم خرڅه، کم ارزی، کم ارز ښته، کم پیسه، کم ازمېښته، منځوا ټنی، لر واټنی، لنډ واټنی، توندلاری، سختچاری، خپلچاری، ډېرکاری، منځلاری، سر لاری، سرتېری، تشپاټی(خلع سلاح، غیر مسلح)، ګلپاڼی (ما نند برګ ګل؛ بوته یی بابرګهای ګل مانند)، تور پیکی، نو مهالی (مدرن)، تېرمهالی، وسمهالی، وسترمهالی، منځمها لی، لنډ مهالی، اوږدمهالی، جګپوړی بیا تر (لوړپوړی، لوی رتبه، لوړ رتبه) د اسان وینګ له کبله کره ارزول کېږي، ټول-ګټی(عام المنفعه؛ کامن ویلت؛ ټولګټی وزارت:وزارت فوایدعامه)، خپل- واک، بلواک...؛ ټولواک،... یې له نورو ورته زږو او نویو بېلګو سره په ← چار نومتړنګونو کې را ځي

تر کوم ځایه چې پته لګي، یوازې له لوښنومیز سربل (په) سره د یوه کړول په توګه کارول کېږي، خو ژبپا نګې (۵۸۸) په یوه پېبیلې وینا کې (ژو ندی، هغه چې خوراک ته یې خوله وازه وي، خوړونکی) ماناوې ورکښلې دي، خو (ژوندي سر) مانا یې ښه ترا اټکلېدای شي:

ترتاجر لري دهقان　　پر خداى ډېر باور ايمان
له ده نفع رسي عامه　　له هغه خاصه زرغامه
سړي څه چې کل وازکومي　رزق له سعى دده مومي

۸-۱-۴ : ستاينوم + ستاينوم = ستاينوم، چې لومړى ستا ينوم د دويم لپاره يو بشپړوونکى او ټينګارتوکى (inten-sifier) ګرځي، لکه : سپين سپېځلى، سورسپين، سپک ورک، تريو خوږى، او مسوى، ژوندى ژړاند، پوخ پتير، ګڼ مېشتى، زېړ زبېښلى، ميراتمړى، ځارځپلى، تېرهېر؛ ښا غلى منلى، وران ويجاړ او داسې نور چې په ← جوړه ترنګو نو کې يې ګڼې بېلګې راغلې دي.... :

۸-۱-۵ : څيز نوم + کړول (قيد ) = ستاينوم، کړول ، لکه: اروا څک، اسمانڅک (آسمانخراش)، اړنګلاندې يا شکمن (زير اشتباه، مشکوک، مشتبه)، ږيرى لاندې، لاسلاندې، لاس باندې، زدلاندې، واکلاندې، سر پاس، لاسبرى، سر لوړى، سرځوړى، سرکښته، مخپورته، سرپورته (سر بالا)، لاسپور ته (دست بالا، تسليم شده)، کونه پورته ... ؛ نوى جوړونې، لکه سرباندې (فوق العاده )، ځمکلاندې، ځمکباندې يا ځمکتلى .... .

۸-۱-۶: کړول+ستاينوم= ستاينوم) بيا نوې رغول شوې بېلګې په لاس کې لرو، لکه: روسته پاتې، تلپاتې، تلژو

ندی، تلیادی، تلتاند، تلسمسور، تلښپراز، تلشین (ته نشین)، تلز رغون، تل پسرلی (همېشه بهار).

۸-۱-۷: - غاړی). که له کړستې (غواړ-) څخه آره واخلې، تر دېره ترښتې چارنوم رامنځته کوي، لکه په بسپنغاړی، سرغاړی، لوبغاړی، سندرغاړی، ډالغاړی، لمونځغاړی (تره کی کې؛ که له (غاړې) سره راشي ستاينوميز ترنگ رامنځته کوي،لکه: خوږغاړی (گردن باریک)، بوږغاړی، غندلغاړی؛ ويرغاړی (نوحه گر، سوگوار) ډېر د يوه ستاينوم په توگه کار ول کېږي؛ له (غواړ-) کړستې څخه را منځته شوی بلاغواړی (ماجراجو) هم يوه په زړه پورې بېلگه ده.

له نومستې (غاړ-) نورې رغېدلې بېلگې، لکه: خوغاړې (غنچه دهن)، جگغاړی،دنگغاړی، وچغاړی، سورغاړی (سور غاړې لونگی)، رنځورغاړی، همغاړی،مورغاړی،ادې غا ړی...؛ ارغاړی (سرا شیبی)،اوبغاړی (نوعی نقش گلم)، اور خاړی، (نوعی سبزی؛ مرض گوسپندان)...بيا پرخيز نومونو اوښتې دي؛ هسې خوا/غ/ د/خ/ غږن ځېل دی او دواړه يو پر بل اوړي، لکه (چرگخالی) چې له آره (چرگغالی)، سوغالی (غار خرگوش)، چُوغالی (جای استراحت یا طویلهٔ شتران) دی.

۸-۱-۸: شمیر نوم + څيز نوم = ستاينوم، لکه: يو وزری، يو لاسی يا لاسيوی (متفق)، يو لاسی (يكدسته، دارای يک

دست) یو زړه، دوه زړی، یوسترگی، څلورگوټ-ی (مربع) څلورغانبی، دوه مخي، دوه ژبي، دوه پوړه یا دوه پوړیز، دوه سوری (دوبره)، دوه پښیزه، دوه غړیزه (دو عضوی)، درې کسیزه، شل پلاري، په دې بیلگو کې ځینې نوی قیاسي جوړونې هم دی.

۸-۱-۹: کړول + ځیز نوم = ستاینوم، لکه: روسته پاتې، پر مختلی، تلپاتې (ابدي)، پس مرگی، برلاس (-ی)، تیرمهال، (ا-) وسمهال، (ا-) وسترمهال، وسترتالوییز، پاس شونډیز، پاس پاس غانبیز (نوی گړ پوهیزې او غږ پوهیزې نومونې).

۸-۱-۱۰: له بدني غړیو سره د ترښتي ستاینومونو بیلگې هم کمې نه دي، لکه لاس پرنام (نو)، لاس پرخوله، گوته پرغاښ، لاس پرسر، لاس پرسینه، (یا د ← بیائلي ترنگ په بڼه) لاس پرلاس (لاس پرلاس بابا د کامې میرزاخپلوخواته د یوه زیا رت نوم هم دی)، څڼی (څېړی)، سر پر سارا، سر پرغر ونو- گړنگونو، سر پرورغوي (د پښو ر خواته سر په تلې کې)، (فدا)....

سر تر پښو (سرترپایه)، بې لاس و پښو یا بې لاس و بې پښو چې پښتانه یې له آره د (معیوب او ناتوانه) په ماناووکاروي، خو ځینې لیکوال یې نن سبا د پارسي نوموالې گړنې (بې سر

وپا) د انډول په توگه هم کاروي، په داسې ترخ کې چې نرۀ پښتو انډول يې ((بې سروبوله)) دی.

له (-غونی) سره يو پاموړ شمېر ستاينوميزې او څيزنوميزې رغاونې شتون لری چې يوازې له تاريخي (← دايکرونيکي) پلوه ترښتي بلل کېدای شي، نه له ← ساينکرونيکي پلوه. مانا يې دا چې نن سبا (-غوني) ته د (وزمه، وشمه، غری...) غوندې، د (تصغيري) روستاړي په سترگه کتل کېږي او اړو ندې رغاونې يې تصغيري بېلښتي ستاينومونه يا ← ستا ينوميز بېلنگونه راڅي.

دا چې د پارسي (گونه) د انډول په توگه په پښتوکې هم د يوه خپلواک گړ (غونی) لرو، لکه چې وايي: غونی مې زيږ شو، (گونه ام ديگر گون شد) او همداسې يې په غبرگون، لسگون، زرگون... کې يې زړه بڼه لا پرخپل اکر پاتې ده، خو بيا هم په رښتيني ساينکرونيکي جاج ورسره له يوه کوشينروستاړې پرته د خپلواک گړ (ويی) چلند نه شو کولای.

بېلگې يې لکه: لرغونی، ربغونی او مړغونی (پژمرده، افسر ده) چې مړه غونې (حنظل) پرخيزنوم اوښتې ده، نورې ورته بېلگې يې، لکه تياره غونې، رنغونې، ترلغونی، سپېره غو نی...

## ۸- ۱: د ستاينومترڼگونو ليکلړونه

۸-۱- ۱ :ځيز نوم + ځيزنوم = ستاينوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اروپا گروهی | اروپايي مشرب |
| اربړه(ا)وربوز | عبوس، پيشانی ترش |
| افغان توکمی | افغانس نژاد |
| ايروپز | پوک، پست، رذيل |
| پايخه دوړ | احمق، لوده |
| پايمخی | ماقبل آخر |
| پښتون آری | پشتون الاصل |
| پيمخی | خوشروی، خوبروی، حسين |
| خټ مخی | زشت روی، زمخت |
| ختوبريتی | نوجوان، نوخط |
| پارسي ژبی | پارسی زبان |
| تخته ځبر | برف سرج؛ يخبندان |
| دودبويه | دود بوی |
| ديوخويه | ديومنش |
| ډنډ گلی | نيلوفر(=شين گلی) |
| زورمتی | قوی، زبردست |

| ويي پوهـنه | د ستاينومترنګونو ليکلړونه |
|---|---|
| ساخولی | بردبار |
| سپوږمۍ مخی | مهرو ، ماهرخ |
| سپي مخی | بی حيا و بی شرم |
| سرزوری | سرکش، زورآور |
| سويل ختيز | جنوب شرقی |
| سوېل لويديز | جنوب غربی |
| شمالختيز | شمال شرقی |
| شنازګيډی | دارای شکم کلان |
| کمرغوږی | متوسط العقل |
| کورډاګی | خانه خراب |
| کورواکی | اختيار دارخانه؛ اوتونوم |
| ګلپژی | ګلبدن |
| ګلمخی | ګلرو |
| لمرګلی | ګل آفتاب پرست،یاهمګون آن |
| لمرمخی | خوشروی |
| منګول پاڼی | پنجه چنار |
| مېړه مخې | (زن) مردانه صفت |
| وګړواک | دموکرات، مردم ګرا |
| ويرغاړی | نوحه ګر(=وهيرغاړی، ويرژلی) |

۸ ـ ۱ ـ ۲ : ستاینوم+خیزنوم= ستاینوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| ارت خولی | دهن کشاد |
| ازادخیاله | آزاداندیش، لیبرال |
| ازاد دینی | سیکولر |
| اوږداندی | دوراندیش |
| اوږدمهالی | طویل المدت (= لرمهالی) |
| اوږد واتنی | دوربرد |
| ابغ سترګی | شوخ چشم، بی حیأ |
| بدبویه | بدبو ، متعفن |
| بدپوری | بدمعامله |
| بدخولی | بدزبان |
| بدخویه | بدخو |
| بدژبی | همان |
| بدسترګی | گستاخ |
| بدلغامه | بدعمل، شریر |
| بدلوښی | بدطینت |
| بدورګه | همان (=بدورده) |
| بلاندی | دیگراندیش |
| پاک زړی | پاکدل |

| ويي پوهنه | د ستاینومتړنګونو لیکلړونه |
|---|---|
| پاک لوښی | پاک طینت، نیک خصال |
| پاک نیتی | پاک نیت |
| پټ سترګی | چشم پوشیده؛ شلند کوهی (=کربونی) |
| پټ خولی | خاموش |
| پراخ تندی | خوشبخت |
| پراخ پزی | پهن بینی، |
| پلن پزی | همان |
| پلې لار | راه پیاده ده (=پللار) |
| پوچ اندی | بداندیش |
| پوچ خولی | بد زبان، فحش گو |
| پیت پزی | پهن بینی، بینی پچق یا پتق |
| تریخ ژوندی | بازنده گی تلخ |
| تلیادی | زنده یاد |
| تنګ زړی | بی حوصله |
| تنګ سترګی | کوِتاه نظر |
| تنګ لیدی | همان |
| تورپیکی | کاکل سیاه |
| تورزړی | سیاه دل |
| توررږیری | با ریش سیاه |
| تورسری | با موی سر سیاه |

| ويي پوهـنه | د ستاينومترړنګونو ليکلړونه |
| --- | --- |
| تورسرې | سياه سر(زن) |
| تور غوږی | سخن ناشنو، بازيگوش |
| توندخويه | تندخوی |
| توندلاری | تندرو |
| تېرمهالی | ديرينه؛ تاريخی |
| ټيټ سترګی | شرمنده، خجل |
| جګپوړی | بلند رتبه |
| څيرسترګی | چشم پاره (=څيرې سترګې) |
| ځپل اړی | خود غرض |
| ځپلچاری | همان |
| ځپل سری | خود سر، خود رای |
| ځپلواک | آزاد، خود مختار |
| خوارځواکی | سؤتغذيه |
| خوږ اروا | خوش خلق |
| خوږ ژبې | شيرين زبان، شيرين سخن |
| خوږژوندی | مرفه حال |
| درون هډی | خاندانی؛ اشرافی |
| ډېر ژبی | چندين زبانه |
| خوږ ژوندی | دارای زنده گی مرفه |
| ډېرکاری | پُرکار، کارکشته |

| ويي پوهــنه | د ستاينومترنګونو ليکلړونه |
|---|---|
| رسالېندی | تیرانداز ماهر |
| روښاند (-ی) | روشنفکر |
| روڼاندی | همان |
| روغنیتی | پاک نیت، خوش قلب |
| زبروګړی (زبروګړه) | آبرمرد |
| سپورخولی | بد زبان |
| سپېرخولی | همان |
| سپېرسترګی | چشم پاره |
| سپېره مخی | بد بخت، بد چانس |
| سپین پایڅه | دختر باکره |
| سپین پوستی | سپید پوست؛ خوبصورت |
| سپین ټکری | زنی متنازع فیه بین دوطرف متخاصم |
| سپین زړه | صادق |
| سپین زړی | همان |
| سپین ږیری | همان |
| سپین سترګی | گستاخ، بې حیا |
| سپین سری | سرسپید |
| سپین مخی | بیگناه، تبریه شده |
| سپین وربړی | صفت اسپ سپیدیال |
| ستر چاری | کلان کار |

| ويي پوهنه | د ستاينومترنګونو ليکلړونه |
| --- | --- |
| سرغاړى | سرکش، متمرد |
| سړوړمى | خام بوى |
| سور پړوني | زن دعوايي که سبب قتل گردد |
| سور لاسى | قاتل، سفاک |
| سور لمني | زنيکه بوضع حمل بميرد |
| سوړ بويه | متعفن، بدبو |
| شين ټاغى | سبز چشم؛ نيلى زاغ (=شين خوټى) |
| شين خالى | با خال سبز (صفت دوشيزه) |
| شينزړى | غمگين |
| شين ږيرى | با ريش ماش و برنج |
| شين سترگى | با چشمان سبز |
| شين سرى | آن که موى سرش ماش وبرنج باشد |
| ښى لاسى | راستگرا |
| غټ سرى | کله کته، خام کله |
| غونډ ژبى | تتله |
| کږخولى | دهن کج |
| کږ سترگى | احول، قيچ |
| کلک زړى | سنگدل |
| کلک سترگى | چشم پاره |
| کموينى | کمخون؛ کم ديد |

| ويي پوهــنه | د ستاينومترنکونو ليکلړونه |
| --- | --- |
| کينږلاسی | دست چپی، چپگرا |
| لرليدی | باديد دور |
| لرمهالی | درازمدت (=اوږدمهالی) |
| لرواټنی | دوربرد، دور منزل |
| لنډ اندی | کوتاه فکر |
| لنډ ليدی | کوتاه بين |
| لنډمهالی | کوتاه مدت |
| لنډ واټنی | کوتاه برد، کوتاه منزل |
| لوی اروا | بزرگ حنش |
| لوی چاری | کلانکار |
| لوی خولی | بادهن کلان؛ پرگوی |
| لوړپوړی | بلند رتبه |
| لوی رتبه | همان |
| لېونتغاری (لېونغرتی) | ديوانه مانند (= لېونغری) |
| لېونسدی | همان |
| مات مخی | کم رو، شرمندوک |
| مړجونی (مړژونی!) | مردنی؛ پژمرده |
| مړخپن-ی | همان |
| مړخپی (مړخپاڼ) | همان |
| مړخندی | متبسم؛ پسخند کننده |

| ويي پوهنه | د ستاینومترنګونو لیکلړونه |
|---|---|
| مړخوبه (مړخوبې) | سنگین خواب |
| مړخوړی (مړهکی) | مسلول |
| مړخولی | کمگو، شرمگو |
| مړژواند-ی | نیم جان |
| مړسترگی | شرمنده، خجل |
| مړکندی (!) | نیم جان، مردني |
| مړوچ(!) | نیرومند، قوی |
| مړه خوا | ناراضی |
| مَړه خوا | چشم سیر، مستغنی |
| مړه خوی | (خوراک) مغذی |
| منځکوره | مابینی، متوسط |
| منځلاری | میانه رو |
| منځمهالی | مربوط دورۀ عبوری |
| منځواتنی | میان برد |
| موړاروا | چشم سیر، بی نیاز |
| موړسترگی | همان |
| موړسولی | همان |
| نروچکی | ضعیف ولاغر (= نروشکی) |
| نوچاری | مبتکر، ابتکاری |
| نوکاری | مبتدی |

| ويي پوهـنه | د ستاينومترنګونو ليکلړونه |
| --- | --- |
| نومورکی | گمنام (= ورکنومی) |
| نومهالی | معاصر |
| نیمخوبی | نیمخواب |
| نیم ژبی | تتله ، الکن |
| نیمه خوا | جوان مرگ، ناکام، نیم بسمل |
| وازخولی | دهن پاره |
| وازکومی | ژوندی (سر)؛ وږی |
| وچ سترگی | چشم پاره |
| ورکلاری | گمراه |
| ورین تندی | با پیشانی باز؛ بشاش |
| وږسترگی | گرسنه چشم، حریص |
| وږسولی | همان |
| وسمهالی | مغاصر، کنونی |
| ویت خولی | دهن پاره |
| ویرخولی | همان |
| ویښ زړی | زنده دل |
| هیرزړی | فراموشکار |

۸-۱-۳: خیزنوم+ستاینوم = ستاینوم

| ویی | پارسي مانا |
| --- | --- |

| ويي پوهـنه | د ستاينومترنګونو ليکلړونه |
| --- | --- |
| اروابناد | شاد روان، روانشاد |
| اروا وړی | گرسنه چشم، حريص |
| اورپکی | شرير(اشرار) |
| اورګډی | همان |
| برخه خواری | بد قسمت |
| بېديا مېشتی | باديه نشين |
| پښتونځار | فدای پشتون |
| پښه ارتی | پايواز |
| پلار مړی | پلار مرده |
| پوهلنډی | نادان |
| ځان اسان-ی | تن اسان، راحت طلب |
| ځان تېر-ی | از خود گذر، جانباز |
| ځان خوښی | از خود راضی |
| ځان وزګاری | کار گريز |
| ځانګ غم ځ | دل افگار |
| خوابدی | آزرده |
| خواتورن | دل زده، دل سياه؛ متنفر |
| خواتوری | همان |
| خواټول-ی | دل جمع، مطمئن |
| خواخپور-ی | پريشان، دلگير |

| وېي پوهــنه | د ستاینومترنګونو لیکلړونه |
|---|---|
| خواخوږي | همدرد |
| خواخوښی | رضامند، راضی |
| خواشینی | غمزده؛ متأسف |
| خولپوټی | خاموش؛ سرپوش |
| خولځیری | دهن پاره، گستاخ |
| خولخوږی | گندیده دهن |
| زړه پورې | دلچسپ |
| زړه توری | دل ساه، بیزار |
| زړه چاودی | زهره ترک |
| زړه خوږینی | دل شکسته |
| زړه خوږی | همدرد |
| زړه شین | قهرآلود، خشمگین؛ دل آزرده |
| زړه شینی | دلگیر، مغموم |
| زړه ماتی | شکسته دل |
| زومړی | پسرمرده |
| سترګوږی | گرسنه چشم |
| سرپټی | سرپوشیده |
| سرتېر | سرباز، فدا |
| سرتېری | سرباز، عسکر |
| سرټیټی | شرمنده، شرمسار |

| ويي پوهــنه | د ستاینومتړنګونو لیکلړونه |
| --- | --- |
| سرخوږی | سردرد |
| سرغوڅ | سربریده |
| سرلوڅ | سرلوچ، سربرهنه (=سرلوځی) |
| سرلوړی | سرفراز |
| سرماتی | سرشکسته؛ سرمهرهٔ دیوار |
| شاټوغی | کوزپشت |
| شاټیټی | همان |
| شاټېغی | همان |
| شاکړوپی | همان |
| شاکوپی | همان |
| ښارمېشتی | شهرنشین |
| غاښماتی | دندان شکسته؛ دندان شکن |
| غوږبوچی | گوش بریده |
| کورسپېری | خانه خراب |
| کوږګډی | همان |
| کوروراني | همان |
| لارورکی | گم گشته، گمراه |
| لاس اړی | تنگدست، محتاج |
| لاسبری | مسلط |
| لاسپراخی | جواد، سخی (= لاس پرانېتی) |

| ويي پوهــنه | د ستاینومتړنګونو لیکلړونه |
| --- | --- |
| مخپټي | روپوشیده |
| مختور(ی) | روسیاه، بد نام |
| مختورن | همان |
| مخرونی | سرخرو |
| مخسوری | همان |
| مخلوڅی | روی لوچ |
| مخماتی | کمرو، شرمندوک |
| ملاخوږی | کمردرد |
| ملاشینی | روشکسته |
| ملاکوپی | کوزپست |
| ملاماتی | کمر شکسته؛ کمرشکن |
| مورمړی | مادر مرده |
| مورمیراتی | مادر مرده |
| نومورکی | گمنام |
| ورورمړی | برادر مرده |
| وطنجار | فدای وطن (=وطنځار) |
| ولس دښمنی | ملت ستیز |
| ویرګډی | غم شریک، اندوهگین، ماتم دار |
| هېواد دښمنی | دشمن وطن |
| هېواد مین | میهنپرست |

۸-۱-۴: ستاینوم+ستاینوم=ستاینوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| پوپنا | بکلی نابود |
| پوخ پتير | زرنگ (طفل) |
| تس نس | تيت وپرک؛ حيف ميل |
| تش تور | بکلی خالي و ميان تهی |
| تلپاتې | جاويدانی، ابدی |
| تلسمسور | هميشه بهار |
| تلژوندی | زندهٔ جاويد |
| تلشين | هميشه سبز؛ هميشه بهار |
| تلنبراز | هميشه بهار |
| تلتاند-ی | همان |
| سپين سپيځلی | بسيار پاک |
| سم سهي | رُک و راست |
| سم سيده | بکلی راست و مستقيم |
| سور سپين | بسيار جسين |
| شنه زرغونه | سبزوآبی؛ رنگين کمان |
| شين زرغون | همان |
| ښايسته ښکلی | زيبا وقشنگ |

۸-۱-۵:: شمېرنوم+ څیز نوم = ستاینو، څیز نوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| اتپښیز | اختاپوت |
| اوخولې | نان روغنی هفت لا ،(غړی) نیز گویند |
| پېنځښنډی | پنج ضلعی |
| پېنځډزی | تفنگ پنج تیره |
| پېنځکلن | پنجساله |
| پېنځګوټ | پنج گوشه، پنتاگون |
| څلوربولی | چارپای ؛ با چهار پای |
| څلورښنډی | چار ضلعی |
| څلورغاښی | چهار دندانه ، گاو پنجساله |
| څلورګوتې | چهارکلکه |
| څلورګوټ | چارگوشه ، چارکنجه |
| څلورلاریز(څلورلاري) | چهارراهه، چارراهی (=څلاریزه) |
| درې پښیز | سه پایه (=درېبل) |
| درېسکلی | اشتر سه ساله |
| درې کسیز | سه نفری |
| درېګټ | نوعی اړبازی |

| | |
|---|---|
| دربگوټ | سه گوشه، مثل |
| دوه اړخيز | دو طرفه |
| دوه بنديزه | تخم دوزرده |
| دوه بولی | دوپا |
| دوه پتی | دوبره |
| دوه پتيز | دوپله يی |
| دوه پسوری | دوبره |
| دوه پښيز-ه | دوپا |
| دوه پوړه | دوه طبقه يي |
| دوه پوړی | همان |
| دوه پوړيز | همان |
| دوه خواييز | دو جانبه |
| دوه خلي | دوشاخهٔ خرمن |
| دوه خولي | نوعی سوزندوزی |
| دوه زړی | دودله (متردد) |
| دوه ژبی | دوزبانه – ذواللسانين |
| دوه (غبرگ) ژوندی | ذوحياتين، دوزيست |
| دوه سری | دو سره |
| دوه غښی | دودندانه؛ گاو چارساله |
| دوه لاريزه | دوراهی (=دولاري) |

| | |
|---|---|
| دوه لوریز | دو طرفه |
| دوه مخی | دوه رویه، منافق |
| دوه ورگی | شتر دوساله |
| زرکلن | هزارساله |
| زرمشر | سابق معادل (دگرمن، کرنیل) |
| سلکلن | یک قرنه، صدساله |
| سلمشر | اصطلاح سابق نظامی (تورن) |
| شپږ گوتی | شش کلکه |
| شپږخند | شش ضلعی |
| شپږگوټ | شش گوشه |
| شل پلاری | بیست پدره ، حرامزاده |
| یوا ړخیز | یک جانبه، یک طرفه |
| یوبندی | نوعی تفنگ قدیم |
| یوبولی | یکپا |
| یوبېولی | یک قول، صادق القول |
| یوخوابیز(یولوریز) | یک طرفه |
| یوډزی | تفنگ یک تیره |
| یوژبی | یک زبانه؛ همزبانه؛ همصدا (=یوه خوله) |
| یوسترگی | لوچ، قیچ |
| یوغابنی (یوغابنیز) | گوسالۀ یک دندانه |

| | |
|---|---|
| یوغوږی | یک گوشه، دارای یک گوش |
| یولاس | یکدست، متفق |
| یولاسی | یکدسته |
| یو لوریز | یکطرفه، یک سمته (جاده، سرک...) |
| یومخی | یکرو، صادق |
| یوموټی | یک مشت ؛ یکدست، متفق |
| یووزری | تنها صورت (=یوزری) |
| یووستوی | یک لا |

## ۸-۲: جوړه ترنگونه

### (ترکیبات جوره)

Copulative compounds (Dvandva)

مرگ وژوند ،کوراور، پلارومور، سپک ورک، روغه جوړه،
وابنه پرخوله- پړی پرغاړه، مه مره اومه رغېږه،
ببل يې کړه- ابل يې کړه...

دا ترنگونه هم د نورو لرې نژدې ژبو په څېر د پښتو له ډېر ز
بړو (کثيرالتوليدو) نومترنگونو (اسمي ترکيبونو) څخه گڼل
کېږي. په دې جاج چې دغلته رغنده توکونه سره يو له بله د تړ
وييکي (و copula) په جوليز شتون يا غورځون د يوې
يوازينی مانا په موخه يوازېنی ترنگ (ترکيب) رغوي.

د جوړه ترڼګ مانا یا د غړو ویبو له ماناوو سره یو مخیزه توپیر او بېوالی (تضاد) لري، یا یې یو څه ښکارندویي کوي او یا هم یو د بل جاج بشپړوي او ټینګښت وربښي؛ او لا کله د عربي (تفاعل) په څېر د وبله ګډون (اشتراک) جاج ښندي او له دې سره بې مانیز ارتوالی او پیاوړ والی تر هر یوه رغنده غړي زیاتوالی مومي.

رغنده غړي یې، یا له سپلمې یووستووي وي، لکه لوړه تنده، غروسمه او یا دا چې هر یو پر خپل وار، ځانته یوه بېلښتي (اشتقاقي) یا ترڼښتي (ترکیبي) بڼه لري، داسې چې په رښتینه ورته د یوه یوازېني ویبي په سترګه کتل کېږي، لکه: ښاغلی اغلې، ښاغلی منلی، پاک سپېڅلی، اېل وغېل (محشور)، یو زړه او یوه خوله، واښه پرخوله «او» رسی پر غاړه، خان خېپه- بي بي خوشاله (د ټوکر نوم).

رغنده یا مله ویبي سره په ګڼه (افراد و جمع)، نوړي (نرینه او ښځینه) کې یا یو څېر وي، لکه: غوا خوسی، خور لور، مړی ژوندی، یا سره توپیر لري، لکه: غاړې غرونه، مچ او مېږی، چې زیاتره یې هماغه مخنی یوګړی (مفرد) راځي.

پښتو داسې جوړه ترڼګونه هم ډېر لري چې غړي یې غونډېزه (کولکتیفه) مانا لري، او په همدې توګه یې ګډه مانا هم غو نډېزه راځي، لکه: ستغې (ستوغې) سپوږې، سپکې سپو

زې، سرې تودې یا سرچپه سپورې ستغې، سپورې سپکې، تودې سرې اونور.

د رغنده تیوکونو ترمنځ کله کله ترویبکي (او، و) لوبېږي او کله جولیز شتوالی هم خوندي ساتي؛ دا په دې اړه لري چې اړوند (مربوط) جوړه ترنګ څومره دود موندلی دی، او ویېزه (تلفظي) لوښه یې د خوندي ساتلو غوښتنه کوي او کنه؛ که مخنی رغنده وبی پر وازه څپه پایته رسي، ترویبکي (او) را ځي، لکه (هڅه او هاند) او که پر تړلې څپه پایته رسي، د (و)، بنه راخپلوي، لکه (هاندو هڅه).

له نورو ترنګو، په تېره ← ټاکندو (دېترمیناتیفو) ستا ینوم ترنګو سره یې یوازینی بېلنده ښنه همدا ده چې د لته هر غړی وبي خپل آر فشار له لاسه نه ورکوي.

له همپښېلو (همقافیه) او همغږو ترنګونو سره یې بیا د ← بیا ځلي ترنګونو (۸-۴) یو توپیر په دې کې دی چې دلته رغنده غړي که همپښېلي او همغږي هم وي، تکراري یا مهمل نه وي، لکه لوڅې پوڅې، وړې تړې، لوړه تنده، منډه ترنده، تېپه تغره، لوړځوړ، لوړې ځوړې، لو ړې ژورې، غورځې پرځې، سرې تودې، خوږې ترخې، لوڅې پوڅې، لیک و لوست، راشه در شه، تګ راتګ، راکړه ورکړه، رومبی رو ستی، پو له پتې، ستړي مشي خوره مشي؛ شروغوبل (غوغا،

آشوب)، شخه شولانګه (تنش) د بي بي سي د پخواني وياند (ګوهرالرحمان ګوهر) له ګرويزونو څخه.

د رغنده توکو اوډ (ترتيب) په پښتو او څه ناڅه په پارسي او نورو نژدې خپلوانو ژبو کې داسې جوړه، په تېره همپښېلي يا همتولي ترنګونه هم شته چې اوډ يې د اروپايي او ځينو نا خپلوانو ژبو له هغو سره توپير لري. په نورو ټکو، اوډ يې د جاج و مانا يا منطق له مخې نه، بلکې د جوليزې روانۍ، اسا نۍ او خوږغږۍ، يا هم کولتوري ځانګړتيا پر بنسټ رامنځته شوي او کېږي.سم له لاسه يې دلته درې غوره د کونه (دليلونه) له بېلګو سره را لنډوو:

(۱) روان، اساني او خوږ غږي، لکه په مرګ و ژوند (مرګ وزنده ګی)، اندوژوند (انديشه و زنده ګی)، اندوواند (اند يشه و خيال)، لږو ډېر (کم وبيش)، لرې نژدې (دور و نزديک)، شپه او ورځ (شب و روز يا روز و شب)، ليک و لوست (نوشت وخوان، ليکنه څېړنه (پژوهش ونګارش).
له پارسي سره توپيري بېلګې، لکه اخ وډب (زدو خورد)، ورانه ودانه (آبادانی و ويرانی)، لمونځ اودس (وضؤ و نماز)، پړه وړه (بردوباخت)، وړانه پړانه (فتح وغلبه)....

لنډ تراوږده ويې وړاندې راځي، لکه: غوا خوسی، رمې او گلې، سخته اسانه، خېل وختک، مېږې او غلې، سود سودا، سود وسلم، روغ رنځور، نرو ښځه، غم وښادي، دوست و دښمن، لوڅ و بربنډ، پټ پنا، گل واغزی، ځان و ځيگر، کور وکلی، ځوان ځلمی، چم گاونډ (کوی و برزن)، جم جگړ، (يا بې همماني) باد وباران، سوک وڅپېړه، لاس وگرېوان، جنگ جگړه، زنځير و زولانه...؛ نوې رغاونې: غوښتنه - وړاندېينه (عرضه و تقاضا)، کلي او ښارونه، لارې سرکونه، دردونه کړا وونه، غمونه کړاوونه؛ پلانونه او پروژې، اورو ويني، سا ندې او سندرې، يادونه او درمندونه (شعري ټولگې).

تر وسې وسې د ترنگ وازڅپېز يا بېواکپای غږی تر خپلوا کپای هغه د دې لپاره له مخه راوړل کېږي چې ترمنځ يې تر وييکی (او) بې الفه (و) ته راواوړي، او هممهاله ور پورې پښويېزې پايلې هم اسانې او رواني ونښلول شي، لکه د (هغه او هاند) د (هاندو هغه)، او ډېرگړې او اوښتي بنې يې (هاندو هڅې) او (هاندوهڅو)، د (هڅې هاندونه) او (هڅو او هاندونو) پروراندې.

د شعري تول وتال يا وزن و قافيې اړينتيا بيا تر بل هر دک و دليله، نه يوازې د جوړه غږيو اوډنه، چې لا د تر وييکي (-او-) يا (-و-) کارونگ يا نه کارونگ هم اغېزمنوې

په لیکنۍ پښتوکې یو لړ نړیوال ترنګونه چې ځینې یې متل وزمه ← جوتغونډونو بڼه لري، تروسې وسې له پښپلې او تول و تال سره پښتو جوړه ترنګونو ته راړول شوي دي، لکه.
مه مره- مه رغېږه (بخورونمیر)، ببل یې کړه- ابل یې کړه؛
خپلې ځانګړې متلیزې او ګړنیزې ببلګې، لکه:
څنګه یې ګتم-هسې یې څتم، خپل عمل-د لارې مل، چې غواړې، پرې واوړې، چې ځې ځې-ابازو له به راځې، د غره سرې- نه سرې، لرې څه او ژر راځه... ؛ یا په آره او اوښتې مانا، لکه سترې مه شې-خواره مشې (ورسره نه لرم) او داسې نور، دغه راز ورسره د همدې څېرکې په سرکې ورته اوږدې پښتو ببلګې هم د پرتلې وړ دي.
د ادی د غږو ویپو د جولې (لفظ) او وینګ او بیا پښوییز چار، او مانا له مخې د جوړه ترنګونو ډلبندي په دې روسته توګه کوو:
۸-۲-۱: یو بل بشپړوونکی (متمم) چې د ترنګ رغنده ویي یې یوله بل سره مانا بشپړوي یا تونډوي، لکه: بوره بدنامه، سونډ و سپېرکې (دودیز دارو درمل)، ست سلا، غوټه غوړا شه (جهیز عروس)، ستن وتار (ابزار دوخت)....← ۲-۲-۳.
۸-۲-۲: څېز نوم + څېز نوم - څېز نوم، چې زیاتره یې ← تړوییکی (-و-) منځتاړي کېږي، لکه: موروپلار، پلار و

مور، خور و لور، خور و ورور، پلار و زوی، مور و زوی،
خوابنې خسر، خوابنې نږور، نیا نمسی، پوله پتې، غوا
خوسی، غوبنې وریجې، سابه او سوکړک، سوکړک و شړو
مبې، کورت وغوړي، مخ ولاس، کاني بوټي، بدرد، مال
پیسه، خواري نیستي، خواري مزدوري، خاوري دوړي،
زیارو زحمت، ورم و وراشه (پندوحکمت)، لاره رَوده (راه و
روش)، لاره لبله (راه و سبک)، هاندوهڅه (هڅه هاند)، تېرې
زیاتې، تګې برګې، دښمني تربګني، عزیز تربور او نور؛
ځاینومونه او تېرنومونه، لکه: کابل و زابل، کابل و کندهار،
کابل و پېښور، میدان و وردګ، پروان وکاپیسا، تګاو او
نجراو، هېلمندوارغنداو، بغلان و پلخمري، بغلان وکوند
وز، بلخ و بامیان، کامه او بېسود، اریت وشماش، کان و
کترغې، پچیرواګام، الینګار والیشنګ یا سرچپه الیشنګ
والینګار، لغمان و پغمان، هډه او جلال (ا) باد، فراه و هر
ات...؛ غلجي او دراني، ځاځي او منګل، ځاځي او ځدران،
تني او ګوربز یا ګوربز و تني، وزیرو مسید، شینواري او
اپریدي، ساپي او مومند، ککل و باجوړي(کامه)، مري او
ژوندي(دمیدان او نرخ همبریدی کلی چې میرزایانو/ده حیات
)) کړی دی)...؛ غرچه او کرپه (غلجي او کرلاني)؛ له سر خجو
توسره(دا جوړه تر ننګ له پخوا راهیسې په دغو تېرونو کې

کارول کېږي چې په سوېلي ولایت کې دوه ډېره ژوند کوي: یو (کرړه) او بل (غرچه).

۸-۲-۳: ستاینوم+ ستاینوم= ستاینوم لکه :تورو سپین، شنه وزرغونه یا شنه و سره هم له آره په همدې ډله کې راځي چې روسته پر خیزنومونو او ښتی دی.

همهانیز، لکه (ښکلی او ښایسته، پیاوړی او غښتلی، ویرژ لی ویرژړلی، ویرجن و ویرمن، ټینګ و ترینګ) او ورته ما نیز، لکه: ارت و بیرت، بدرد، وږی تږی، ړوندو کوڼ، زیږ زبېښلی، ځارځپلی)، خراب توراب، وران ویجاړ، سپک ورک،...

د نویو بېلګو په لړ کې:

سم سهي، سم سیخ، سم سیده، سیده او نا سیده، لېوال و مینه وال، تاند و ښېراز، سمسور و ښېراز، ټینګ و ترینګ، زخمي ژوبل، پک و ورک... نورې بېلا بېلې بېلګې په اړوندو ډلو ټپلو او لیکلړونو او همدا راز ← بیاځلي تړنګونه.

۸-۲-۴: خیزنوم+خیزنوم= ستاینوم، هغه هم په اوښتې (مجا زي) مانا د یو لړ بدني غړیو یا ورته ارزښتمنو ویيونو په جو ړه کولوسره، لکه چې وايي:

هغه یا ته زما (زړه او ځیګر)، (ځان وځیګر)، (سر و سترګې)، (زړه او لېمه)، (زړه او ذهن (ایمان و وجدان)... یې!

۸-۲-۵. بډيا سرغاړي ترنګونه چې مله غږي سره په خپل منځ کې بډوالی (تضاد) يا مخامخی (تقابل) لري ، په بله وينا يو د بل بډه او انډوله مانا ښندي، او کومه ګډه مانا چې منځته راوړي هغه يو منځ و ميانه او يا هم دوه اړخيزه وي.

څيزنومونه، لکه: غم و ښادي، غر و سمه يا سم و غر، مرګ و ژوند ، مخ و څټ، خاورې ايرې (ول)، نوک و اووری، لری بری (ناکامی و کاميابی، شکست و غلبه)...

ستاينومونه، لکه: مات ګوډ ، وران ويجاړ، پوخ پتير، سپين سپېڅلی، پاک سپېڅلی، روغ رنځور، روغ نالا روغ، جوړ ناجوړ ، خپل پردی، دوست و دښمن، ښه او بد ، ښه او بده، اور و اوبه، کم و زيات ، لړو ډېر، سپورو پلی، ووړ و زوړ، کشر و مشر، شتمن و نشتمن، وړو پړ، لوی او کوشنی، لوی و ووړ، يا لوی واړه، واړه او زاړه... ؛ مينه لېوالتيا ، ناخوالې بخولې، اړه تړه (زدو بند)، اړ او تړاو ، کور ډوډۍ کالي ... ؛

کړنوميزې جوړې، لکه: راشه درشه، راکړه ورکړه، ناسته ولاړه، پوښتنه او غوښتنه، ښوونه او روزنه يا ښوونه روزنه، لوربينه، مننه او پېرزوينه، ليکنه څېړنه، څېړنه پلټنه، پو ښتنه ګرويږنه، غوښتنه وړاندېينه، شننه او څېرنه (تحليل و تجزيه. غوښتنه وړاندېينه، نمانځنه ستاينه، يادونه او نما نځنه...

کړ ولونه لکه: کښته پورته، لروبر یا لربر، مخکې روسته، وړاندې روسته، روسته وړاندې، لاندې باندې، لوړځوړ، ټيټ وپاس، نن پرون، نن سبا، دلته او هلته، هورې دورې، هلې دلې، لرې نژدې...؛ - نومځري، هغه دغه، دا او هغه، زه او ته، دی او هغه...← ۸-۲-۸.

۸-۲-۶: انګينوم + انګينوم = انګينوم، کله کله د رښتينو ځيز نومونو دريځ هم غوره کوي، لکه اخ وډب (لت وکوب)، درز و غپ، ډپ و غپ، او له رغښتي او مانيز پلوه نور راز راز غږ ونه.

د نورو ډولونو په څېر دلته هم ځينې بېلګې همپښبلې او همتولې (همقافيه او هموزنه) راتلای شي.

۸-۲-۷: شمېرنوم + شمېرنوم = شمېرنوم: زړې بېلګې، لکه: يوولس، دولس، پېنځلس، اوولس، اتلس، نولس، دو د برش، دوځلوېښت... دلته لومړی شمېره د دويم ټاکنده نه، بلکې جوړه راځي، په نورو ټکو، جوړه ــ عطفېږي او دغه غبرګې شمېرې جوړه تړنګونه بلل کېږي؛ مانا يې دا چې په آره توګه: يوولس (يو+لس) او دود برش (دوه+د برش) دي. هر ګوره دوه سوه، درې سوه...بيا په ← ټاکنده تړنګونو (۸-۳)، يا هم جوتغونډونو (۹-۱) کې راځي.

۸-۲-۸: نومځری + نومځری = څیزنوم، لکه: (هغه دغه) چې پارسي انډول يې (آن و این) راځي، په نورو ټکو، هغه څه چې هلته او دلته پېښېږي ؛ منشي احمدجان يوه ادبي ټوټه يا نا پېيلی شعر همداسې نومولی دی؛ (دا هغه = این وآن)، هم ور ته څیزنوم رغوي چې د هرې پېښې او سکالو لپاره کارول کېدای شي. همداسې وگړ نومځري او بیا غښتلي هغه هم لړو ډېرې څيز نوميز جوړه ترنگونه را منځته کوي، لکه ( زه ته) له څو ډوله اوډون سره، په دې پېیلي متل یا وراشه کې:

که (زه زه) شم او (ته ته) شې، نه به زه یم، نه به ته،

که زه ته شم او ته زه شم، هم به ته يې هم به زه

یادښت: د جوړه ترنگونه او:← بیاځلي ترنگونو تر منځ یو لړ بېلگې گډې دي، که هغه هممهاله همتولې دي، همپښبلې او یا همسر غږې ، خو موږ يوازې مهمل ډول، له دغو ځانگړ تیا وو سره سره، بیا ځلي هغو ته پرېښوول او بې مهمله همتولي (هموزن)، همپښبلي (همقافيه) او همسر غږي مو چې له جوړه ترنگو سره بنسټیز اړاو تړاو لري ، همدلته راوا خپستل.

۸-۴-(۱): څیز نوم + څیز نوم (همسر غږي یاهمپښبلي) = څیز نوم، لکه:

چال چلند ، غل غدوی (دزد و راهزن)، کورکوډی، کور کوډه، لَوولُور، میاملا ، ننگ ونام، نام وننگ، پړانگ پیش

(ګربۀ وحشي)، خپل خپلوان، زنځير و زولانه، باغ و بڼ، تاو تريخوالى (غوروفښ يا منازعه)، ډول و ډبلى، ډا نګ ډبلې يا ډانګ ډبلۍ، کالي کودي، لوښي لرګي يا کا نېي کودي (اثاثيه، فرش وظرف)، خواو خاطر، کرکيله، کر کيل، کروکر ونده، کاروکرونده (کشت وکار، امور کشاورزی)، ستغې سپورې سپورې ستغې، سپورې سپکې، سپکې سپورې، ټپله تنبه، کوروکلى، کوراور (کورواور)، جم جکړ (بادو با ر ان)، ظلم و زور، زور وزياتى، غله دانه، ارګانه مرګانه (نان و نفقه؛ مواد خوراکه)، سود و سلم، غاړې غرونه، جرګې مرکې، مچ و ميږي، سپږې ورګې، سپږې ريچې، خوب و خيال، توند وتيزې، رمې اوګلې، دارودرمل، مال وشتمني (مالومنال)....

نوې بيلګې:

اړاو تړاو، اندو ژوند، اندوواند، ژوندو ژواک، خوندو ژوند، ورم و وراشه (پندونصيحت) يا (پندوحکمت)، لاره لېله، لاره رَوده (راه و روش)، ليک ليکانى، ليک لوست، واک ووس، هڅه وسه، ها ندوهڅه، وينه او مينه، مينه او مننه، غوښتنه وړاند يينه (عرضه وتقاضا)، برم وپرتم، کرو کرونده، کارو کارګر، اکروکر، اکر بکر (حال احوال)، کور-ډوډۍ- کالي...

۸-۴-(۲): ستاينوم+ ستاينوم (همپښېلي همتولي يا همسر غړي،) = ستاينوم، لکه : ارت وبيرت، جګ جوړ، کوته کريا به، پوخ پتير، توندو تورش، پوپنا ، تالا ترغا ، تالا ترغه يا تالا ترغی، تس نس، زوړ زپ (بوډا)، ژوندی ژړاند ، بې سرو بې ښکره، بې سروبې سرو ابښي (هو منند)، پوره سپوره، لنده وچه يا وچه لنده، سوی الوی، سپين سپېڅلی، ووړ و زوړ، زوړ وځوان

پر ځيزنوم اوښتې بېلګې، لکه: پيشپړانګ، غته غړنده (دسترګې ګاتې)، تپه تغره (نيستی و درمانده ګی زياد)...؛

همدا راز د دوو ځيز نومونو جوړه چې پر ستاينوم اوښتې ده، لکه: زنځيرو زولانه ، نورې بېلګې يې په ليکلړونو کې وړاندې شوې دي.

نوې بېلګې، لکه: توند وتېز، سم سيخ ، سم سهي، سم سيده، ښاغلی او منلی، زېږ زېبېنلی، ښايسته ښکلی، ګاڼلی پسوللی، وللی سپېڅلی، تېنګ و ترينګ، ترينګلی نڅوړ لی؛

دغه راز (ګران و هڅاند) سره هم جوړه کېدای شي او هغه هم په دې لاسوند چې د هڅاند (-د) يا نه ويل کېږي او يا هم پر غوږ همداسې لګي!

۸-۴-(۳): : کړول + کړول (همپښبلي) = کړول، لکه: اخوا دېخوا، لربريا لروبر، لرې نژدې، کښته پورته، دلته هلته؛ هلې دلې، هورې وورې...؛ يا په اړولې مانا، د ځيز نوم او ستاينوم په جاج، لکه: ټيټ و پاس، ارته بيرته (چاپلوسي)، لاندی باندی (تفاوت؛ کم وکاست)...

همداسې نورې ببلا بېلې بېلګې په اړوندو ډلو ټپلو او ليکلړونو او همدا راز ← بيا ځلي تړنګونوکې رامخته کېږي..

هرګوره د کار اسانۍ لپاره مو د جوړه تړنګونو ليکلړونه د دغو درو اړخو پر بنسټ نه، بلکې، لکه وار له مخه د رغنده پښنوييزو غړيو (نومو نو، کړولونو، انګينومونو...) له مخې، هغه هم له اتګونو ډلو څخه شپږو ته رالنډ کړل.

## ۸-۲: د جوړه تړنګونو ليکلړونه

۸-۲-۱ څيزنوم + څيزنوم (بشپړاند يا لازم و ملزوم) = څيزنوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اختروبرات | عيدوبرات |
| ارګانه مرګانه | نان ونفقه؛ مواد خوراکه |
| اندوژوند | انديشه و زنده گی |
| اندو واند | انديشه و خيال |

| ويي پوهــنه | جوړه تړنگونه |
|---|---|
| اوازې دروازې | اوازه و دروازه، افواه |
| اوازې انگازې | اوازه ها و واکنشها |
| ايرۍ ناندرۍ | گيله هاوگزاره ها |
| بده وبېرانه | حادثهٔ ناگوار و پرخساره |
| برخه بنډه | سهم وحصه |
| بنسټ و کونسټ | بيخ وبنياد |
| بنگ و بوزه | بنگ و بوزه، خراجي، بيجا خرچی |
| بوره بدنامه | مادريکه طفلش را سهواً زير بغل کرده وکشته باشد |
| پلاررومور | پدر و مادر، والدين |
| پوله پټی | کُردوپلوان؛پتی و پلوان؛زمينداری |
| تگ راتگ | رفت وآمد |
| توندوتېزي | تونډوتيز، شدت و حدت |
| ټيله تنبه | تيله و تنبه |
| چال چلند | سلوک،رفتار |
| جاج و مانا | معنا و مفهوم |
| خاورې ايرې | خاک و خاکستر |
| خاورې خځلې | خاک و خاشاک؛ خس وخاشاک |
| خاورې دوړې | گردوخاک |
| خپل خپلوان | قوم و قريب |

| ويي پوهنه | جوړه ترنګونه |
|---|---|
| خلي خاشاک | خس و خاشاک |
| خواري مزدوري | محنت وزحمت، کسب و کار |
| خوابنې خسر | خوشو و خسر، خسر خیلها |
| خوا (و) خاطر | (در) ذهن و خاطر |
| خوب وخوراک | خوروخواب |
| خور و ورور | خواهر وبرادر |
| خوله او زړه | دل و دهن |
| دروغ ودرب | دروغبافی |
| دېره اوجره | مهمان و مهمانداری |
| ډانګ ډبلې | فرش وظرف، اثاثیه |
| راشه درشه | رفت وآمد |
| راکړه ورکړه | دادوستد |
| زنځیر و زولانه | زنجیر و زولانه؛ در بندو زنجیر |
| ژوند وژواک | طرز زنده گی |
| سپږه وربږه | شبش وکیک؛ حشرات موی |
| سپورې سپکې | فحش و ناسزا، پوچ و رد |
| سپکې سپورې | همان |
| سپورې ستغې | همان |
| ستغې سپورې | همان |
| ستن وتار | (ابزاردوخت) |

| ويي پوهــنه | جوړه ترنگونه |
|---|---|
| سودوسلم | سودوسلم |
| سوکړک وسابه | خوراکه |
| سونډ و سپرکۍ | دارودرمان غنغنی |
| غاړې غرونه | کوه ودمن |
| غل غدوی | دزد و راهزن |
| غله دانه | غله جات و حبوبات |
| غم و درد | دردوغم |
| غوا خوسی | گاو وگوساله، مواشی |
| غوټه غوړاشه | دکمه وکاج؛ جهیزعروس |
| غورځې پرځې | جست و خیز |
| غوښې ډوډۍ | غذای مکلف |
| کاروبار | کاروبار، تجارت |
| کاروزیار | کاروکوشش |
| کالي کودي | فرش وظرف، اثاثیه |
| کاڼي کودي | همان |
| کر کیله | امور زراغتی ،کشت وکار (= کرکېل) |
| کور اور | خانه کاشانه؛ آل وعیال، فامیل |
| کورکوډله | همان |
| کورکوډۍ | همان |
| کوروکلی | قلعه وخانه |

| ويي پوهـنه | جوړه تړنګونه |
| --- | --- |
| کوروکهول | فاميل و خانواده |
| کولپ و کيلي | قفل و کليد |
| کونډه رنډه | زن بيوه و دوشيزۀ بيوه |
| ګټه وټه | نفع و سود |
| ګيلې ټاندرې | شکوه و شکايت (=ګيلې مانې) |
| لوروزوی | دختر و پسر |
| لوږه تنده | گرسنه گی و تشنه گی، ناداری |
| لوښي لرګي | اثاثيه، موبل |
| لو و لور | درو و خرمن و امور مربوطه آن |
| ليک و لوست | نوشت و خوان، سواد |
| ليک ليکاني | ارسال و مرسول، خط و کتابت |
| ليکنه څېړنه | نگارش و پژوهش |
| ليک ولوست | نوشت و خوان ، سواد |
| مخ و لاس | دست ورو |
| مرچ و مساله | مورچ ومساله (مصالح) |
| مورو پلار | مادروپدر |
| ميا ملا | ميا وملا ؛روحانيون |
| ناسته ولاړه | نشست وبرخاست |
| نام و ننګ | نام و ننگ |
| ننګ ونام | ننگ و نام |

| ويي پوهــنه | جوړه تړنګونه |
| --- | --- |
| وار پار | استقامت، استواری؛ حواس |
| واک و ځواک | اختیار و قدرت |
| واک ووس | همان |
| ونه بوټی | بوته و درخت |
| ونه غنه | خارو درخت |
| هاندو هڅه | سعی و تلاش،جد و جهد |
| هڅه وسه | همان |
| هلې ځلې | همان |

۸-۲-۲: څيزنوم+څيزنوم (بشپړاندهمانيز) = څيز نوم

| ويی | پارسي مانا |
| --- | --- |
| اړاو تړاو | بندوبست |
| اړه تړه | بندوبست؛ زدوبند |
| باغ و بڼ | باغ و بوستان |
| بنسټ وكونسټ | بيخ و بنياد |
| بيخ و بنسټ | همان |
| پلمه او بهانه | ليت و لعل |
| پوله بريد | مرزوسرحد ، حدوحصر |
| تورې تپې | غلط فهمي، غافلگيري |
| تيری زياتی | ظلم و تجاوز |

| ويي پوهنه | جوړه تړنگونه |
|---|---|
| ټگي برگي | چل وفريب |
| ټگي ټوري | همان |
| چم گاونډ | کوی وبرزن؛ گرد ونواح |
| ځوزاغزی | خاروخس |
| څوبارۍ دوبارۍ | جامه کوب و همانند |
| خاورې خځلې | خاک وخس |
| خواري بېوزلي | خواری و بېچاره گی |
| خواري غريبي | همان |
| خواری نيستی | همان |
| خوی بوی | خو و بو، عادت و خصلت |
| دارو درمان | دارو و درمان |
| دارو درمل | دارو ودرمان؛ تداوی، معالجه |
| داوه دنگله | دعوا و جنجال |
| دروغ (و) درب | راست و دروغ |
| دښت و بېديا | دشت و بيابان |
| دښت و ميره | همان |
| ډله ټپله | دار و دسته |
| زارۍ او جگۍ | عذر و زاری |
| زوروځواک | زور و نيرو |
| زيار و زحمت | جدوجهد |

| ويي پوهــنه | جوړه تړنګونه |
|---|---|
| ژبه بول | عهد و قول |
| ژبه ژمنه | همان |
| سپکه سپوره | بدورد |
| ستغې سپوره | همان |
| سخه رخه | کینه و عناد |
| سم وغر | کوه و دشت |
| سوله ستاره | صلح وآشتی |
| غاړې غرونه | کوه ودمن |
| غله دانه | غله و دانه؛ مواد خوراکه |
| غورځې پرځې | جست وخیز |
| کار و زیار | کاروکوشش |
| کاسه اوکونډۍ | دیگ و کاسه |
| کام وتبر | قوم و خویش |
| کام وکبلې | همان (سربند-پېښور) |
| کروکرنه | کشت وکار |
| کروکښت | کشت وکار |
| کښت وکار | همان |
| کندې کوندې | کندوکپر |
| کنډې کپرې | همان |
| کور اور | خانه و کاشانه |

| ويي پوهنه | جوړه ترنګونه |
|---|---|
| کور جونګړه | همان |
| کورکوډله | همان |
| کونډې رنډې | زن بیوه و دوشیزهٔ بیوه؛ بیوه و یتیم |
| ګټه وټه | نفع و سود |
| ګردودوړې | گردوغبار |
| ګړ بړ | غړوغوړ |
| ګړی بړی | خبرې اترې |
| لارلودن | سمت و سو |
| لاره رَوده | راه و روش |
| لاره لبله | همان |
| لاس و مرسته | دستگیری و معاونت |
| لوخې پوخې | تضرع؛ چاپلوسی |
| لوروپېرزو | لطف و مهربانی |
| لوری لودن | سمت و سو |
| لیدنه کتنه | دید و وادید |
| لیده کاته | همان |
| لیکنه څېړنه | پژوهش و نگارش |
| ماته ګوډه | کم وکاست |
| مرسته ملاتړ | همان |
| نیا نیکه | جده وجد |

| ويي پوهــنه | جوړه تړنګونه |
|---|---|
| ورانه ويجاړه | خراب و برباد |
| وسه واک | توان واختيار |
| واک و وسه | همان |
| وېره ترهه | ترس و بيم |
| هاندوهڅه | سعی وتلاش (= هپه دپه، منډه تړه) |

۸-۲-۳ ستاينوم +ستاينوم ( ټينګاري) = ستاينوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| ابغ نبغ | چشم پاره |
| بوره بدنامه | مادريکه طفلش راسهوأدرخواب زير بغل کرده، کشته باشد |
| بوره وراره | زنيکه طفل و برادرش مرده باشند |
| پاک سپيڅلی | پاک وصفا |
| تاندوتازه | همان |
| تاندوښېراز | سبزوخرم |
| تېرهېر | ګذشته و ازياد رفته |
| ټينګ و ترينګ | محکم و فشرده |
| جګ جوړ | کاملاً صحتمند |
| ځارځپلی | خواروزار، خوار و خسته |
| ځار زبېښلی | همان |

| ويې پوهــنه | جوړه ترڼگونه |
|---|---|
| خوار و ځار | همان |
| خوار و غريب | خوار و غريب |
| رټلی و نټلی | رانده و توبيخ شده |
| روغ جوړ | جور تيار، صحيح و سلامت |
| ړوند کوڼ | کوروکر |
| زار زهير | زار و زهير |
| زيړ زبېښلی | زرد و فشرده |
| سپک ورک | بي حيثيت |
| سپکه سپانده | همان |
| ستړی ستومان | زله و마نده |
| سم سيده | راست و مستقيم (=سم سيخ) |
| سورسپين | خوشرو |
| سور و زرغون | رنگين کمان |
| سوی الوی | سوخته و بريان |
| شوده بوله | بسيار لوده |
| شين و زرغون | سبز و خرم؛ قوس قزح |
| ښاغلی منلی | بسيار محترم |
| گردوپېر | چهار دور (=گرد چاپېر) |
| لنډ تنگ | بلکی ناقص |
| لوڅ بربنډ | لُخت وعريان |

| ويي پوهنه | جوړه تړنگونه |
|---|---|
| لوخ لغړ | همان |
| مات گوډ | معیوب |
| وچ کلک | به کلی سخت؛ خالص(عاید ، نفع) |
| وران ویجاړ | خراب و برباد |
| وږی تږی | بکلی فقیر و بیچاره |

۸-۲-۴ : کړول + کړول (بډمانیز) = کړول

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| اپلو دپ پلو | اینسو وآنسو |
| اخوا دېخوا | همان |
| اوس و روسته | آلان وپسان |
| پخوا او اوس | سابق و حالاً |
| پورې راوورې | اینسو و آنسو(- ی دریا ، سرک...) |
| ټیټ وپاس | ته و بالا ؛ تملق، دارو مدار |
| ټیټ وهسک | همان |
| چېرې ناچېرې | کجا کجا ، اینجا و آنجا |
| دلته هلته | اینجا وآنجا |
| دلې هلې | همان |
| دورې وورې | اینسو و آنسو |
| دېغاړه آغاړه | اینسو و آنسو(- ی دریا ، سرک...) |

| ويي پوهنه | جوړه تړنگونه |
| --- | --- |
| روسته وړاندې | پیش و پس |
| ړومبی روستی | همان |
| سبا بېگا | صبح و شام، پگاه و بېگاه |
| سږ پروسږ | امسال و پارسال |
| سهار و ماښام | صبح و شام |
| شا و مخ ته | پس و پیش |
| کښته پورته | پائین و بالا |
| کله ناکله | گاه و بیگاه |
| لاندې باندې | ته و بالا، زیر و زبر |
| لرو بر | بالا و پائین |
| لرې نژدې | دور و نزدیک |
| لنډو لر | نزدیک و دور |
| مخته روسته | پیش و پس |
| مخکې روسته | همان |
| مخ و شاته | پشت وروی |
| نن سبا | امروز و فردا |
| نن پرون | امروز و دیروز |
| وړاندې روسته | همان |
| هلته دلته | اینجا و آنجا |
| هلې دلې | همان |

| ويي پوهنه | جوړه ترنګونه |
|---|---|
| هورې دورې | همان |
| هورې ورورې | همان |
| يوپلو بل پلو | اينسو وآنسو |
| يوخوا بلخوا | همان |

۸-۲-۵ څيزنوم+څيزنوم (بله مانيز) = څيزنوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اورو اوبه | آب و آتش (متضاد) |
| پړانه وړانه | برد وباخت |
| پړه وړه | برد و باخت |
| تودې سړې | گرم وسرد |
| ژرنده او جومات | دير و مسجد |
| ساړه او غارمه | سردى و گرمى |
| سړې تودې | همان |
| شپه او ورځ | شبانه روز(شب وروز) |
| ښه و بد | نيک و بد ، خوب وزشت |
| غر و سمه | كوه و دمن |
| غم و ښادي | غم و شادى |
| لرى برى | ناكامى و كاميابى، شكست وغلبه |
| لوړې ځوړې | فرازوفرود |

| ويي پوهــنه | جوړه ترنګونه |
|---|---|
| لوږې تندې | فقر و تنگدستی |
| مخ وشا | پشت و روی |
| مرگ وژوند | مرگ و زنده گی (=مرگ وژواک) |
| نوې زړې | نو و کهنه؛ رویدادهای نو و کهنه |

۸-۲-۶ : ستاینوم + ستاینوم (بلهمانیز)= ستاینوم (څیزنوم).

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| پړوړ | غالب و مغلوب |
| تودسوړ | گرم و سرد (شدن) |
| توروسپین | سیاه و سفید |
| تورې تپې | غلط فهمي، غافلگیري |
| ټینگ وسست | سست و محکم |
| ټینگ و نری | تیره و آبگین |
| خپل وپردی | خویش و بیگانه |
| روغ رنځور | جور رنجور |
| زوروکمزور | قوي و ضعیف |
| زوړ وځوان | پیر و برنا |
| شاوخوا | دَوروبر (گرد و نواح) |
| شپه او ورځ | شب و روز (شبانه روز) |
| ښه و بد | زشت و زیبا |

| ويي پوهـنه | جوړه ترنګونه |
|---|---|
| کم و زيات | کم وبيش |
| مړوژوندی | مرده و زنده |
| وړېږ | غالب و مغلوب |

# ۸- ۳: ټاکنترنګونه (تعيني ترکيبونه)

Determinative compounds (Tatpuruṣa)

اورسوی، اور لړونی، بدیخور، کوروداني، ملاتړ، هڅتړ، سپین زر، کټمل، سرلیک، زرلښته، ژبپوهنه، ژبپوهاند، سبرونه، سرتېر، دوه ورګی...

دا راز ترنګونه په پښتو کې هم لکه جوړه هغه یوه ډېره ستره ټولی (کتګوری) جوړوي او پرخپل وار پوره ډېرزبري دي. دا هم د هېرولو نه ده چې له پښتوییز او مانیز پلوه یې ډېری برخه هم د بېلابېلو ← نومبېلنګونو (ستاینوم-، مانا نوم-، چارنوم، لوښنوم- او چارنوم بېلنګونو) ترښتي اندولونه ګرځي. پردې

سربېره يې له ستاينو متړنګونو سره بېلند ويه کرښه هم څه نا څه تتبړي!

په دغه لړ کې بيا علمي- فرهنګي نومونې (دانشواژه ها) چې زياتره تړښتي بڼې لري، يوه خورا لوړه سلنه رانغاړي. په يوه ټاکنتړنګ کې دوه وييونه سره يو له بله داسې يوځای شوي وي، چې يو د بل ټاکنه او جوتونه کوي، او په دې توګه يې تر خپلې واکمنۍ لاندې راوړي، د ساري په ډول په (سپين غر) کې روستی غړی يو پراخ او ټوليز مفهوم راخلی او مخنی هغه ټاکي. په دې ډول سپين غر له (تورغر)، (سورغر) ..سره توپير مومي، په بله وينا: څه، څنګه، څوک ؟ چا ؟ او دا راز نورو پوښتنو ته ځواب وايي او پر همدې بنسټ يې. پر بېلا بېلو ډلو ټپلو وېشلای شو.

## ۸-۳-۱: پېرن (حالتی) ټاکنتړنګونه:

په دې ټاکنتړنګو کې چې له دوو رغنده غړيو يې لومړی دا له دويم سره په يو نومپېر (اسمي حالت nominal case) کې را غلی وي، لکه: کړند پېر يا فاعلی حالت nominative، کړی پېر يا مفعولي حالت objective، لوښنپېر (آلي حالت-ins trumentative، تولپير(اضافي- مِلکي حالت possessive ، تونپېر يا مکاني حالت locative پېر (حالت) د يوه نوم (څيز

نوم، ستاينوم، شمېرنوم، نومځري) دگڼې (عدد)او نوږي (جنس) ترڅنگ له گرداني اړخونوڅخه گڼل کېږي. خوله آره يوه نحوي، او بيا غونډ له ييزه، غونډيزه او ترښتي ټولی (مقوله) ده پېر (حالت). په غونډله، غونډ او ترنگ کې د يوه نوم چار را ښيي چې کړند (فاعل) دی، کړی (مفعول) دی او داسې نور. پېر د خپل اغېز له مخې دوه ډوله دی: يو ناوښتی (غيرمغيّره) چې نوم ته بدلون نه ورکوي او بل اوښتی (مغيره) چې بدلون ورکوي، لکه لېمې منه وخوړه، د زرينې کور، زرمينې ته مې وويل او داسې نور. هرگوره يو لړ پښتو نومونه له آره ناوښتېدونکې دي او په يوگړې (مفرده) بڼه پر خپل اکر پاتېږي، لکه: (پيشو) پر (مورېک) ورودانگل، (زمر) د (انا) ليدو ته ولاړ...، خو ټاکند يا ديترمانر يا مو ديفاير (خپل، يو، دا...) يې اوښتی پېر را خپلوي.

پېر د يوه څيزنوم او اړوندو ټاکندو (ستاينوم، شمېرنوم او نومځري) سره دې پوښتنو ته ځواب وايي چې په غونډله، غونډ يا يوه نومترنگ (اسمي ترکيب) کې څه دنده لري، په نورو ټکو، کړنديزه (فاعلی) يا کړييزه (مفعولی)، لوښنيزه، توليزه (اضافی- ملکی)، بلنيزه (ندائيه)، تونيزه (مکانی)، پيليزه (منشايي)... دنده؟

پښتو له آرو اتګونو هندو اروپايي پېرونو څخه په پاسنيو دروګونو چاپېريالو کې په سمه سهي توګه ترڅلورو تېرى نه کوي چې يو يې هم د پښتو ځانتنى ← ابرګاتيف هغه دى.

دا چې په پښتو کې له درو څلورو رښتينو نومپېرونو څخه غړېږو ، مانا يې دا چې بې د وييکو له مرستې ملګرتيا يې زياتره نومونه اوښتوني پايلې، په نورو ټکو، د هغو پېرونو روستاړي راخپلوي او په همدې ځانګړتيا له ادا تې هغو توپير مومي او په آرو (تاريخي) پېرونو کې را ځي. تر کوم ځايه چې راته پته ده، روسي او نورې سلاوي ژبې له ببلا ببلو روستاړو سره ګرد زاړه هندو اروپايي هغه ښه ترا خو ندي ساتلي دي، او د پښتو پرخلاف ببلا ببل پدېژونه يې ببلا ببلې پايلې يا روستاړي رانبيي.

سمه سهي په دې مانا چې له درو پرته نور نومپېرونه د د غو ټولو دندو لپاره پېرنښې يا روستاړي نه لري، بلکې زياتره دوييکو (په، پر،د، له، سره،څخه...)، کړولونو او بشپړونو (متممونو) په مټ رامنځته کېږي او نو مېرل کېږي.

هسې خو په دوديزه توګه په غونډله پوهيز چاپېريال کې لر غوني اتګوني نوم پېرونه (حالات اسم) د چارو دندې پر بنسټ نومول کېږي. داسې چې که يو نوم د کړند (فاعل) چار ولري، پېر (حالت) ورسره يوځاى يادېږي. د ببلګې په توګه پوهاند

يمين (۸۳-۸۴) په پارسي ژبه کې د پېنځو نومپېرونو (حالت فاعلی، حالت مفعولی، حالت اضافی، حالت متممی یا پیشینه یی dative case) او (حالت ندائی) یادونه کوي او زیاتوي:

((حالت اسم بیان نقش آن است در ارتباط به واژه های دیگر جمله. اسم در زبان دری دارای پنج حالت است و آن در برخی از حالات دارای نشانهٔ مورفولوژیکی نمیبا شد)).

په پښتو نحوي چا پېریال کړند پېر، لنډکړی (مفعول بېواسطه accusative) پېر او بلن (ندائیه vocative) او اېرګاتیف پېر تر ډېره له روستاړو سره بشپړ ډول را ښرګندېږي، خو په غونډونو او ترنګونو کې بیا یوازې د لومړیو دوو ترښنګ، درېیم دا ← لو ښنپېر (آلي حالت in-strumentative) په یو لړ زړو او نویو بېلګو کې نومېرل کېږي. دغه لوښنومونه د پېر له پلوه له کړی پېر سره تړاو لري او تش د چار و مانا له پلوه ورسره توپیر برې.

نور نومپېرونه، لکه تولپېر د (د-) سربل، یایې د بلونج (پیاو ړی خج) په مټ رامنځته کېږي، ړومبی بېلګه یې لکه (د زمر کور) او دویمه بېلګه یې لکه (کابل ښار)؛ لر کړی پېر (حالت مفعول بالواسطه dative) د (ته) وستربل په مټ رښتیا ینه مو مي، د ساري په ډول: ما پلوشې ته قلم ورکړ، دلته پلو شه له (

-ې) پایلې سره دغه پېر راښیي چې اوښتی پېر یې بو لو. له نا اوښتی یا آرپېر سره انډول یې، لکه (شاګرد) په (ما شاګرد ته قلم ورکړ) غونډله کې.

همداسې پیلیز نومپېر (مفعول منه ablative) له (له-څخه) غبرګبل او یا یې له بلونج (پایلې) سره،لکه: زرین له (خپلې مور) څخه ډېر څه زده کړل، چې دلته څیزنوم (مور) له آر پېر سره راغلې، خو که د غبرګبل پر ځای تش سربل (له) وکارول شي، لکه له (خپلې موره)، نو ټاکنداو ټاکلی دواړه اوښتي پېرونه راخپلوي او همداسې (مفعول له) او بیا (ابرګاتیف) په نحوي چاپېریال اړه لري، نه په وییرغاونیز دې پورې.

دا دی، مونږ د ټاکنترنګو ډلبندي له څلورګونو (فاعلي، مفعولي آلي او اضافي) نومپېرونو او بېلابېلو کړسته‌و سره راپیلوو، او څېرمه ډولونه یې بیا د رغنده غړیو پر بنسټ پرمخ وړو (۳-پښویه ۹۲-۹۵، ۱۰۱).

۸-۳-۱-۱: کړندپېر (حالت فاعلی nominative ) سره له دې چې که څه هم زیاتره له تېر مهالکړ ستاینوم (صفت مفعولی)، یا یې ستې او لږو ډېر له (-اند والا کړ ستاینوم) سره رغېږي، خو مخینی غړی (نوم) یې بیا کړند پېر را خپلوي، په نورو ټکو، د اړوند کړن ترسره کوونکی (فاعل) راځي، او ترڼګ

يې هر ګوره بېچار (passive) يانې ستاينوم، لکه په دې روسته بېلګو کې:
مور زېږې يا مور زېږولي، غملړلي، غمځپلي، وير ځپلي، ويرنتلي، جلوهلي، اجل نيولي، لاسوهلي، لاس کښېښولي (دست نشانده)، نېز ځپلي، بېلتون ځپلي، پلارګټلي، ازار وهلي، خزانزمولړلي، يخوهلي، خداى ښېبلي، خداى وهلي، رسول شرمولي يا ځغلولي... .

۸-۳-۱-۲: کړې (مفعولي پېر objective)
دغلته هم که د ترنګ لومړي رغنده نوم له اړوندې کړستې يا نومکړستې سره مفعولي حالت لري، خو رغېدلى ترنګ چار وال (اکتيف) راځي، لکه: بدېخور، مېلمه پال، خداپال، دينپال، سرکښ؛ يا له (-ښود) او (-غود) کړستو سره، لکه: لارښود، کالښود (تقويم)، کتابښود، ليکښود، ليکلارښود ... او خرغود، مورغود، خورغود، دېوالغود (يو مرغه) يا يې همانيز (دېوالګرندى) او داسې نور.
په پښتو کې د کړنومونو او نومکړونو پرخلاف کړستې تش يو ټاکلى شمېر له نومونو سره ترنګونه رغوي او د پارسي هومره دودوالى نه لري، داسې چې هره کړسته دې له نوم سره يو ترنګ رامنځته کړاى شي. خو پارسي له هر يو وستوي ويي

يا نوم سره هره کړ ستنه ننبلولای او تړلای شي، لکه: -کن (کارکن)، - شکن (کارشکن)، -آلود (گل آلود)-آميز (گله آميز)، -آور (آشک آور)... او ورسره ورسره يې دا پښوييزه ساده گي چې نورېزو (جنسي)، پېر يزو (حالتي)... او ان گڼيزو (عددي) پايلو (-ه، -ی، -ي، -و) ته يې دومره اړتيا نه پېښېږي (د زياتو بېلگو لپاره پښتو ليکلار ښود ۸۷-۱۸۳).

په هره توگه، اړوندې رغاونې د کار اسانۍ لپاره په دا رو ستنه ډلو ټپلو ويشو:

۱) په کړستنه -کښ، لکه توركښ (جنگجو، سرباز)، خوار يکښ، چلم کښ، جاروکښ، تارکښ (عنکبوت)، چپه کښ (جا له وان)، مخکښ (پيشرو)، سرکښ (سرکش؛ پيشرو؛)، او نرکښ (بزکوهی)، زرکښ (زرا پستونکی-صميم).

نوې رغاونې يې، لکه: زيارکښ، سيندکښ (قاموس ليکونکی)... همدا راز، لکه پاس چې ورته نغوته و شوه، د ← لوښنومترنگونو په توگه، لکه: تيرکښ (تيرکش)، تاوکښ (بخارکش)، درونکښ (جرثقيل)، اوبکښ (واټرپمپ).

دوست شينواري په ژبپانگه (۵۴) کې (بلکښ) د کندهاري گړدود او شعري بېلگوله مخې د (په پرديو متکي، پرد يپال، هغه څوک چې خپل او خپلوان پرېږدي او په پرديو تکيه

کوي) راماناکړی اوبډمانیز (خپلکښ) یې هم ورسره یاد کړی دی:

داخپل ځان کړه توريې خاوري
کینه وکاږه بلکښه(احمد شاه بابا)
اوسهي عقل دهغه جنون بلکښ کړ
چي نسبت د جهالت کاوحکیم ته (سعید)

۲) کړسته (-خور) بیاتر بلي هري کړستي ډېر زېږې ده او په ولس کې ښا یسته ګڼې بېلګې لري، لکه: سړیخور، مردارخور، پاکخور، ډوډیخور، سپورخور، ډېرخور (چي سپورخورشي، ډېرخور شي)، بډیخور، رشوت خور، سودخور، زیاتي خور، میراث خور، اموخته خور (:میراث خور ښه دی، که اموخته خور؟)، خیرات خور، ټوکخور یا توکړه خور، غمخور، بادخور، حرام- خور، سوکړکخور، شوتل خور، پلوخور، تیارخور، تیخور-ی، زړه خور-ی، ځانخور-ی...
نویزونه، لکه: نړیخور، وابښه خور، وښخور، وښوری یا ګیا خور، غوښخور، سوګندخور چي ولسي انډول یې قسمخور وار له مخه شتون لرلی دی.

(۳) په کړسته (پال-) چې که په (و) ګړنۍ پښتو کې يې کومه بېلګه نيمه، لکه مېلمه پال، خدايپال پيدا کېږي، خو نوې او بيا پرتليزې رغاونې يې پرلپسې مخ پرړه پرېدو دي. داسې چې بېلګې يې ښايي له شومره ييز پلوه له (-خور) هغوسره سيالي وکړای شي، لکه:

هېوادپال، بنسټپال، دودپال، څېړنپال، وګړ پال، ټبرپال، توکمپال، نژاد پال، سمتپال، سيمه پال، ټولنپال، زوړ پال (زاړه پال)، لرغونپال، ولسپال، سمونپال، دينپال، ځانپال، خپلپال، پرديپال، ازاديپال (وګړي، غورځنګ)، حق پال، رښتيا پال، بېلتون پال، مړپال، ژونديپال....

په کړ نومسته (زېږ-)، لکه مور زېږی (مادرزاد)، نوزېږی؛ مورېژي يا مرېژي (سپين تنې) چې د نوزېږي په تړاو د کابلي (شب شش) غونډې دود دی، هم له آره ورته ستاينوميزه رغاونه اټکلېږي.

(۴) په کړسته (وړ-)، لکه: مينه وړی، قاروړی، نيزوړی يا شاوړی، بادوړی، اوبوړی، پوروړی، نوموړ يا نوموړی (نامبرده، نامور)، بدوړ (مضر)..

۵) په غځېدلې کړسته (-پلوري-)، نوې بېلګې، لکه: ځانپلوری، هېوادپلوری، ليکي پلوری (کتابفروش)....

۶) په نالېږنده کړسته (گرځ-) د (خواگرځی) او (ورځ گرځی) (بدمرغه)، لاسگرځی(دستگردان)، پرمخبېلگه ، لکه: بیابانگرځی، غرگرځی؛ پوځي بولي (شاگرځ) هم ورته رغا ونه ده چې گرداني پایله (ئ) ځنې غورځول شوې ده.....

۷) له پارسي آرې وسمهالې کړستې (-ساز) سره، لکه: غابښ ساز، دورانساز، سات ساز...

۸) په نالېږنده کړسته (یون-) ، لکه::پرمخیونی، تشیالیونی یا کیهان یونی (فضانورد)، لاریونی، پلیونی (پیرو)؛ همدا راز له ځینو بېلښتي ستاینومونو سره د نورو نالېږندو کړ ستو، لکه (تل-) په ملتیا ، پرمختلونی، پر مخیونی، پرشا تلونی.

۹) په کړسته (سات-) د (خواله ساتی (رازدار، همراز) پر بېلگه: ځانساتی (محتاط ) د ځانساتوني تر ځنگ، سوله ساتی؛ (تودساتی) بیا د ترموز په مانا یو← لوښنوم دی.

۱۰) له کړنوم او په دې لړ کې له وسمهالکړ ستاینوم (صفت فاعلی) روستاړو (-ونکی-وونی، -ونی)، لکه: لاربښوونکی، ځان ساتونکی، ځانوژونکی، ناموس ژغورونکی، ځان ځار ونې، ځان ساتونی، غواروونی (یوخوځنده)، مړولونی (مرده شوی) غوړ ایښونی... ؛

۱۱) له (-آند) ښنديزې کړستې سره، لکه زړه سواند، نوماند او پر همدغو مخبېلګو رغېدلي نويزونه:
ويرژړاند (سوګوار، ماتمزده)، وير خپاند، مرګخپاند (= مړ ځپن)، ويرسهاند (متحمل سوګ و ماتم)، ځانژړاند (ګريان به حال خود، خودخواه)، وسپنسهاند (بلعنده و ګوارندهٔ آهن)؛ همدا راز پوهاند چارنوميز کړنوم د ناخپلواک ګړ په توګه، هغه هم د (پټپوهاند) پر ببېلګه، لکه په پوهنيزو نومونو (ژبپوهاند، ادبپوهاند، لرغونپوهاند...) کې، چې هرګوره، د ازاد ګړ ويي (استاد) په توګه دغه کړ ستاينوم والا ببېلګې په ← تولترنګونو کې راځي)؛ خو بلونج (بديل) دا يې، لکه:
ځمکپېژاند (زمين شناس، ژيولوژپست)، افغانپېژاند، خو شال پېژاند... په هر ډول په همدې (کړی پېر) ترنګونو کې راځي، ځکه (-پېژاند) مټې په همدې نن سباکې د (شناسا، آشنا) د ناپېژاند تر څنګ د سېمانتېزم دريځ راخپل کړی، کټ مټ، لکه (نوماند) چې آره مانا (نامدار) يې پر (نا مزد، کاند يد) ته راغځېدلې، يا ګړ سره راوښتې ده.
۱۱) له تېرمهال کړستاينوم (صفت مفعولي) سره چې که له کړ ند ځيزنوم (اسم فاعل) سره مل شي، کړند پېرى ترنګ (لکه ازار وهلی) رامنځته کوي، او که، له کړي ځيزنوم (اسم

مفعول) سره يوځای شي، کړی پېړی تړنک (لکه ازار ګټلی-
له (ازارګټونکی) جاج سره رغوي.

نورې کړی پېړې بېلګې، لکه:

لاسترلي، لاسنيولی، پښه نيولی، خوله ګنډلی، سرترلی،
سرخر يلی، رېږخريلی، (...) شلېدلي (ښځينه ستاينوم)، پر
توګ اېستلی، پز پرېکړی، سر پرېکړی، سرخوړلی، سرو
هلی- بر وهلی،: جنګ ځپلی، نېز- يا سېلاو ځپلی، زلزله يا
رېږده ځپلی، وچکالۍ ځپلی يا سوکړه ځپلی، بيلتون ځپلی،
تاريخ ځپلی، نازلوبولی، بډ وهلی (بېلودی، چمتو، لمغوټه)،
ځانسپارلی، سر سپارلی، سا نيولی، پښه نيولی، سپمولی؛
سپمولي سپوخوړلي (متل)...؛

همداسې پزپرېکړی، سر پرېکړی، پاتوړی (وارث)، يا يې
لنډې بڼې، لکه: سر غوڅ، ځانګغوڅ او داسې نورې هم در
واخله.

د کړی پېر ټاکنتړنګو په لړ کې د داسې يوې نيمې کړستې هم
څرک لګولای شو چې يوه يوه بېلګه ورسره تړاو ولري، لکه:

۱۲) په (-بانی)، لکه په کتبانې (کتاوبدونکي) کې چې د
(بڼل) کړسته ده؛ په څرخبانې (نځاګر) کې بنايي، (-بان) هم د
کوم ارکاييک يا هېستوريک کړ پا تشونې اوسي او په ډېر
لږ کېدون له نومروستاړي (-بان) يا (-وان سره) تړاو ولري!

۱۳) په کړسته ځاڼ- چې آره یې کړولی (فعلي ریښه) برېښي او سم له لاسه یې د ترښتي رغاونو بېلګې په لاس کې لرو او ښايي بېلښتي هغه یې هم وموندل شي، ترنګونه یې، لکه: وربيځانی د وربيخاندی او وربيچن ترخنګ، بور ځاڼ يا بور ځانی (میوه چین)... چې په پرتلیز ډول ترې انګورځانی، ګلځانی، پومبه ځانی او داسې نور ترنګونه هم جوړیدای شي.

په کړسته -وړ-، لکه پوروړی، قاروړی، پناوړی... ؛ هر ګوره مینه وړی، پیاوړی، خوبوړی، اوبوړی، نبزوړی... په کړند پېر بېلګو کې راځي.

۱۵) په کړ ستهه (ښود -)، لکه: لارښود، کالښود (تقویم)، کتا ښود، لیکښود، ځان ښود، لیکلارښود ....

۱۶) په کړسته (غود -)، دپوالغود (یو مرغه، له ړتد (دپوالګر ندی) هممانیزسره)، خرغود، مور (...)، خور (...)....

- په کړسته (یون-)، پرمخیونی، پلیونی، لاریونی (راهرو؛ راه پیما) چې دویمه مانایې (لاریون کوونکی) راځي؛ په نورو ټکو، دغلته (یون) د کړستې نه، بلکې د نوم په توګه راغلی.

- په کړسته (وه-)، لاروهونی (راهرو؛ راهزن)، جبب وهونی، یا په (تل-) پرمختلونی، پرشاتلونی او نور.

(-چار)، هم که اوس يو خپلواک ګړ(ويی) دی، خو کېدای شي، له آره يوه کړسته وي، لکه: نمنځ چار(عابد)، بري چار (بريالی)، خپل چار-ی (= خپلچاروکی)...او که آره يې کړسته نه وي، خو بيا هم کړی پېر(مفعولی) يې له پوښتنې سره نه مخامخېږي.

يادښت

په پښتو وييرغاونه کې د پارسي او نورو نژدې خپلوانو ژبو کې په ټوليزه توګه تېر مهالکړ ستنه برخه اخلي، نه ناتېر مهاله، او يو ګوتشمېر بېدودې بېلګې هم مخې ته راځي. په دې لړ کې زموږ د پلټنې له مخې، خوړ-√يوازېنی ستنه ده چې د ښا يسته ډېرو کړ بېلنګونو يا کړ نومونو په رغاونه کې د وسمهالې انډولې (خوړ-√) ځايناستې کېږي، لکه:

خوړونکی، خوړنه، خوړونی، خړونی، ، خوړون، خوړنګ، خوړانه، خوړه... ياد شوي اخځ له مخې (-خواړی-) په (ډېر خواړی) ترنګ کې چې د (ډېرخوړ-ی) پر ځای کوم شاعر کارولی دی، د دغو رغاونو ځو بېلګې په شعر کې وړاندې کوو:

د پردي مال په خوړنه

د خپل مال مشابهت که

مرحمت به ولې يار پر رقيب نه که

دا په دا، پر ښبتن ګران وي سپی

حنان يې په يوه بل بيت کې همانيز له دې هېښنده رغښت سره هم راوړی دی:

د پر احتياط ځنې کوه ميرزا حنانه
رقيبان يې په معنا سپي دي خروړي

(وييزرمه ۹۲، ۹۵)

بله وسمهالي کړ نومستنه (غواړ-۷) په بلاغواړی (ماجر أجو) ترنګ کې ګورو:

هغې زانې بلا غواړې، ناترساني
دا دشوارې پر سرواخېستې اسانې
چې له آسه د کوهي پرغاړه کوز شو
بلاغواړی زړه يې پوه پر بل رموز شو
ولې هلته يو رقيب د ده همغاړی
ناست د دېو غوندې بدشکله بلاغواړی

(:د لرغونې شاعرۍ ګړنې[۱۴])

(غواړونی) د (غوښتونی-غوښتونکی) پرځای له ورته نو مستهې ښخه دويمه ببلښتي ببلګه هم په زړه پورې ده، لکه:

ويې واخله داپړونی
د تانه وو څوک غواړونی
چې د تا غواړونی زه شوم

د پړونې دې هم زه شوم
(ويېزېرمه ۱۵۰)

دربيمه وسمهالکړسته (ګور-) په کوزګوری (شرمنده، (سر آفګنده)، د حميد په نامي (ترکيب بند) کې کارول شوې ده. د دې لړۍ څلورمه بېلګه (بوز-√) ده پق په ډګه بوز (ګاينده) ګنه بوز (شخص پخته وجرار) کې سهي کولای شو، دغلته لومړۍ بېلګه ښايي، د (سپکاوي) په موخه رامنځته شوې وي!

۸-۳-۳: لوښنپېر(حالت اسم آله instrumentative)

لکه وار له مخه يادونه وشوه، د پښتو پېرنو (حالتی) تاکنتړ نګونو په لړ کې د کړندپېر (حالت فاعلی) او کړي پېر (حالت مفعولي) ترڅنګ د لوښنپېر څرک هم په يوشمېر رغاونو کې لګولای شو. دلته له يوه څيزنوم سره يوه کړ ستنه يا کړنوم يو تړښتي رامنځته کوي.

داهم اړينه نه ده چې اړوند مخينی نوموال غړی دې اله ماله يو ساده يا بېلښتي لوښنوم (اسم آله)اوسي.

په دې توګه له بېلابېلو لوښنومونو او ملو کړستو سره د اړوندو تړنګونو ډولونه وړاندې کوو.

۸-۳-۳-۱-وونی، -نی) کړنومستهو چې← د بېلبنتي لوبنو مونو له دودو روستاړو ثخه بلل کېږي، له ځینو ځیز نومونو سره نوي (پرتلیز) تړبنتي هغه هم رامنځته کړي اوکوي یې، لکه د اورلړوني، سرتړوني، مچشړوني، لاسکونی (آستینچهٔ نان کنی)... پر مخبېلګو: لاسولونې (دستشویه)، لاسلوبوونی (بازیچه؛ آلهٔ دست)....

۸-۳-۳-۲: په کړستهه -کبن، د (تیرکبن) پر مخبېلګه نوې رغاونې: وسپنکبن (آهن ربا)، اوبکبن (واټرپمپ)، درونکبن (جرثقیل)، تاوکبن (بخارکش).

۸-۳-۳-۳: په کړستهه (شړ-)، لکه مچشړ (مګسران) د مچشړ وني او مچوژوني ترځنګ.

۸-۳-۳-۴: په کړستهه (لوش-)، لکه غوا لوشه (غالوشه).

۸-۳-۳-۵: په کړستهه (اوبنت-) یا (وابنت-)، لکه ځنګوابنتی. ووبپاڼه (وبېسایت) ناستدړه (څوکۍ)، کوناستی (چوکی بازو دار کودک).

۸-۳-۳-۶: په کړستهه (نوس-) چې د (وېږد-) په څېره د (نیس-) غځېدلې یا اوړېدلې بڼه ده، لکه اورنوسی؛ په (نیو-) اندول یې لکه: نوک نیوونی یا نیونی د نوک تراش ترځنګ.

۸-۳-۳-۷: په کړستهه (سات-)، لکه تود ساتی (ترموز) چې د (کړی پېري (خواله ساتی) پر مخبېلګه رغول شوی دی.

۸-۳-۳-۸: په ارکاییکه کړسته (وست-)، لکه ملاوستو (کمر ند لته یی)، یا یې په اړوند کړ نوم (وستن- ، لکه ملا وستنی.
۸-۳-۳-۹: په کړسته (پېل-)، لکه لاسپېلې چې هممانیز (لا سماغو) یې هم ښایي، د (اغوند-) کړستې له ارکاییکې بڼې آره اخېستې وي!
۸-۳-۳-۱۰: په کړسته (ټومب-)، لکه: غاښ ټومبونی (ټو مبنی)، غوږ ټومبونی (ټومبنی)....
۸-۳-۳-۱۱: په خرخشنه کړسته (مېچ-) یو لړ نویزونه رامنځته شوي، خرخشنوالی یې په دې کې دی چې که له (مېچل) سره تړاو ولرلای شي، ښه ترښه، که نه، د ازاد ګړ (ویی) په توګه هسې یو تولتړنګ ګڼل کېږي او لوښنومېبر یې هم له خر خشې سره مخا مخېږي. بېلګې یې لکه:
اور یا مېچ (باران سنج)، تودمېچ (ګرماسنج)، فشار مېچ (فشارسنج، اندیکاتور)، واټن مېچ (مسافت سنج)، لید مېچ (دید سنج او پتومتر)، نغوږمېچ (شنواسنج، ادیومتر)، سږ مېچ (ریه سنج matometer pneu)....
۸-۳-۳-۱۲: په کړسته ( -خور)، لکه وسپنخوره (موریانه)
۸-۳-۳-۱۳: د (ابېښ-) په غځېدلې وسمهاله سته (وېږد -)، لکه: سروېږدی (بالش)، څنګوېږدی (متکأ) له (څنګوابښ، څنګوبښی) هممانیزونو سره.

۸-۳-۴: تولپېر (حالت اضافی - ملک- genetive pos ses sive) د تولتړنګ لومړی غړی (تول) مو د (ملکیت) په مانا راخېستی چې پق د څو ماناوو په ترخ کې ورکښلې او موړ يې پر بنسټ (تولنومځری= ضمیرملکی) هم رغولی دی؛ دا چې په ترخ کې (تول) د (ملکیت) ترځنګ د (اضا فت) د انډول په توګه هم کاروو، لاسو ندیې ورته مانیزوالی دی.
همداسې (تولنوم) د دودیز انډول (مضاف) او (توللی) يې د ورسره تړلي (مضاف) هغه درواخله.
په هرډول، تولتړنګونه هغه تړنګونه دي چې دواړه رغنده غړي يې سره د ← خپلواکوګړونو (وییونو، نومونو) په توګه یوځای کېږي. دا تړنګونه د وییکو (اداتو) په مټ او هغه هم د تولیز سربل (د-) چار له مخې په غونډلواو غونډونو کې تولنو مپېر راخپلوي.
خو په وییرغاونه، په نورو ټکو، ټاکنتړنګونو کې بیا هله ربنتیاینه مومي چې هغه خج له لومړي غړي دویم (تړللي) یا (مضاف) ته ولېږدېږي، لکه: ژبپوهنه، ژبپوهاند یا ژبپوه، پلار ګټلي (زوی ته هېڅ دي)، اناردره، نادرشاه کوټ، لید لوری، ژوندتوګه، ژوندلیک، پربکړه لیک، کابل ښار، کابل پوهنتون، شېرشاه مېنه، کور مېرمن...

له دې سره موږ دلته د ټاکنتړنګونو په تړاو همدغه روستی ډول د دوه رغندو نومونو او کړنومونو یا کړنومستهو او بیا يې د کارونځايونو له مخې پر ببلابېلو ډلو ټپلو وېشو:

(۱) په (- نه) روستاړي کړنوم (حاصل مصدر) چې په دې لړ کې (پوهنه) د (-لوجي) انډول په توګه یو ګڼ شمېر نوې علمي نومونې (دانشواژه ها) را نغاړي، ببلګې يې، لکه:

ژبپوهنه، ادبپوهه، ژوپوهنه، ساپوهنه، ټولنپوهنه، ځمکپو هنه (جغرافیه (زمین شناسی)، پوهنغونډ (دایرة المعارف)، سا پوهنه (سیکالوژي)، ژوپو هنه (زولوژي)، ساپوهنه (سیکالو ژي)، ژوپوهنه (زولوژي)، ځمکپوهنه (جغرافیا) او د توپیر لپاره، ځمکپېژندنه (جیالوجی)، چې د همدې پرتلې له مخې: کان پېژندنه (کا نی شناسی)، خوشال پېژندنه، افغان یا افغا نستان پېژ ندنه... وار له مخه را منځته شوي دي؛ (پوهنه) د لومړي رغنده توک په توګه هم راغلې، چې سم له لاسه يې پو هنغونډ (دایرة المعارف) ببلګه سهي کولای شو. (-پوهه) هم ورسره لړو ډېره همماني‌زه را دود شوې، خو د یوې پوهنې اړوندو څېرمه څانګو لپاره يې کار ونه کړه بربېنې، لکه د ژبپوهنې هغه چې يې لړو ډېر دود مو ندلی: آرپوهه، سپېڼپو هه، غړپوهه... یا د پښویې دوه ګونې څانګې: ګړپوهه (مورفولو ژي)، غونډله پوهه (نحو)، او داسې نور.

(۲) په کړستاينوم (پوهاند)، هغه هم د پټپوهاند پر مخبېلګه زغېدلې چارنوميزې پوهنيزې نومونې (دانشواژه ها)، چې هرګوره، دغلته پوهاند د يوه خپلواک ګړ (ويي) په توګه په پام کې نيول شوی، (او د ناخپلواک په توګه بيا په کړی پېر ترنګونو کې راغلی)، لکه:

پښتو پوهاند، ژبپوهاند، ادبپوهاند، ژوپوهاند (جانور شناس)، ژوند پوهاند (زيست شناس، بيالوجيست)، لرغو نپوهاند (باستانشناس)، توکمپوهاند (نژادشناس)، وګړ پوهاند (بشر شناس)، ټولنپوهاند (جامعه شناس)، سا پوهاند يا اروپوهاند (روانشناس)، بوټپوهاند (ګياه شناس، بوتا نيست)، وټپوهاند (اقتصاد دان)، شمېر پوهاند (رياضی دان)، پنځپوهاند (فزيکدان؛ دانشمند علوم طبيعي)... ؛

ځمکپېژاند، کانپېژاند، (معدن شناس، کانی شناس)، افغان پېژاند. بيا له هماغو نومونو سره تړاو لري چې په استثنايي لړه کي ډول د (-پوهنه) پرځای په (-پېژندنه) رغول شوې دي.

يادښت:

څنګه چې کړ نوميز روستاړی(-آند) يو ښنديز جاج ښندي، (پوهاند) هم په يووستوې بڼه او هم له اړوند نوم سره تر ستا ينوم (پوه) زيات پياوړی راځي. له څانګپوهيز (مسلکي) پلوه يې د اړوند څانګپوه د زياتې پوهې، کار، ازمېښت او

مخينې څرګندويي کوي، او (پوه) يې پر وړاندې د نوکارۍ او کم از مېښتی جاج ښندي.

(۳) له (-ليک) سره نور بېلابېل تولي يا اضافي ترنګونه د ← جوتغونډ (د تندي ليک) پر پرتليزه بېلګه را منځته شوي فرهنګي نويزونه (نيولوجېزمونه)، په دا روسته ډول دي لاسليک، سرليک (عنوان)، پاليک (پاورقی)، لمنليک (حاشيه)، بريدليک (سريزه)، نيوليک (فهرست مندرجات)، اخځليک (د ماخذو لست)، ليکلړ، انځورليک (ګراف)، نېټه ليک (کرونولوژي)، لښتليک (جدول، نمودار)، پرېکړه ليک (فيصله نامه، بريليک، قطعنامه)، پېښليک (تاريخ)، لار ليک (ګذرنامه)، دوبليک (قانونامه)، نومليک يا نوملړ (فهرست اسمأ)، لړليک يا ليکلړ (لېست)، پېژند ليک، ژوند ليک، سرليک، پاليک، تندي ليک، برخليک، ډبرليک (سنګ نبشته؛ لوح مزار)، سمو نليک... ؛

د (- ليک) غځېدلې بڼې، لکه: سرليکه (سر لوحه)، سرليکنه (سر مقاله)... او همدا راز د لومړي غړي په توګه، لکه په دې بېلګو کې: ليکلار (سبک نګارش)، ليکدود، ليکلړ (لست)، ليکپوهه (انشأ)، ليکلار، ليکدود؛ ليکپوهه (کتابشناسی، ليکي پلور (کتاب فروشی) چې سر چپه بڼه لوستليکی (کتاب درسی). يې هم له نويو رغاونو څخه ګڼل کېږي

ورځني دود تولتړنګونه له بېلابېلو پښنوييز چارونو او کارو نځايونو... .سره:

ځتمرۍ (مهرهٔ ګردن)، ملاغابنۍ (مهره ستون فقرات)، ملا بند، ملا پټۍ (کمربند)، کره کاڼۍ، زرکاڼۍ (محک)، زرپښ (زرګر)، زرپاڼه (زرورق)، کټبوڼ، کټپښه، کټ پړۍ، کټمل (خسک)، زاړنبوۍ (لته بوی)، خولخونده (میوه)، پښتو نخوا، غوړتاوۍ (سر زنش)، لاسنیوه لاسنیوَه (فا تحه: سوات)، لاسنیوۍ او کله لاسنیوه هم (دستګیری)، چرګ مرګو، نرګله (دنرینه اوښانو ګله)، ښځګله (د ښځینه اوښانو ګله: د پکتیا احمد زي او نورکوچیان)، ګلکځ (بیشهٔ ګل ساحل دریا؛ نام محل)، مېښ کټۍ، لېوکټۍ، زمرکټۍ؛ پرکټۍ (بچه اندر) هم د استاد رښتین پر اند د (پردۍ کټۍ) لنډیز دی... .همداسې په دغه تړاو لړو ډېر له پرتلې هم کار اخلو، لکه: پښه نیوۍ له (پښه نیولی)، سانیوۍ له (سانیولی) ځخه رغو لای شو، خو (مخنیوۍ) بیا له همدغو سره د همغږۍ له مخې رغوو.

(۴) هرګوره، بېلابېل تولتړنګونه ورته رغاونو ته لاره پرا نېزي، لکه واخلې دا لاندې نویزونه: لاریون، یوندود (رسم ګذشت، پربله)، ژونددود، ژبدود (دستور)، انددود، اند توګه، لیدتوګه، خبرندود، ګړدود (ګویش، ګونه، لهجه)،

کار دود ، اورلوبه، وزلوبه، اور لوبه، ښکلوبه، پای لوبه، نیم پایلوبه، لو بډله (تیم ورزشی)، سرټکی، پیلټکی، پا یټکی منځټکی، اوړونټکی (نقطهٔ چرخش-عطف) ژوند جګړه (تنا زع للبقا ، مبارزه)، ګو تنیوی (اعتراض)، لاسوهنه (مداخله)، لاسباړه (حق الزحمه، دستمزد ، اجوره)، لړمزی (د مرغلرو یا تسبو مزی ګړدود (ګونه، ګویش، لهجه)، ژبدود (= پښویه، ګرامر)، ژوند دود ، ټینګار ټولی (ګروه مقاومت)، ګلڅانګه، ګلبوټی، ګل ونه،ګلپاڼه، ګړۍ ستن (عقرب ساعت)، غا ښو لۍ، کړ ولۍ (فعلي ریښه)، کړ سټه، نومسټه، کړنوم، نو مکړ...

په (لاناوې) کې چې د (وربندار) هممانیز بلل کېږي، (لا) په څرګنده د (لالا) لنډون دی او په دې توګه په تولټرنګونو کې راځي او ښايي دغسې بېلګې نورې هم ومو ندلای شو.

(۵) ورتنی یا تشبیهي، کنایی مجازي او هممهاله ګړنیز (ایدیمی) تولټرنګونه

دغلته رغنده غړي سره د تشبیهي، کنایي او مجازي اړیکو له مخې یو ترښتي (ترکیبي) ځیزنوم منځته راوړي چې ځینې بېلګې یې له ستاینوم- او جوړه ټرنګوسره ټکر خوره کېږي، ټولیزې بېلګې، لکه:

وري غوږ (نبات گوش بره)، ماما غوږ سبزی خودرو)، غرڅه گل (نوعی بوتۀ کوهی)، خرغوږ (یو بوټی)، خرډگ (سپک ورک)، پاتو څنهه (بتۀ سیاو شان)، جوړکانی (د سولې تبړه)، انځرگل (گل انجیر؛ کم نما، نادر)، سپلمۍ گل (بوتۀ آهک؛ ظاهر فریب)- یو څه یا څوک چې دغو گلونو ته ورته وي.

اباسین، مرغی پل، مرغۍ تول (یو راز سابه)، څمڅه منگور (کفچه مار)، غمچینمار، ډانگ لکۍ (بلبل؛ داینسور)، غر څپه (لویه څپه)، کورت کانی (سنگ چونه)، ملاچرگک، گو ډی چرگ، الیگډی، سپېرکونډکه، سر پوټکه کوکوپښ (ملا گگک او نور بېلبنتي نومونهٔ)، اوښغویی (زرافه، اوښمرغی (شترمرغ)، پلنغوږی (پیل) گلغونډۍ، گلکڅ... ؛ خروله (بید روسی، ابلیتس)، زرلښته، زرڅانگه (نامهای زنانه)، زرغون گلی، زېړگلی، شینگلی، ډنډگلی (نیلوفر)، سراوړه (ازدحام، نوعی بازی کودکان)، سرڅنهه یا (پالنه، رازنه)، سراوره (شیر ینی روزهفتم عروس)... ؛

د ځاینومو په توگه، لکه: سپینه غبرگه (د زابل اړونده ولسوالي)، لنډه بوچ (د کامې ولسوالۍ یو کلی. بلاغونډ (د نسوا رو کدوړی)، بنگړی مات، منگی مات، گړی مات (د نجونو لوبې)، نظر مات، اوبډوب (تحت البحری، اوربل (فایر!)، اور مړ (نام قومی؛ چراغ کش)، پلغټ (رفتار تیز)، سپلغټ (د

سپي غول)، پښه ارته (پایوازی)، روډه مست (د ډوډۍ درو بزګر)، سیندلاهو یا اوبسپی (سګ لاهو، سګ آبی)، الوا بوټی (یو بوټی)، ثمخکی (بمبیرک)، نرلوخ (ګل لخ)، سپار تاک (چیله تاک)، سپېرلم (روباه خاکی)، سپکه سپانده (سپک ورک)، سپېرخوټ (یو راز بوټی)، توره پاڼه (یو بوټی)، چټک تسمه (کمربند)، چټک پیاوه (تاودی، پیاوه)...؛

(۶) په نوم او نومستړه (وند، -وند)، لکه: غړوندی، پښوندی یا پښندی، سروندی (ریسمان دهن بند مشک وغیره)، یاله پارسۍ سره ګډ ویی (پیوند)؛ نوې بېلګې يې، لکه: پسوند (روستاړی)، پیشوند (مختاړی)، میانوند (منځتاړی).

۷) په کمپښې یا نادره توګه د بېلنګ ((بېواک)) یا تړنګ (کور واکي (مېرمن) پر بېلګه رغېدلي تړنګونه، لکه: خپلواک، بلواک، ټولواک، زورواک، چارواک، کورواک، یا بې غځېدلي رغاونې: کورواکي (اتونومی)، ټولواکمن (ټولو اکمنه، ټولواکمني).

(۸) د (کټمل) پر بېلګه: پوهنمل، ولسمل، سوله مل، سنګر مل، روغتیامل، زیارمل، کارمل، خوارمل...

۹) د (پرهرپاڼه، ګزکپانه، ولېپانه، توره پاڼه...) پر بېلګه: ګلپاڼه، پېژندپاڼه، پوښتنپاڼه، شپېپاڼه، خبرپاڼه، کور پاڼه، سرپاڼه، ووبپاڼه یا وېبپاڼه (وبسایت)....

۱۰) ځاينومتړنګونه

د مېله ځای، دمه ځای او اېله ځای... پر بېلګه: استوګنځای، مېشتځای او د (اجلځی) پر بېلګه: استوګنځی، پخلنځی (پخليځی، پخلنځ)، ښوونځی، پوهنځی، چارځی (متصدی)، ناستځی یا ناستوځی، تمځی (یا تمځای)، کارځی، ونډېځی یا کوتځی (د حلالې ځای، قصابخانه، مسلخ)، لوبځی (ووړ لوبغالی، لکه د ماشومانو هغه)، روزنځی، پالنځی، زېرمه ځی (ډېپو، تحويلخانه)، درملځی (د درملو ډېپو)، زېږنځی، زېږځی یا غږ زېږځی، وتوځی (مخرج)...؛

یا (-خونه) د دويم رغنده غړي په توګه، لکه: ناستخونه، خوبخونه، کارخونه، چاپخونه، لوستخونه، کتابخونه، مېلمه خونه، تمخو نه (انتظار خانه)...

زړې بېلګې: برمل (چاشت)، ترمل (شام)، لرمل (صبح)؛ په کوچمال (هنګام کوچ و رحلت) کې دويم غړی (-مال) بيا له اوسنې (مهال) سره نژدې برېښي.

په هره توګه، مخنۍ درې بېلګې دا راجوتوي، تر هغې وړا ندې چې پښتو د ورځې څلور ګوني وختونه په پارسي پلیو نۍ له اسلامي (نماز) سره تړاو ورکړي او (ماسپښين، ماز يګر، ماښام، ماسختن) راپور کاندې، خپل نږه انډولونه درلودل.

۱۱) له شمېرنوم سره ، لکه : درېګټ (یوه لوبه)، اتڅنډه (هشت ضلعی، مثمن) اتغر، دوه غابنی یا دوه غښی (څلور کلن غویی)، درې سکلی (درېکلن اوښ)، دوه ورګی (دوه کلن اوښ)، درېښبرلی یا درېورګی (څلورکلن پسه)، درې ښاخې یا درې ښاخې، دوه خلې (ښاخې ډولونه)، دوه خولې (یو راز بخې)، اوه څنډه (مسبع)، اووه غله (هفت ستاره)، پېنځ څنډه (پنج ضلعی)، پېنځګوټ (پنج ګوشه، پنتاګون)، شپږ تړ (پچیس، یو راز لوبه).

۱۲) کړولي (قیدی)،لکه: اسمان څک (آسمان خراش)، اور بس (اوربند)، لاس پورته (دست بالا!)، سرکښته، لاسلاندې، سرباندې، سرهوا ، سرپورته، سرکښته، کونه پورته (سر نګون).

د دې لپاره چې ټاکنتړنګونه (تعیینی ترکیبونه) موله ټولو پازو او ځانګړتیاوو سره په لنډ ډول پېژندلي اوسي، دلته یې یو څو بېلګې را اخلو چې په هغو کې لومړی رغنده غړی د دو یم ، یا دویم د لومړي لپاره یو څه ټاکي:

- اومه توکي، لکه : زرلښته، زرپاڼه، اوربشوبه (آبجو).

- مهال ، لکه : سباناری، شپېپاڼه، ورځ مزدوري، پسرلي ګل (یو وګړ نوم).

- چې لومړی توکی د دویم لپاره ځای ټاکي، لکه : اوبسپی، کورمېرمن، چمګاډی (تراموای)، اسمان کټ، ولېپانه.
- چې دویم لومړي ته ځانګړی شوی وي ، په نورو ټکو ، رو ستی د لومړي لپاره پر کار اچول کېږي، لکه : ټوپدړه (تختهٔ خیز)، ناستدړه (چوکی)، دمدړه (آله ییکه تنسته را هنگام بافتن ته و بالا میکنند ، لیکپانه، کوناستی (چوکی بازودار کودک)، پرهرپانه، گزکپانه، ژوندجګړه چې عربي انډول یې تنازع للبقأ راځي: خبرپانه، کورپانه، ووبپانه (وبسایت)....
- چې لومړی په دویم وازمېیل شي، لکه زرتله (ترازوی طلا یی)، زرکانی (محک)
- چې دویم له لومړي څخه یو څه رغوي، لکه چار نومترنګ: سره ولپېښ ( مسگر)، زرپېښ (زرگر....
افغان دښمن، هېواد دښمن، ولس دښمن، اوروژنه.
- چې لومړی د دویم لپاره د ترسره کولو وسیله ګرځي، لکه : لاسوهنه، ګوتنیونه، ګوتخنډنه، سترګلید ، غاښ چیچی .
- چې لومړی غړی د دویم زېږنده ګرځي، لکه : شاتمچی، ورېښم چینجی ؛ ګل ونه (کوکی ونه)، ګل وله، ګلخانګه ، ګلپانه، ګلبڼ، ګلباغچه، ګلکځ... چې پراضافي او تشبیهي چار سرېېره په دې لړۍ کې هم راتلای شي.

- چې دويم غړی د لومړي زېږنده وي، لکه کاڼي کرښه (النقش فی الحجر)، زرپاڼه (زرورق).
- چې لومړی د دويم لپاره ځای (ظرف) ګرځي، لکه: شپې تېر (جای شب ګذراندن)، ځای غلی (زچۀ بیمار و به جای افتاده)، ښار مېشت، زړه مېشت....
- چې دويم رغنده غړی د لومړي څرنګوالی او څومره والی ټاکي، لکه : اوريا مېچ (باران سنج)، تودمېچ (ګرما سنج)، فشارمېچ (فشارسنج، اندیکاتور)، واټن مېچ (مسافت سنج)، ليد مېچ (دید سنج اوپتومتر)، نغوږ مېچ (شنواسنج، ادیو متر)، سږمېچ (ریه سنج pneumato meter)... _ دغه بېلګې د پېر (حالت) له مخې له ← لوښنپېر سره تړاو لري.
لاسګاډی (زنبیل)، آسګاډی، خرګاډی، ځانګاډی (شخصي موټر)....
چې دويم د لومړي پر ضد کارول کېږي، لکه :مارجړی، مار مهره،
- يو غونډ يا کل ، چې دويم يې يو ټوک دی، لکه: ملا غاښی
- يو څه چې دويم ورته يو چوپړ پرځای کوي، لکه : ملا پټی.
- چې لومړی د دويم په چوپړ کې وي، لکه: اورګاډی، برېښنا ګاډی، زغرګاډی.

- چې دويم د لومړي د چوپړ لپاره ځانګړشوی وي، لکه. تول کانی، زرکانی، کره کانی....
- يو وګړی، چې د دويم غړي له مفهوم سره يو تداعي لري، لکه مېلمه سترګه چې (ماښام ستوري) ته ويل کېږي، ځکه د ميلمه د راتګ پر وخت راخيژي يا په بله وينا همدا وخت د مېلمه د راپېښېدلو کېدون شته.
- چې لومړی غړی ستاينوم وي او دويم څيزنوم او يو څيز نومترنګ رامنځته کوي، لکه: کږ ښانګه (چوګان)، کږدلی (جال عنکبوت)، کږوپلنی (باديان)، کږ لړمی (نوعی نقش خا مک دوزی)، کږ لېچ (زانوخم؛ کج ګردشی)، کږلېچی (کج ګردشی؛ کج دست)، کږوبی (عليل و پژمرده)، کږليکه (خط منحنی)، زېړ لرګی (زردچوبه)، شين سری (نوعی يار دهقا نک)، شين غاړی (نوعی پرندهٔ خاکی با طوق آبی)، شينګلی، شين غولانځی (پستان دردی بز و ګوسپند)، شين کڅ (سنګ رګداری که از آن تشله ميسازند) تورغړی (عضله، ما هيچه)، تورلمی (خفک؛ حيوان ګورکن)، پټ سترګی (شلند ديواری) او همداسې يو ګڼ شمېر ← څيزنوم شوي ستا ينو مترنګو نه...

يو څه، چې دويم غړی ستايي، په نورو ټکو،لومړی څيز نوم د دويم څيز نوم لپاره ستاينوم کېږي؛ هغه هم تر ډېره په مجازي

او تشبیهي مانا ، لکه : اباسین، غرڅپه (لویه څپه)، زرځانګه، زرلښته، خروله، زانګوکڅ، شاکڅ، شا ځلمی، شالیلا، شا کونډۍ (نوعی ناک خورد کوهی)، شاکاسه، شا غوټۍ (نوعی ګنجشک دشتی)، شاکوکۍ (نوعی بازی دختران)، شادرمبل (شخص کته و تنبل) ، شاکولنګه (یو راز لویه زانه: نوعی کلنګ کلان، که خورد آن را کرکۍ ګویند )، ډانګ لکۍ (بلبل؛ داینوسور)؛

پلار وطن ( پدر وطن ) په (( پلار وطن )) کې (وطن ) له ((پلار)) سره تشبیه شوی دی، یا هغه وطن چې پلار ته ورته دی یا د پلار غوندې ارزښت لري، ځینې یې په اړوند ← جوتغونډ (جبهۀ ملي پدروطن) کې په نا سمه توګه اضافي تړنګ انګیري او پر (پلار وطنه ملي جبهه )) نه، بلکې پر (د پلرني وطن ملي جبهه) ژباړي، که نه، پارسي به هم (...وطن پدر) کښلی وای!

همداسې یې (مور ملکه) پر (د ملکې مور) اړونه هم نا سمه ده، هغه د مېړه له مړینې سره میراثي ملکه وه، خو چې خپله لور (دویمه اېلیزابېته) یې ځایناستې کړه، (مورملکه، ) یې رسمي- قانوني ستاینوم وګرځېد او د ملکې (موروا لی) یې تش بیالوجیکي پاتې شو.

## ۸-۳:: د ټاکنترنگونو (تعيني ترکيبونو) ليکلړونه

### ۸-۳: کړندپېر (حالت فاعلی nominative)

#### ۸-۳-۱: څيز نوم + کړی ستاینوم = ستاینوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اجل نيولی | اجل گرفته |
| ازاروهلی | آزارزده، آزاردیده |
| اوبوړی | آب برده |
| بادوړی | باد برده، برباد |
| بېلتون ځپلی | فراق زده |
| پښه نيولی | پاگرفته، متوقف |
| پلار گټلي | اندوختهٔ پدر (مال و ثروت) |
| تاريخځپلی | تاریخ زده |
| جلوهلی | جل زده |
| خدای ببنلی | خدا بیا مرز، مغفور |
| خزانزمولی | خزان زده |
| سپوخوړلی | سگ خورده (سپمولی-سپوخوړلی) |
| سپيخوړلی | سگ گزیده |
| سترگو ليدلی | باچشم دیده شده |

| ويي پوهـنه | پاکنترنگونه |
|---|---|
| غمځپلی | غمزده |
| لاس تړلی | با دست یا دستهای بسته |
| لاس لیکلی | دستنویس |
| لاسنیولی | دست گرفته |
| مارچیچلی | مارگزیده |
| مورزېږی | مادرزاد (=مور زېږولی) |
| نېز ځپلی | سیلاب زده |
| ویر ځپلي | ماتمزده |
| ویرنتلی | همان |

۸-۳-۲: (کړی پېر ځیز نوم + کړنومستېه (پال-) = چارنوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| ازادیپال | آزادیخواه (وگړی، غو رځنگ) |
| بشرپال | بشردوست |
| بنستپال | بنیادگرا |
| بېلتونپال | تجزیه طلب، سپراتیست |
| پردیپال | بیگانه پرست |
| توکمپال | نژادپرست |
| توکمپال | نژاد پرست (= نژادپال) |
| تبرپال | قومگرا |

| ويي پوهــنه | پاکنتږنګونه |
| --- | --- |
| ټولنپال | جامعه گرا، سوسیالست |
| ځانپال | تن پرور |
| څېړنپال | سابق برترین لقب علمی (پښتوټولنه) |
| حقپال | حق پرست (تخلص) |
| خپلپال | خیشخور |
| خداپپال | خداپرست |
| دودپال | سنتگرا، عنعنه پرست |
| دینپال | متدین، دیندار |
| رښتیاپال | صداقت پرور، رُک وراست |
| زوړپال (زاړه پال) | کهنه پرست، گونه پیخ |
| ژوندیپال | زنده پرست |
| سمتپال | سمت پرست |
| سمونپال | اصلاح طلب، ریفورمیست |
| سیمه پال | محل پرست، سمت پرست |
| شاتګپال | عقبگرا، مرتجع |
| لرغونپال | قدامت پسند |
| مختګپال | ترقیخواه |
| مړپال | مرده پرست |
| ملتپال | ملت پرست، ملیگرا، نشنلست |
| نوپال | نوپرور، تجدد پسند |

| | |
|---|---|
| وګړپال (بشرپال) | مردمګرا ، بشردوست |
| هېوادپال | میهن پرست، وطندوست (=وطنپال) |

۸-۳-۲: (کړې پېر ښيز نوم + کړنومسته (خور-) = چارنوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| ارامخور | حرامخور |
| بډيخور | رشوتخور، رشوه خوار |
| پاکخور | پاک خوار؛ پاک نفس |
| پلوخور | پلوخور |
| پيتيخور | دالخور |
| پيسه خور | رشوتخور |
| توتخور | توت خوار |
| تيارخور | مفتخور، مفتخوار |
| تيخور | شيرخوار |
| ټوکخور | خيراتخور |
| چتلخور | چتل خور، رشوه خوار |
| دالخور | دالخور؛ اهل نيم قارهٔ هند |
| ډوډيخور | نانخور |
| ډېرخور | پرخور |
| رشوتخور | رشوت خور (=بډيخور) |

| ويي پوهنه | ټاکنټرنګونه |
|---|---|
| روژه خور | روزه خوار |
| رينجه خور | لته خور (گاو، گوساله...) |
| زړه خوری | دلخور، درونگرا |
| زهرخور | زهرخور؛ لُچک؛ بچه باز |
| سپورخور | خورندۀ غذای خشک |
| سړيخور | آدمخوار |
| سودخور | سودخور |
| سوکړکخور | خورندۀ نان جواری |
| سوگندخور | سوگندخوار (= قسمخور) |
| شرابخور | شراب خور، شرابی |
| شوتلخور | شفتلخوار |
| غمخور | غمخوار |
| غنمخور | گندمخوار (کونړ) |
| غوښخور | گوشتخوار |
| گیاخور | گیاه خوار (=وانښه خور، وښخور) |
| مارخور | مارخور |
| مردارخور | چتل خور؛ رشوه خوار |
| میراثخور | میراث خور، وارث |
| ناولخور | چتل خور؛ رشوتخور |
| نړيخور | جهانخوار |

۸-۳-۲☹کړی پېر ځيز نوم + کړ (نومکړ) نومستېه (کښ-، پلور-.ځار-،سات-، وژ-، زېږ-...) = ستاينوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اوبورکی | آبرسان، آب دهنده |
| اوبوېشی | ميرآب |
| اودسمات | قضای حاجت (اودسماتی= مواد غايطه |
| اورپکی | شرير، دهشت افگن |
| اورګډی | آتش سوز، شرير |
| اوګره ټينګی | بوته يی طبی |
| بريدساتی | پاسبان مرزی، ژاندارم |
| بورځانی | ميوه چين |
| پلیونی | پيرو |
| ځان پلوری | خود فروش |
| ځانځارونی | جان باز.، از خود گذر |
| ځانساتی | محافظه کار (= ځانساتونی) |
| ځانوژلی | خودکش |
| خرغود | خرګای، مورغود |
| خواله ساتی | رازدار، همراز |
| دېوالغود | پرندۀ ديوارګايک (=ديوالغويک) |

| ويي پوهــنه | ټاکنټرنګونه |
|---|---|
| سرکښ | سرکرده؛ سرکش |
| سوله ساتی | پاسدار صلح |
| شپانه غود | پرندهٔ شبان فریب، شبان فریبک |
| شپنغود | همان |
| غواروونی | نوعی سوسمار |
| کالښود | سالنما، تقویم |
| کتابښود | رهنمای کتاب |
| کټباڼ | چارپایی باف |
| کوډلوبی | رمال، جادوگر |
| کورګډی | خانمانسوز |
| کوروداني | زن خانه؛ خانم |
| لاریونی | رونده؛ راه پیما |
| لاسپوخی | دستبوس |
| لومړه زیږ | نخستین فرزند (=ړومبزیږ) |
| مړولونی | مرده شوی |
| ملاتړی | پشتیبان، حامی |
| نوزیږی | نوزاد |
| وچلونی | خشکه شوی |
| وږیخانی | خوشه چین |
| هېوادپلور | وطنفروش |

۸-۳-۳: (لوښنوم پېر) ښيز نوم + کړنوم = لوښنوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اوبکښ | واټرپمپ، لولهٔ آبکشی |
| اوبېشی | آبجوشی |
| اوبمېچ | آب سنج |
| اورلړوني | آتشکاو |
| اورلړی | همان |
| اورلوبی | آتشباز |
| اورنوسی | آتشگیر |
| اوروژونی | آتش نشان، وسیلهٔ اطفائیه |
| اوریا مېچ | باران سنج |
| بدلمېچ | میزان الشعر |
| تاوکښ | بخارکش |
| تړودساتی | ترموز |
| تودمېچ | گرماسنج |
| زرکاڼی | سنگ محک |
| سرتړونی | سربند (دستمال، نوار) |
| سږمېچ | ریه سنج (pneumatometer) |
| غږمل | موبایل، تلفن همراه |

| ويي پوهــنه | ټاکنټرنګونه |
|---|---|
| غوالوشه | ګاودوشه (=غوالوشې، غالوشه، لوغی) |
| فشار مېچ | فشارسنج، اندیکاتور) |
| کره کانی | سنګ محک |
| ککوین | ذره بین |
| لاس کونی (-ú-) | آستینچهٔ نان کنک |
| لرغږ | تیلفون |
| لروین | دوربین |
| لروینون | تلویزون |
| کوناستی | چوکی بازودار کودک |
| لاسپاکی | دستپاک |
| لاسپېلې | دستکش (= لاسماغو) |
| لاسلوبوونی | (بازیچه؛ آلهٔ دسته) |
| لاسولونې | دستشویه |
| لیدمېچ | دیدسنج اوپتو متر |
| مچشړ | مګسران |
| مچشړونې | همان |
| مچوژونی | همان |
| ملاوستنی | کمربند |
| مېچپوهاند | مهندس |
| وتپوهاند | اقتصاددان |

| ويي پوهــنه | ټاکنتړنګونه |
|---|---|
| وګړپوهاند | بشر شناس، انتروپولوژيست |
| ويپپوهاند | واژه شناس، لکزيکولوژيست |
| ناستدړه | چوکی، صندلی |
| نغوړمېچ | شنواسنج، اديومتر |
| واټن مېچ | مسافت سنج |
| وسپنخوره | موريانه |
| وسپنکښ | آهن ربا |
| هبندارسپېڅ | برف پاک (عراده جات) |

۸-۳-۴: څيز نوم + کړنوم (له -آند پايلي سره) = چارتولنوم

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| ادبپوهاند | ادبياتشناس |
| آرپوهاند | ريشه شناس، اتمولوژيست |
| آريانپوهاند | آريانشناس (ايرانشاس) |
| ارواپوهاند | روانشناس (-ـ-ـاپوهاند) |
| افغان پېژاند | افغانشناس |
| بوټپوهاند | گياه شناس، بوتانيست |
| پټپوهاند | عالم العيب |
| پښتپوهاند | شجره شناس |
| پښتوپوهاند | متخصص زبان پشتو |

| ويي پوهــنه | ګاکنترنګونه |
|---|---|
| پښوييپوهاند | ويژه شناس دستور زبان |
| پنځپوهاند | فزيکدان؛ دانشمند علوم طبيعي |
| پينپوهاند | کيهان شناس، کاسمولوجېست |
| تاريخپوهاند | مؤرخ، تاريخدان |
| تخنيکپوهاند | تکنالوژيست |
| توکمپوهاند | نژادشناس |
| ټولنپوهاند | جامعه شناس |
| چين پېژاند | چين شناس، sinologue |
| ختيځپوهاند | خاورشناس، مستشرق |
| خوشالپېژاند | خوشحال شناس |
| دينپوهاند | عالم دين، يزدان شناس، تيولوجين |
| رښتپوهاند | حقوق دان |
| ژبادبپوهاند | ويژه شناس زبان وادبيات |
| ژبپوهاند | زبانشناس |
| ژبتوکمپوهاند | اتنو-انګويست |
| ژبساپوهاند | سايکو-لنګويست |
| ژوپوهاند | جانورشناس |
| ژوندپوهاند | زيست شناس، بيالوجيست |
| ساپوهاند | روانشناس (=اروا پوهاند) |
| ستورپوهاند | ستاره شناس، استرولوګر |

| ويي پوهــنه | ټاکنتړنګونه |
|---|---|
| ستورپېژاند | منجم، هيئت شناس، استرونومر |
| شمېرپوهاند | رياضی دان |
| کانپېژاند | معدنشناس، کانی شناس |
| کتابپوهاند | کتابشناس، ببليو گرافر |
| کيمياپوهاند | کيميا دان (=کيمياپوه) |
| لرغونپوهاند | باستانشناس |
| مانا پوهاند | معنی شناس، سيمانتيست |
| مېچپوهاند | مهندس، هندسه دان |
| وګړپوهاند | بشرشناس، انتروپولوجست |
| وييپوهاند | واژه شناس، لکزيکولوجست |

۸-۳-۴: خيزنوم + کړنوم (- پوهنه، - پوهه، - پېژندنه) = چارتولنوم

| ويې | پارسي مانا |
|---|---|
| ادبپوهنه | ادبيات ، شناسايی نومَون |
| آرپوهنه | ريشه شناسی، فقه اللغه، اتمولوژی |
| آرپوهه | همان |
| اندپوهه | ايديولوژی |
| اوازپوهه | واجشناسی، فونيمکس |
| آريانپوهنه | آريانشناسی (ايرانشناسی) |
| افغانپېژندنه | افغان شناسی |
| اندپوهه | ايديولوژی |
| اوازپوهه | واجشناسی، فونيمکس |
| بوټپوهنه | گياه شناسی |
| پښوييپوهنه | دستورشناسی (= پښوييپوهه |
| پيېنپوهنه | کيهان شناس، کاسمولوژيست |
| تخنيکپوهه | علم تخنيک، تکنالوژی |
| ټولنپوهنه | جامعه شناسی، اجتماعيات |
| چينپېژندنه | چين شناسی sinolog |
| ځانپېژندنه | خودشناسی |
| ځمکپوهنه | جغرافيا |

| ويي پوهــنه | ټاکنتړنګونه |
|---|---|
| ځمکپېژندنه | زمین شناسی |
| ختیځپوهنه | خاورشناسی |
| خوشال پېژندنه | خوشحال شناسی |
| دينپوهنه | علم الادیان، تیولوژی |
| رښتپوهنه | حقوق شناسی |
| ژبپوهنه | زبانشناسی |
| ژوپوهنه | زولوژی، جانورشناسی |
| ژوندپوهنه | زیست شناسی، بیالوژی |
| ستورپوهنه | ستاره شناسی، استرولوجی |
| ستورپېژندنه | اخترشناسي،هیئت ، علم نجوم، استرو نومی |
| غږپوهنه | آواشناسی، فونولوژی |
| غږپوهه | همان |
| غونډله پوهه(-پوهنه) | نحو ، سنتکس |
| کانپېژندنه | کانی شناسی، معدنشناسی،منرالوژی |
| ګړپوهه | مورفولوژی، واژشناسی، صرف |
| لرغونپوهنه | باستانشناسی |
| ماناپوهنه | معنی شناسی |
| وټپوهنه | علم اقتصاد |
| وييپوهنه | واژه شناسی |

۸-۳-۵: څيز نوم + ليک، ليکنه= تولتړنګ (نومَوني)

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اخځليک | فهرست ماخذ |
| آرليک | مسوده، مينوت |
| آړليک | رونوشت، کاپی |
| انځورليک | خط تصويری، پيکتوگرام (هيروغليف) |
| اندليک | ايدوگرام، همانند خط چينايی |
| باورليک | اعتمادنامه |
| برخليک | سرنوشت |
| بريدليک | مقدمه ، تمهيد |
| برېښناګاډی | موتر برقی |
| بريليک | تصديق نامه ، شهادتنامه ، ديپلوم |
| پايليک | پای ورقی ، پايانامه، مونوگراف |
| پرېکړه ليک | فيصله نامه |
| پېښليک | تاريخ (حبيبي) |
| پتليک | نوشتهٔ نشانی يا آدرس |
| تړليک | قرارداد نامه |
| تړونليک | همان |
| تنديليک | سرنوشت |

| ويي پوهــنه | ټاکنټرنګونه |
|---|---|
| دويليک | قانوننامه |
| ډبرليک | سنگ نبشته؛ سنگ مزار |
| ډبرليک | سنگ نبشته؛ سنگ مزار |
| ستاينليک | تقديرنامه |
| سرليک | سرخط، عنوان |
| سرليکنه | سرمقاله، اداريه |
| سرليکه | سرلوحه، بورډ |
| سمونليک | غلطنامه |
| لارليک | گذرنامه |
| لاسليک | دستخط، امضأ |
| لاسليکنه | دستنويس، نسخهٔ خطی |
| لښتيليک | گراف، نمودار (=انځورليک) |
| نومليک | فهرست اسمأ |
| نومليکنه | نامنويسی، ثبت نام |
| نېټه ليک | کرونولوجی، گاه شناسی |
| نيوکليک | احتجاجيه (=اختجاج ليک) |
| نيوليک | فهرست مندرجات |
| ورځليکی | روزنامچه.دايری |
| يادليک | يادداشت، نوت (=يادښت ليک) |

۸-۳-۵: څيز نوم + څيزنوم = تولتړنګ (نوم، نومَونه)

| ويی | پارسي مانا |
|---|---|
| اندتوګه | طرزبینش، طرزدید |
| انددود | همان |
| اورګاډی | ریل، قطار، ترین |
| اورلوبه | اتش بازی |
| اوونۍ پای | پایان هفته |
| اوونۍ پیل | سرهفته |
| اوونۍ ورځې | روزهای هفته |
| بارګاډی | موتر باربری |
| باوررایه | رأی اعتماد (موسی شفیق) |
| باورلیک | اعتمادنامه (همان) |
| برېښناګاډی | موتر برقی |
| بلوژنه | قتل (= بلوژله) |
| بڼکلوبه | بید منتن |
| پاتمړې | میراث (= پاته مړینه) |
| پښتونخوا | افغانستان، خیبر پښتونخوا |
| پیلټکی | نقطهٔ آغاز |
| پیللوستی | سرآغاز |
| پایټکی | نقطهٔ انجامی |

| ويي پوهــنه | ټاکنتړنګونه |
|---|---|
| پایلوبه | مسابقهٔ نهایی ورزشی |
| پزخپونی | دستمال بینی |
| پوهنغونډ | دایرة المعارف |
| توربرېښ | تهدید با سلاح |
| ټولوژنه | کشتار عام (= ټولوژله، چړاو) |
| جېبخپونی | دستمال جیبی |
| چمګاډی | تراموای |
| ځان خپونی | جان پاک |
| ځان ګاډی | موتر شخصی (اتوموبیل) |
| ځانوژنه | خود کشی، انتحار (=ځانوژله |
| ښتمری | مهرهٔ گردن |
| خبرپاڼه | یادداشت خبری |
| خبر ځای | منبع خبر |
| خولوېش | تقسیم حصول زراعتی بین ورثه (خوست) |
| دوی غونډ | مجموعهٔ قوانین |
| ډبروژنه | سنگسار (=ډبروژله) |
| زرپاڼه | زر ورق |
| زرپېښ | زرگر |
| زرټوکی | تکه زری |

| ويي پوهـنه | پاکنټرنگونه |
|---|---|
| زړه بدی | رنجیده گی |
| زړه برم | قوت دل |
| زړه ټکی | راز دل، مافی ضمیر، مطلوب |
| زړه خوږی | دل دردی |
| زړه سوی | دلسوزی |
| زړه غوټه | عقده |
| زغرگاډی | موتر زره پوش |
| ژبدود | دستور (معیاری: پښویه) |
| ژبکورنۍ | خانوادۀ زبانی |
| ژوبڼ | باغ وحش |
| ژوندجگړه | تنازع للبقاء، مبارزه |
| ژونددود | طرز زنده گی |
| سبرغوټه | خوشۀ سرو |
| سبرونه | درخت سرو؛ سروقد |
| سپرلۍ گاډی | موتر سواری یا مسافربری |
| سرپاڼه | سرصفحه (کتاب) |
| سرپښتۍ | سرسینه (=سرپښت، سرپېښ) |
| سرټکی | نقطۀ آغاز |
| سرخپونی | روی سری، دستمال سر |
| سرخوږ | درد سر (=سرخوږی) |

| ويي پوهـنه | ټاکنتړنګونه |
| --- | --- |
| سرخوله | سجاف کلاه |
| سردارو | سیماب |
| سرغوړ | روغن موی |
| شپې بندیز | قیود شبگردی |
| شپېنوم | نام شب |
| غرلړۍ | سلسله کوه |
| غوبلرګی | چوب محوری جغل خرمن |
| کتنخوله | کلاهی از تکه |
| کڅخول | سبوس گندم؛ سبوس برسر دیگ جوشان |
| کورپاڼه | هوم پیج (کمپیوتر) |
| ګلبڼ | گلباغ، گلشن |
| ګلبوټی | گلبن |
| ګلپاڼه | گلبرگ، برگ گل |
| ګلڅانګه | شاخ گل |
| ګلکڅ | ساحلی با بیشهٔ گل |
| ګل مونګره | شگوفهٔ گل |
| ګلوله | گلبید |
| ګل ونه | درخت گل |
| لاسڅپونی | دستپاک |
| لاسکښنه | دستنویس، نسخهٔ خطی |

| ويي پوهنه | ټاکنترنګونه |
| --- | --- |
| ليدتوګه | طرز بينش |
| ليکدود | املاء آرتوگرافی |
| ليکلار | طرزنگارش، سبک نوشتاری |
| ليدلوری | سمت گرايش |
| مخ څپونی | روی پاک |
| منجيلوله | مجنون بيد (رود احمدزی) |
| منځټکی | نقطهٔ مرکزی |
| منځلوبه | بازی ميانی |
| مهالپاڼه | ورقهٔ ثبت ساعات کار، تايمشيت |
| مهالوېش | تقسيم اوقات، تايم تيبل |
| نيمپايلوبه | بازی نيمه نهايی، سيمی فاينل |
| وانېلوبه | ريسمان بازی (رشاد ؛ پيشوپړی پق) |
| ورځپاڼه | روزنامه |
| ورځليکی | روزنامچه dairy |
| ورځمزدوری | مزدوری روزمره |
| ورځنوم | نام روز |
| وزلوبه | بزکشی |
| ووبپاڼه | وبسايت (ناکره: وبپاڼه) |
| وينا پاڼه | بيان |
| وييپانګه | ذخيرهٔ واژگانی (= وييزېرمه) |

| | |
|---|---|
| يخلوبه | بازی روی یخ (=کنګل لوبه) |
| يخ نڅا | رقص روی یخ (=کنګل نڅا) |

۸-۳-۲-۲-۲: (تشبیهي، کنایي، مجازي او ګړنيز-څرګنديز):

ځيز نوم + ځيز نوم = ځيز نوم

| ويي | پارسي مانا |
|---|---|
| اباسين | دریای سیند |
| اسمان څاڅکی | حلزون (=اسمان ګړينګن) |
| اسمان کټ | بنات النعش |
| اسمانلار | کهکشان، راه شیری |
| الوا بوټی | نوعی از بته صحرایی |
| اودس مات | رفع حاجت |
| اور(بل) | اصطلاح نظامی (فایر) |
| اوښغويي | زرافه |
| اوښمرغی | شتر مرغ |
| بربتغوړ | بروت چربک؛ رشوت |
| بنګړيمات | یکی از بازی های د خترانه |
| بلاغونډ | کدوی مخصوص نصوار |
| پاتوځنه | بوتهٔ سیاوشان |

| ويي پوهــنه | ټاکنترړنګونه |
|---|---|
| پښه ارته | پایواز |
| پلارروطن | پدروطن |
| تندي ليک | سرنوشت |
| جوړکانی | سنگ صلح |
| ثمخلکی | بمبيرک |
| ثمثمار | کفچه مار |
| ثمخه منگور | همان |
| خربوټی | نوعی بوتهٔ ریگی |
| خرپَټه | علفی خاکی رنگ دشتی |
| خرپیاځه | بوته یی با گلهای سپید |
| خرتیزه | جست وخیز |
| خرجاړی | خرسنگ |
| خرجگ | نوعی بازی |
| خرجوبله | ازدحام |
| خردنگ | شخصی احمق و تنبل (= خرډنگ) |
| خرډگ | کیرخرک (نوعی سمارق)؛ احمق |
| خرزوره | علفی سبزرنگ دو برگه |
| خرزیړی | نوع شدیدی از یرقان |
| خرشین | سرگین اسپ و خر |
| خرغوږ | بوتهٔ خاکی رنگ طبی (=خرغوږی) |

| ويي پوهـنه | ټاکنتړنګونه |
|---|---|
| خرنل | نی لُک، کلان ودراز |
| خروله | بیدروسی، ابلیتس |
| خولخونده | میوه |
| ډانګ لکۍ بلبل | داینوسور(نو) |
| زانګوکخ | گهواره- مزرعه (نام محل) |
| زرخانګه | شاخ زرین (نام زنانه یی) |
| زرګلی | نوع از گل |
| زرلښته | زرخمچه (نام زنانه یی) |
| سروچوبی | سرخکان |
| سهارسترګه | ستارهٔ صبح (=کاروان سترگه) |
| شپښنوم | نام شب |
| غرڅپه | موج کلان |
| غرڅه ګل | بوته یی کوهی |
| غولیناسته | پایوازی داماد (= پښه ارته-تي) |
| کبلۍ پاڼه | نوعی علف، که در آخر بهار میروید |
| کتل مات | پایان جنگ |
| کورت کاڼی | سنگ چونه |
| کوناتي هډ | استخوان حاجز (=کوتغو، کوتالی) |
| کوناستی | نشست نخستین کودک ومریض |
| ګبین ژاوله | موم (پسماندهٔ عسل) |

| ويي پوهـنه | ټاکنتړنګونه |
| --- | --- |
| گډلوستن | سوزن ژندوزی |
| گردی لپچی | استخوان آرنج |
| گل زوبه | چای کوهي (= سمسوک، دغره چای) |
| گل ثانگه | شاخ گل (نام زنانه یی) |
| گلکڅ | بیشهٔ گل در ساحل رود و دریا |
| گلمېخ | گلمیخ |
| گل وله | گل بید |
| گل ونه | درخت گلدار؛ با قد بالاو گلگون |
| گلویی | گل واژه (نو) |
| گنډ پرمرۍ | زهرمهره (= زارموره) |
| گوښناسته | اعتکاف؛ گوشه نشینی، انزوا |
| لاس پاک | دستپاک، مجازاً شخص استعمال شونده |
| لاس تېره | مسح؛ نوازش |
| لاس سره | دستمزد؛ فایده بویژه در قصابی |
| لکلمی | دُمغوزه |
| لمغوټه | دُم بسته؛ تیارو آماده |
| مارباغ | نباتی کوهی مارمانند |
| مارجړۍ | مارمهره |
| ماردنگۍ | شمعدان |

| ويي پوهنه | ټاکنتړنګونه |
|---|---|
| مارکونډۍ | خارمغیلان |
| مارمرۍ | مارمهره |
| مارمهی | مارماهی |
| ماښام سترګه | ستارۀ شام (=مېلمه سترګه) |
| مخسپینی | تبرئیه |
| مخنیوی | پیشگیری، جلوگیری، ممانعت |
| مرغۍ پل | نوع سبزی |
| مرغۍ تول | همان |
| مړتک | خام کوک (= گینده، گورملنه، گیینه) |
| ملاګوډی | (ابتدأ به ساکن) نوعی بازی |
| منګی مات | نوعی بازی دختران (=گړی مات) |
| مۍ وریجې | (ریش) ماش وبرنج (گژوېښتی) |
| نظرمات | (-ی) دافع نظر بد |
| ورځ بندیز | قیود روزگردی |
| ورخ پوله | نوعی آبیاری |
| وري غوږ | نبات گوش بره |
| وږۍ ګل | نوعی بوتۀ کوهی |
| ولېپانه | نوعی بوتۀ طبی (= پرهرپانه) |
| هډمات | استخوان شکسته؛ دشمنی میان دو طرف |

۸ ـ ۳-۲-۴: (تشبيهي، كنايي او مجازي): ستاينوم + څيز نوم = څيز نوم

| ويى | پارسي مانا |
| --- | --- |
| توركورى | نوعى بوتهٔ طبى |
| تورلشى | نوعى گندم |
| تورلمى | خفک؛ گوركن |
| سمسلا | مصلحت درست |
| شا ځلمى | جوان رشيد |
| شاليلا | محبوبهٔ ملكه صفت |
| ښاپېرۍ | شاهپيرى |
| ښارگ | شاهرگ |
| ښامار | اژدها |
| ښاوندى | سربند آبگردان |
| كږښانگه | چوگان |
| كږلړمى | نوعى نقش خامک دوزى |
| كږلېچ | كج گردشى؛ زانوخم |
| كږلېچى | كج گردشى؛ كج دست |
| كږوېلنى | باديان (=كاږه ويلني) |
| كوږنگورى | تره |

۸-۳-۲-۵: خیز نوم + -وبی= خیز نوم

| ویی | پارسي مانا |
|---|---|
| تروبی | سرکه |
| تندوبی | فواره |
| تودوبی | حمام |
| ځړوبی | شرشره، آبشار (= جړوبی، ګړونګی) |
| څڅوبی | چکک |
| څرخوبی | گرداب (=څرخوړی) |
| خړوبی | گلابه |
| خوږوبی | شربت |
| دوه بی | دوآبه |
| رڼوبی | آب زلال |
| سروبی | سرخاب ؛ نام محل |
| سروچوبی | سرخکان |
| سړوبی | سردابه |
| شین شوبی | بتهٔ دشتی که مثل پودینه بوی میدهد |
| کړوبی | باقیماندهٔ آب جاری درجوی (= وچوبی) |
| کږوبی | علیل و پژمرده، بی شیمه، فاقد انرژی |
| ککوبی | عرق گلاب |

| ويي پوهـنه | ټاکنتړنګونه |
|---|---|
| کنوبی | شوربابیکه در دیگ باقی می ماند (=کړوب) |
| ګروړبی | خلط سینه، بلغم سینه |
| ګوړوبی | شربت گر (قند سیاه) ؛ آب گل آلود |
| مالګړوبی | ظرفی که نمک یا شوره را در آن حل میکنند |
| مالګوبی | نمک آب |
| ننوبی | آب شفاف و فلتر شده |
| وچوبی | باقیماندۀ آب جاری در جوی؛ قروت سابیده شده |

ټاتوبی (میهن، زادبوم) ښايي له همدې ډلې وي؛ ښځینه بېلګې هم د هېرولو نه دي، لکه: شړومبې، شلومبې، شوملې یا شومړې (دوغ)، تړومبې (دوغ شیرگرم)، پړومبې (آب پنیر)؛ په شړومب، نروب یا ملوب (اشک آبگین)، سروب (خوناب) خړوب ماړوب، یا مړوب (سیراب)، مړوب یا مړزوې (منی)، څخوب، ګل زوبه (د غره چای)، کړومبه (ماست رقیق؛ آب چکه، دوغ و ماست؛ شوربای بې روغن وسرد)، کړوب = کنو بی (شوربای که در بیخ دیگ بما ند)، ننوب (ننوبی)، رڼوب (رڼوبی)، اتوب یا اړوب (کاچی، آردابه؛ گل رقیق برای کاه

ګل؛ طعام بی مزه) کې چې د (اوبه. سته بې پایلې (-ی) راغلې او په ښوبه (شیر دهن آب کې) بیا د لومړي غړي (ښ-) سته او دویم غړی (اوبه) پرخپل اکر پاتې دی؛ وچوبه له ښځینه پایلې سره هم همداسې دراخله!

# ۹- څېرکی

## د وييرغاونې څېرمه ټولۍ (کتېگورۍ)

لويه جرگه، هسکه مېنه؛ رنده چرگه ؛ بوزه تې)؛ دريغ، سترگۍ، غوربۍ؛ کابل پوهنتون، گډ سوله ييز ژوند ،
سرکونډو بابا ، ژب-توکميز، کابل- لوگر...

په تېرو اتو څپرکو کې مو د دوه گونو وييرغاونو (بېلنگو او ترنگو) ټول لاسته راغلې آرې او رغولې بېلگې وړاندې کړې دا دي، دلته د هغو غونډېزو (عبارتي) رغاونو بېلابېلې ټولۍ (کتېگورۍ) هم تر څېړنې او شننې لاندې نيسو چې له جوليز پلوه د دواړو وييرغاونيزو ډولونو پرخلاف کومې ټاکلې، جوتې او دوييزې (باقاعده) رغاونې نه دي ، خو د جاج و مانا

له پلوه ټاکلي او جوت او ناشننوړ ژبني توکي بلل کېږي. لکه د (۸- خپرکي) په سر کې چې يادونه وشوه، په (و) ګړنۍ پښتو کې تر بېلنګونو د ترنګونو کچه کمه ده او لامل مو د ويونکيو ټولنوټيز، علمي- فرهنګي روستوالی پرګوته کړ، نو له همدغه لامله يې دا اړتيا دومره نه ده نګېرلې، غونډلې پر غونډونو واړوي او غونډونه هم پخو ترنګونو ته رالنډ کا ندي، بلکې تر هرڅه له مخه يې هغه تشه تر ډېره په غونډونو ډکه کړې او له دې سره يې ترښتي بهير دومره پرمخ نه دی تللی.

دا هغه غونډونه دي چې په وينا ييز بهيراو غونډلوکې يې د رغښت له مخې نيم پاخه، سست يا شاپر شا ترنګونه هم بولي (۱- پښويه)، که څه هم د پخو ترنګو دوې غبرګې (خجپوهيزې او غونډله پوهيزې) ځانګړتياوې نه رانغاړي، په نورو ټکو، له رغاونيزو پښوييز پلوه نه، بلکې د يوې يوازېنۍ جوتې او ګډې (ثابتې او مشترکې) مانا او جاج له پلوه ورسره ورتوالی لري، او د يوه غونډ نوم (اسم جمع) او بيا ځانګړنوم (خاص اسم) په توګه يو څيز، پديده، ځای، مهالپېر، ټولنه، ساز مان، ګوند... نوموي.

داسې يې هم راپېژندلای شو:

یو جوتغونډ هغه ← غونډ دی چې له آره بې د غونډلې د یوه ازاد رغنده توک ← وییغونډ (syntagma) په توګه پښوییزې نښې نښانې پرځای پاتې وي، خو د وییرغاونې له پلوه سست ترنګ بلل کېږي او د نومُونو او نومَونو (ترمونو) په توګه لکه ← ( پاخه ) ترنګونه کارول کېږ ي، بېلګې :ځاینومونه، ټولنو ټېز، ژبتوکمیز، علمي، فرهنګي، سیاسي او فني یا تخنیکي نومَونې، لکه: دافغانستان بانک، دکابل پوهنتون، د شپې ښوونځی (شپې لېسه)، د شپې پو هنځی چې له مهال تېرېدنې او زیا تې کارېدنې سره، د (و ، د) له لویدنې سره پر ← (تا کندویه ترنګونو اوړي :

افغانستان بانک، کابل پوهنتون، شپې ښوونځی، شپې پو هنځی د لومړي فشار په راخپلولو سره اضافي سربل (د)، له لاسه ورکوي او په پای کې روستي توک ته له خج لېږد) سره، پر پخو ترنګو، لکه : ماښام سترګه، سهارسترګه، پر(کاروان ستوري)، (د پام وړ) پر( پاموړ)، (د ارتیاوړ) پر(ارتیاوړ)، ( د سرټکی) پر(سرټکی)، (د منځ ټکی) پر(منځټکی)، (د پای ټکی) پر( پا یټکی)...؛

د (بوډۍ ټال) هممانیزونه: (سورو زرغون، سره زرغونه، سره او شنه، سره او زېړه، شین و زرغون، سره زېړه... ) بیا په (و) ګرنۍ ژبه کې وار له مخه پر ← جوړه ترنګونو اوښتي دي؛ په

دې لړ کې داسې ببلګې هم شته چې رغنده توکي یې تر دوو تېری کوي، لکه: کورکلی کرنه، کور ډوډۍ کالي، کړې وړې چاره (کار انجام شده)...

که په یوه جوت غونډ کې څه مورفیمیز بدلون راوستل شي، نو هغه بیا خپله جوتیا له لاسه ورکوي او ماناونج پکې هم راځي، د ساري په ډول که (شپې ښوونځی) پر (شپینی ښوو نځی) واړول شي، پر یوه دود یا عادي غونډ اوړي او چارو مانا ورسره هم ونجبړي، مانا دا چې بیا ترې د (لیلیه ښوو نځی) جاج اخېستل کېږي. په داسې اکرکې چې (شپې ښوو نځی) یا (شپې پوهنځی) په دې مانا دود شوی دی چې شاګر دان تر رسمي وخت روسته مازیګر مهال ورځي او د ټاکلي مهالوېش له مخې ماښام ماسختن ببرته خپل کورکوډلې ته ستنېږي.

په خجونج یاغږونج او یا دواړو سره، یو غونډ یا سمه غونډله پر پاخه تړنګ اوړي، لکه: (ستړی مه شئ!) پر (ستړي مشي)، (ښه راغلاست!) پر(ښه را غلاست)، وطن ګتهو(د لغمان اړوند کلی)... او داسې نور. په هرډول، جوتغونډونه سم له لاسه په پېنځو غورو ټولیو کې رالنډوو:

جوتنومغونډونه، ګړنې- څرګندنې، پرتلویزونه، مانونجویز ونه اوکرښتړنګونه

# لومړۍ ټولۍ

## ټاکنده نومغونډونه (عباره های ثابت اسمی)

نرۍ اوبه، سره چينه، کابل پوهنتون، سره غاړه، سرې ستر گې، (د) ارغنداو سيند، د باميانو بند، د هند نيمه وچه، نړيوال سازمان، يوه پښتو-کره پښتو...

نومغونډونه هم، لکه دانور د (پخو) نومترنگونو پرخلاف نحوي نښې نښا نې يا توکي، په تېره توليز (اضافي) سربل (د -də) تر ډېره خو ندي سا تي. دغه سربل کټ مټ د ستاينومو نو او شمېر نومونو غوندې د ځيزنوم له ټاکندو توکو (-mo difiers) څخه گڼل کېږي. په دې توگه ټول (ځيز) نومغونډونه د څلورگونو ټاکندو (ستاينوم، شمېرنوم، يو يوازېني پياوړي خج) له مخې پرڅلورو غورو ډلو وېشنه مومي: (۱) له توليز سربل (د) سره چې رغنده غړي يې يو راز عادي خجونه لري،

(۲) بې توليز سربل (د) چې د لومړي رغنده توک پياوړی خج يې د بل هر ټاکند (ستاينوم، شمېرنوم...) تشه ډکوي، (۳) ستاينوم د ټا کند په توګه او (۴) شمېرنوم د ټاکند په توګه.

۱: توليز سربل (د-) د ټاکند (موديفاير) په توګه

لومړی رغنده غړی له (پياو ړي خج) سره د دويم لپاره يو ټاکند ګرځي. په نورو ټکو، د لومړي څيز نوم دغه ← نازنځيري توک (خج)، کټ مټ، لکه سربل (د -dә) او بل هر (زنځيري) ټاکند (ستا ينوم، شمېرنوم...) په څېر د دويم څيز نوم ټاکنه کوي، او د هغو زنځيري توکونشتون ياغورځون شونی کوي او بيا يې تشه ورډکوي.

* ډاګونه، غرونه، غاښي، تنګي، کنډوونه

د ګمبېري ډاګ، ، دکو چانو ډاګ، (د) ليلي دښته، د بکوا دښته، د ناور دښته، د ريوت دښته(د پنجشېر په بر سرکې) د پېوې کنډو يا غا ښی، د غواوو کنډو(مزينه)، د سټو کنډو، د تېري غر، د هندوکښ غرياله، د ناوه ګی غاښی (نواپاس)، د وزيرو تنګی، دوردګو تنګی، د واغجان تنګی، د وغوز تنګی،

پلونه او ګودرونه

د کرغیو پول، د مهترلام(تیرګرو) پول، د دوستی یا حیرتان پول، د اتک پول، د درونټې پول، د سرخاو پول، د سرو (سر خکانو) پول، د بېسودو پول، د کامې پول، د اسمار پول..

تاریخي یادګارونه، څلي او منارونه

د جام منار، دخپلوا کی څلی (منار استقلال)، (د) میوند څلی (یو په میوند اوبل په کابل ښارکې)،د علم وجهل څلی( منار علم وجهل ، د هرات څلي(منار های هرات)، (د) بختیار کلا ، دبُست (بوست) کلا ، د لویې جرګې کېږدی یا خېمه، د غونډې یا کنفرانس په څنډوکې(درحاشیهٔ کنفرانس)، د غلغلې ښار...

کروندې یافارمونه

..د غازي اباد فارم، د سمرخېلو فارم او د ترکانی فابریکه، د هډې فارم او د ښونو فابریکه....

* نړیوال سازمانونه او ورځې:

د ملو (ملګرو) ملتو سازمان یا مؤسسه (م م م)، د امنیت شو را ، (د) بشري رښتو اعلامیه یایې نړیواله ورځ، د شمالي اتل انتیک تړلواله، د امریکاد تورو اوبو امنیتي سازمان، د شا نګهای سازمان، د امر یکاد تورو اوبو امنیتي سازمان، د (سي.آی.اې) څارګري ساز مان، (آی.س.آی) څارګري سازمان ...؛ د لیک لوست نړیواله ورځ، د روغتیا نړیواله ورځ یا ساز

مان، د خوراک نړيوال ساز مان،د تېلزېږو (يا د تېلو توليدوو نکو) ټولنه (اوپېک)، د ښځې د ړښتوورځ، د مارچ اتمه، د مور ورځ،)،د مورنۍ ژبې ورځ....

* نړيوال جغرافيايي نومغونډونه

د اسيا لويه وچه، د اروپا لويه وچه، د افريقا لويه وچه، د امريکا لويه وچه، داستراليا لويه وچه، د هند نيمه وچه، نيمه شمالي کره، نيمه سوېلي کره، د افريقا ښکر،د امېد دما غه(ورشک)، د امريکا ملي سيمې (متحد ايالتونه)...؛ د تو رو اوبو آغاړه (ماو راى بحار over seas)، د هند سمندر، د اتلس سمندر....

۲: بې توليز سربل (د)، لکه پاس چې وويل شول، پرځای يې لومړي رغنده ټوک (ويي) يو پياوړی خج راخپل کړی او د د ويم لپاره يوټاکند گرځېدلی دی. په (و) گړنۍ پښتو کې يې داسې بېلگې هم شته چې له اوښتي پيرسره سره يې(د) غور ځولی او ځای يې د ړومبي (غنده غړي پياوړي) خج نيولی دی، لکه: پيرانو پير(د بغداد پير)، دېوانو کلا، کوچانو کلا، ميرانو کلی، جبو کلی، اخون کلی، زاړه کلی، غزو کلی، ډاگو (کلی) دېگانو کلی، (د) گټو کلا...؛

نورې بېلگې:

له (+كڅ) سره رغېدلي تولنومونه (اسمای اضافی) چې ليكو ال د كابل- تورخم او بيا له جمرود تر حسن ابداله ليدلي او يادښت كړي دي، لكه: محمدعلي كڅ، كاكڅ، عزيز خان كڅ، شاكڅ، چاري كڅ چې په دې راز جوتنومغونډونو كې (زانگو كڅ) او (گردي كڅ) پر پخو ترڼگونو اوښتي دي.

له عربی پورويزي (+ دره) په ملتيا يو لړ ځاينومونه چې يو شمېر يې په پښتو او پارسي دواړو ژبو كې پر پخو ترڼگو نو اوښتي دي، لكه: اناردره(فراه)، گل دره، شكردره، نوردره، دبوگل دره، مزاردره، پېچ دره، وايگل دره، شيگل دره، دا نگام يا اسمار دره، مومنددره...

خو ځينې نور يې بيا له تولسربل سره د نومغونډونو په توگه په مخنۍ (١) او (٢) دواړو ډلو كې راتلای شي ، لكه:

(د) خوات دره، د پنجشېر دره،(د) تگاو دره، نجراو دره، خا رج دره، پچغان دره، غوچولان دره، شتل دره، د لوگر دره، د الينگار دره، د اليشنگ دره، د خيبر دره... ؛ د (+ناوه) په ملتيا يې هم همداسې دراخله، لكه: د هېلمند ناوه چې هم د هېلمندوادي انډول رااخلي او هم يې اړونده ولسوالي نوموي.

ددې لړۍ نورې زړې او نوې بېلگې:

نوی كلی، سپين كلی(د كابل افشار پښتو پورژبارلی انډول) سره كلا ، كافركلا (دوردگو خوات درې برسرته)، ډمكلی(لژه-

منګل) دمکلی(اسدا باد)؛ سروان کلا( ترډېره په ترښتي بڼه دوډ لري)....

* د ولايتونواو ولسواليو نومونه هم ترډېره بې (د) رادود شوي دي ، لکه:

کابل ولايت، کندهار ولايت، پکتيا ولايت، ننګرهار ولايت، نورستان ولايت، بلخ ولايت، کاپيسا ولايت، لغمان ولايت، لوګر ولايت... ؛ دهسبز ولسوالي، سروبي ولسوالي، النګار ولسوالي، اليشنګ ولسوالي، چپرهار ولسوالي،د ښېوې ولسوالي، (د) نورګل ولسوالي، (د)خوکی ولسوالي، (د) سرکانو ولسوالي،(د) ناړی ولسوالي)، دغازيباد ولسوالي، د بريکوټ ولسوالي، کوټ ولسوالي، د کوړنګل ولسوالي، اچين ولسوالي، سپين غر ولسوالی، (د) نازيانو ولسوالي دوربابا ولسوالي، دبټيکوټ(نادرشاه کوټ) ولسوالي، مو مندرې ولسوالي... ؛ رودات ولسوالي چې په کارده، د چپر هار او کوټ ولسواليو تر رغېدااو بېلېدا راروسته يې هماغه ۶۰-۷۰کلن زوړ نوم((د مزينې ولسوالي)) بېرته راژو ندی شي، ځکه يو رود ولې په هغه ناسمه ډېرګړې بڼه (رودات) همداسې پاتې شي!

* ښارونه او ښاروالی، لکه:

کابل ښاروال - ښاروالي، کندهار ښاروال - ښاروالي، مزار ښاروال- ښاروالي، کو ندوز ښاروال - ښاروالي، جلالکوټ ښاروال - ښاروالي، پېښور ښار.....؛

* د (هسکه مېنه) پر بېلګه، ښارمېنې، سړکونه، واټونه، میدانونه ، څلارۍ، پارکونه، ډګرونه، لکه:

شېرشا مېنه، میرویس مېنه، وزیراکبرخان مېنه، پروان مېنه، خیرخانه مېنه، جمال مېنه، احمدشاه مېنه، نورمحمد شاه مېنه، ایوب مېنه، سوري مېنه، آریانا مېنه، روښان مېنه، خوشال مېنه...؛ وزیراکبرخان سړک د مېنې اړوند سړک)، وزیراکبرخان واټ (له محمود خان پله تر استقلال مناره)، میوند واټ، دارالامان سړک، سالنګ واټ، چهلستون سړک.. ؛ میرویس میدان، شهاب الدین میدان، نوي ښار پارک، زر نګار پارک...؛ د کابل هوايي ډګر، د کندهار هوا يي ډګر، د بګرام هوايي ډګر، دهدادي هوايي ډګر، شينډنډ هوايي ډګر، د هرات هوايي ډګر، د ننګرهار هوايي ډګر، د خوست هوايي ډګر، پېښور هوايي ډګر....

* غرونه، رغونه، غونډۍ او ډاګونه

کسي غر، پامیرغر، (د) هندوکښ (غر)، باباغر، کاوون غر، البرز غر، لواغر، شوال غر، شلمان غر، سپین غر، تورغر، شین غر، سور غر، دوه سرى (غر)، کسې غر (سلېمان غر)،

شمشاد غر، ټوررا غه، سپين راغه، بيبي دورۍ غونډۍ (مزينه)، مرسل (ځل) غونډۍ يا (مورځله غونډۍ)، ناور د ښته، توررا غه، بکوا د ښته)، لويه سارا، لوت دښته يا کوير لوط (تر مشهده ورا خواتر سمنانه لويه دښته، چې د آريانپو ها نو له خوا په آريا ني وېش کې له پارسي تربورانو سره زموږ د شمال-ختيزو (ساکي او اوېستا يي) ټبرونو تاريخي، ژبنی او بيا سياسي پو له بلل شوې ده.

رودونه، سينډونه، بندونه او داوبزېرمو نور اړوند نومونه له ستاينو مونو سره، لکه:

لنډۍ سيند (يو په نورستان او بل په نوښار- اټک کې)، سور رود (سره رود)، وچ خوړ (مردان)، کوړمې اوبه، ولاړې اوبه يا سيند گی (آب ايستاده، کړه وله (پېښور)، سپينه اوبه (وزير ستان)، نرۍ اوبه (ننگرهار)، توده چينه، سړه چينه، ماروچينه (معروف چينه!)، مردارډنډ (د توررا غه په برسرکې غلنۍ ته ور نژدې يو وړکی ډنډ يا گړې)، د جلا لا گودر، گوگا منډه ...؛ مردار ډنډ، شينډنډ)، سردرياب له لومړي سره پر پخو تړ نگو اوښتي دي.

له تونلنوم سره، لکه: هلمندسيند، ارغنداو سيند، کابل سيند، لوگر سيند، کونړسيند، پيچ سيند، الينگارسيند،

الیشنګ سیند سیند، ګومل سیند، (د) کور مې سیند، مز ینې رود، چپرهار رود، کوټ رود، ترنک رود...؛

د لیکوال پر اټکل (سالار ویاله)، د سپه سالار غلام حیدرخان لوګري له خوا کونړ یانو ته د نورستان په جنګ کې د ملاتړ په پاسلنه هسکه د غره په ډډه کې کېنل شوې چې د پیچ سیند له سربند تر اسدابا د او بیا نواباده درسته سیمه خړوبوي- ((نواباد)) هم له همدغې تاریخي ویالې سره سیده تړاو لري؛ سالار صاحب د خپل کړوسي کریم جان په وینا په خپله سیمه(لوګر) کې د ((لنډي جنرال)) په نامه یادېږي او کورنۍ یې دا یو سل و شل کاله په کابل ښارکې خپله پښتوخوندي سا تلې ده.

* علمي، فرهنګي، اقتصادي، تخنیکي او اداري نومونې، لکه:

افغان سید جمال الدین فرهنګي ټولنه، د مومند بابا فرهنګي ټولنه(بلخ)، هریوا فرهنګي ټولنه(هرات)، پښتو ادبي بهیر، ختیځ ادبي بهیر، نارنجګل مشاعره، انارګل مشاعره، منې ګل مشاعره، سنځل ګل مشاعره...

کابل پوهنتون، پېښور پوهنتون، ننګرهار پوهنتون، کندهار پوهنتون، کونړ پوهنتون، پروان پوهنتون، کاپیسا پوهنتون، لغمان پوهنتون، پکتیا پوهنتون، خوست (ابوزید) پوهنتون،

هرات پوهنتون، بلخ پوهنتون، پېښورپوهنتون...؛
زیاراکادېمي، (د پېښور پوهنتون) پښتو اکېډېمي، کابل ښار، کابل ښاروال، (د) افغانستان بانک، ملي بانک، پښتني تجا رتي بانک، نړیوال بانک، نړیوال پولي (وجهي) بانک، کابل بانک (له پارسي وینگ سره د پاخه تړنگ په توگه) او داسې نور

* ملي اتلان، لکه:
بایزید روښان، خوشال خان خټک، ایمل خان مومند، دریا خان اپرېدی، ملتان اپریدی، عجب خان اپریدی، میرویس نیکه، احمدشاه بابا، وزیراکبر خان، محمدجانخان وردگ، عبدالله خان اڅکزی، محمدشاه خان بابکرخېل، لوگری امین اله خان، تگاوی محمد عثمانخان، کوهدامنی میربچه خان، کوهستانی میرمسجدي خان، سیغانی گاوسوار، غازي ادې، پېغله ملاله، محمدایوب خان، امیرشیرعلیخان، غا زي امان الله خان، ببرک ځدراڼ، ځلمی خان منگل، چکنورملا صاحب، ملانجم الدین اخونزاده او مأذون یې صوفي علم گل ملا پوونده، (د) ترنگزو حاجي صاحب (۱۹۳۷ مړ)، میرزاعلي خان، غازي عمراخان، میر زمان خان، خان عبدالغفارخان (فخرافغان، پاچا خان یاباچاخان)...

* د وګړنیو کیسو او نکلو د اتلانو جوړې،لکه: ادم ودرخو، موساجان وګل مکۍ، فتح خان و رابیا، ښادی او بیبو، مومن خان و شیرینو، یوسف خان و شیربانو،جلات و شمایله، سیدکمال او شابوجان....

۳: ستاینوم د ټاکند په توګه

مانا داچې دلته لومړی رغنده ویی یو ستاینوم دی او د پښتو له نحوي دوی (قاعدې سره) بل ټاکنده توکي، په نورو ټکو، تولیز سربل (د) ته اړتیا نه لري.. دا راز غونډونه له (تخنیکي-ترمینالوجیکي پلوه) تر ډېره (جغرافیایي، ټولنیز، وټیز یا اقتصادي، سیاسي، فرهنګي...) نومونه او نوموَنې رانغاړي.

* بېلابېل نومونه له ستاینومونو سره،لکه:

کره کتنه، مخکتنه، ادبي بهیر، ادبي جرګه(او نورې ادبي او فرهنګي ټولنې)، وازه خوا، سپین کب (شیرما هی هی)، سپین کت (تباشیر)، وربښمین تنګی، جوګي پول (لغمان)، ایساره تاله، وچ کوټ، شمالي وزیرستان، سوېلي (جنوبي) وزیرستان، لره (کوزه) پښتونخوا (پشتو نستان)، بره پښتو نخوا(افغا نستان، سو ېلي پښتو نخوا (بلو چستان)، شمالي پښتو نخوا ،خیبر پښتو نخوا)، بربیار، کوز بیار، برسلطانپور،کوز سلطانپور، برسو ات، کوزسوات، کمه ډکه، لویه ډکه، برکلی،کوزکلی، زوړ ښار، نوی ښار، بر

(کمکی) بړو ، کوز(لوی) بړو ، برتاکال، کوز تاکال، بر تیراهي، لرتیراهي ( د پښتنو د پچگۍ سړک کیڼ لورته چې نن سبایې د سرکاري ارود په پښتو برولر پربالا او پائین اوښتي دي)، لوی ننگرهار (شامل ولا یات لغمان، کونر و نور ستان)، لوی کندهار(شامل ولا یات کندهار، زابل، ورزگان و هلمند) ، لو یه پکتیا (شامل ولایات پکتیا ، خوست وقسماً پکتیکا)...

په دې لړۍ کې را پښتو شوي سپېڅلځایونه (اماکن مقدسه او ټولۍ(مقولې) له دودیزو(پنج پیره وو) او بیا (وهابیانو) پرته د ډېروگروهنو لپاره په زړه پورې دي، لکه:

مکه یا کعبه شریفه، مدینه یا روضه مبارکه، (د) عرفات غو نډۍ، (د)حج لاربښود ، ( د) برات شپه یاد (جانیخپلو) منگلو(د بلینډو ښه شپه))، بزرگه میاشت، ...؛ حرقه شریفه ، د هرات گازرگاه، چشت شریف، سیدوشریف، ماټوکی شریف...

زیارتونه، لکه: کربلا زیارت، بابا ولي، شیخ متي یا کلات بابا ، سخي زیارت، سر کونډو بابا ، خوجه سې بابا ، مهترلام بابا بابا ، نورلام بابا (لغمان)، ډولکي والا بابا(جلال اباد)، غا زي بابا ، بي بي دورۍ زیارت، د پېوې زیارت(مزینه)، گورگو رۍ زیارت،د ( پاپین ) میاجانمحمد زیارت، دوربابا ، شینکی بابا ، زبړي بابا ، روحاني صا حب، د هډې صاحب، اخون مو سا صاحب، میا علي صاحب ( زیا رت)، میا جي صاحب (زیا

رت)، شلګزي یا (چلګزي) بابا، دمیاعمرخمکنی زیارت، تور اخون، ګردي غوث، پیر بابا...

بهرني ځاینومونه(له ستاینومونو سره)، لکه:

عربي ټاپو وزمه، سوېلي قطب (Antarctica)، شمالي قطب، شوروي اتحاد (۱۹۱۷-۱۹۹۰)، روسیې فدراسیون، چیني تورکستان(سینکیانګ)، سکاندیناوی-ي هېواد - هېواد ونه...

* سیاسي، ټولنیز رغښتونه، سازمانونه، او جاجونه، لکه :ملي ګوند، سوسیالېست ګوند، دېموکرات سوسیالېست (سوشل دېموکرات) ګوند، کمونېست ګوند، واکمن ګوند، لویه جرګه ولسي جرګه، مشرانو جرګه، ولایتي جرګه، ولسو الي جرګه، ازاده جرګه، ډېورنډ جرګه، ناپېیلي هېوادونه، پر مختیایي هېوادونه(درېیمه نړۍ!)، ټولګټي هېوادونه( کشورهای مشترک المنافع یاکامنوېلت)، نړیواله ټولنه، نړیوال سازمان، مله یا ملګري ملتونه، عربي امارتونه، عربي ټولنه، ارو پایي ټولنه، اروپایي پارلمان، افریقایي ټو لنه، نړیواله ټو لنه، ناپانګوالي ودې لار (راه رشد غیر سرمایه داری)، ټو لګټي هېوادونه( کشورهای دارای منافع مشترک یاکامن وېلت).

* پر پخو ترڅو نو اوښتونکي راز راز تازه بېلګي:

وزلوبه،اورلوبه، پايلوبه، ټلواله (اېتلاف)، زبرځواک، زبر زنا، زبر وګړه (ابرمرد)، ژب-توکميز، ژب-پو هنيز،ژب-ټولنيز، ټولن-وټيز، لاسونديز(مستند)، سوېل-لوېديځ، سوېل-ختيځ، شمال-ختيځ....

۴: له غبرګو ستاينومونو سره،لکه:

پښتني تجارتي بانک، سرې سرکال ګټه، ګډسوله ييز ژوند، ولسيز ټولنيز ګوند؛ غبرګ ستاينوميز ځاينومونه:

سپينه غبرګه، لنډه بوچ، (شنه زرغونه)، زېړه زرغونه، سره زرغونه يا شين زرغون (د بوډۍ ټال)؛ په (ولسواک- ټولنواک ګوند) نو مغونډ کې مخني غبرګ وييونه ځکه ستاينومونه بلل کېږي چې له آره (ولسواکی) او (ټولنواکی) دي او (-ی) ستاينوميز روستاړي ځنې غورځول شوي دي، کټ مټ، لکه په پخو تړ نګونو (ټولواک، خپلواک، ولسواک، زورواک، بلو اک)، نړيواک ...کې.

۵: شمېرنوم د ټاکند په توګه چې دغلته تر آر شمېر پوړ شمېر (عدد رتبی) زيات کارول کېږي، ځکه هممهاله ستاينوميز چار تر سره کوي، بېلګې، لکه.

لومړی افغان-انګليس جنګ، دويم افغان-انګليس جنګ، درېيم افغان- انګليس جنګ، لومړی نړيوال جنګ، دويم نړيوال جنګ، درېيم نړيوال جنګ(!) اته ستر صنعتي هېوا

دونه، اووه غله (هفت ستاره)، دوه غبرګه (دولا)، دوه ځایه، دوه ګرایه، شپږمه ګوته (شخص نامطلوب)، څلور خویندې (ربیع الاول، ربیع الثانی، جمادی الاول، جمادی الثانی) یا: لومړۍ خور، دویمه خور، دریمه خور، څلورمه خور (=څلورم وروړ). دوه بې، دوه منده، بیا د پخو ترنګو په توګه له پايخج سره ویل کېږي.

۶: کړولونه او بشپړنونه (قیدونه، متممونه)

سربل+نوم+سربل +نوم= کړول، بشپړن(متمم)، لکه:

د زړه له کومي، د زړه له پاسه، په مات زړه، په نه زړه، ، په لوی لاس، په غوټه خوله او څه ناڅه ستاینومیز او بشپړنیز چار راڅرګندوي)، هرخوا، له هرې خوا، لره خوا، بره خوا، سر له سره (بېرته له سره، سردوباره)، له یوې مخې، له یوه سره، له سبلمې، په ټوله کې، په لویه کې،له لویه سره، سم له سمونې، سم له کنده، سم له لاسه، له لاسه لا (هنوز، بااین، مثلاً)، وار له مخه، په لوی لاس، په هسکه غاړه، په ټیټو ستر ګو، په مړو سترګو، په خړو سترګو، په هسکو سترګو، په پټو ستر ګو، په غړولو سترګو، په نه سترګو، په لکړه-(که) په ککړه، په نره...(۳-. پښنویه۲۴۵).

بېلابېل جوتغونډونه نومونه او نومونې

۱: د ورځنیو ادابو غونډله بیز ترنګونه، لکه:

غونډله ييز (جمله ييز) په دې مانا چې د کارونې پروخت د بشپړو يا لنډکيو غونډلو بڼې راخپلوي، که نه، غونډيزې بڼې. بېلګې، لکه :

* ښه راغلی! ښه راغلاست! ستړی مشې! ستړي مه شئ!، خوار مه شي! خوار مه شئ! مخه ښه! شپه ښه! ورځ ښه! خدای پامان! او داسې نور؛

*غونډيزې بڼې يې، لکه چې وايي : زه له چاسره (ښه راغلی)، ستړي مه شي، خواره مه شي ... نه لرم.

که د نورو په څېر دغه غونډيز ډولونه هم پر روستي پياوړي خج وويل شي، بيانو پر پخو تړنګونو اوړي.

د ورځنيو ادابو په لړ کې، که د (ښه) پرځای (نېکمرغه-) وويل شي، بيا نو د اوږدوالي له لامله دومره تړښتي او کاروني کابو (چانس) نه لري؛ (مرغه ښه) د (مبارک!) او (مبارکي) په مانا بيا دا شونتيا ترلاسه کړې ده (کليوال خټک).

۲: پر تړنګونو اوښتي ځانګړي نومغونډونه

(بله نشته) يا بسلاره د ځانګړو ښځينه نومونو په توګه هم له ورته خجنتيا سره له پخواراهيسې له غونډونو آره اخېستې ده لومړی نوم ترخو پرلپسې لوړو تر زېږېدو روستنه اېښوول

کېږي چې گوندې (زوی) ور پسې راشي او دويم د دې لپاره چې بل هېڅ بچی پسې ونه شي.!

۳: پوځي نوموني او بولۍ (قوماندې)

غونډيزې (عبارتي) او غونډله ييزې (جمله ييزې) نوموني چې له نولسمې پېړۍ راهيسې يې پښتو ويپانگې ته لار موندلې او هممهاله په رسمي-سرکاري اډانه کې له لومړنيو پښتو نيو لوجېزمونو گڼل کېږي، له نژدې يونيم سلکلن مهالپېر سره يې د نورو غونډلو او غونډونو په پرتله، له پخو ترڼگونو، په تېره جوړه ترڼگونو سره پوله بريد ترډېره رنگ شوی برېښي.

يو شمېر بېلگې يې، لکه:

تيار سئ، ارام سئ، ولاړ سئ، پروت سئ، سلام کئ، راحت کئ، کښينئ، وړاندې مارش (زوړ انډول: ځاو!)، وړاندې گور، ښۍ خواگرځ (ښۍ ځرخ)، کيڼ خواگرځ (کيڼ ځرخ)، ښۍ شاگرځ، کيڼ شا گرځ، پښه پرځای (چپرځای)، درېږ (دريش)، اوربل! اور بس، لاس يا لاسونه پورته او داسې نور.

هرگوره، دغه بولۍ هم د ورکولو پرمهال د امريه غونډلو (جملو) بڼې راخپلوي، لکه: تيار سئ! ارام سئ...!

خو له دې پرته، له يوه پياوړي پايخج سره د پخو ترڼگو، يا يې پر بېلابېلو رغنده توکو يو راز زور و فشار د جوړه ترڼگو بڼې لري. په بله وينا، د اړوند بولندوی (قومانده ورکوونکي)

له خوا د ورځنيو خبرو په بهيرکې د ناشننورو يوونونو (واحد ونو) په توګه پر ترڼګونو رااوړي، لکه چې ووايي: زه له کلو نوکلونو راهيسې خپلو سرتېرو ته ((تيار سئ او ارام سئ . ور زده کوم)).

## دویمه ټولۍ (کتېګوري)

### ځرګندیز (اصطلاحي) او ګړنیز (محاوروي) جوتغونډونه

د بوډۍ ټال، د ګیدړ واده، دشکانه سترګه، د مېلمه سترګه،
ړوند چرګ، دمرغۍ وت، د ملا غانبي (غوړګی، مری)،
داسمان غویي، د خدای غویي، د شګو شیطان...

دا راز جوتغونډونه دوې غوره پښوییزې او وییرغاونیزې ټو لۍ له بېلابېلو ټاکندویانو (modifiers)، لکه تولیز (د)، (د لو مړي رغنده غړي پیاوړی خج)، (ستاینوم) او (شمېرنوم) سره راخلي چې موږ د کاراسانۍ لپاره پر بېلابېلو ویي ډلو ویشو.

۱- د هسک وهوا نوموني:

د ګیدړ واده (د شنه اسمان باران)، د بوډۍ ټال، (د) اسمان لار (کهکشان)، (د) اسمان ثاڅکی، اسمان غویی، یا دخدای غویی (حلزون) د اسمان کاڼی یا اسماني کاڼی (سنګ آسمانی)، د اسمان کټ (بنات النعش)، د څوارلسم (-ې)، سپوږمۍ، (د) کاروان ستوری، (د) سهار سترګه یا روڼه سترګه، (د) ماښام سترګه یا د مېلمه سترګه، د شکاڼه سترګه (ستاره یی که پیش از دمیدن صبح می برآید)، لکیوال یا لکیور ستوری (ستارۀ دنباله دار)، اووه یتیمان (هفت ستاره)، ولاړ ستوري (ثوابت)، د واورې سړی (آدم برفی)، د واورې چینجی، څوړندې اوبه (هوای بارانی)، د پېریانو تنور (باز تاب اشعۀ داغ آفتاب)، د لمرسترګه، د لمرتله (استرلاب)، د لمر ټکی یا ټیکلی (قرص آفتاب)، د لمرتندره (کسوف)، د سپوږمۍ تندره (خسوف)....

ژوي ، مرغان:

(د) کارغه پسکی، د خدای غویی (حلزون)، د خدای اوښه (ګهواره جنبان)، د غالبوزو یا مچیوڅاله (ښور) چې په ګړنیزه یا مجازي او کنایي مانا هم کارول کېږي، د ونې مور (نوعی حشرۀ درخت)، ماما غواګۍ یا کازي خر (حشرۀ خرک)، د مټ شیطان یا کولولو (حشره ییکه در بین ریګ کمین ګرفته، مورچه راشکار میکند)، د شګو شیطان، د لېوه اور (نام ګیاهی)،

د غره چاې (گلزوبه، سمسوک)، د غره مږ (غرخه)، شالولکی (مورچۀ بالدار)، پله هيلۍ (قشقل، نوعی مرغا بی)، ګوډی چرګ (ملا گک)، بدځناور يا بدلېوه (خوګ)، شونډ کيز چرګ (پيلمرغ)، توره کجله (گنجشک سياه مايل به خاکی)، شامه توره ()، توره انا=تورانۍ (قره قوش،)، توره بلبله ياتوره تتۍ (عندليب)، تورلمی زېړن (سمند سياه زا نو)....

۲- ونې بوټي:

د تږي ګل (پسرلی مهال د تږي په بېخ پو رې نښتي سپينه خوږه ماده)، د غوماشو ونه (درخت پشه خانه)، پکه پاپکۍ (نباتی مانند کچالو)، پلاس پلی (بوته يی طبی)، د مار ژبۍ (نبات نرمی که سر تا پا برګ دارد)، د چرګ سابه (پا لک)، د غره چای (نبات کوهی که از آن کار چای ميگير ند)، تورکوری (بوته يی طبی)، تورښوری (ښورکی)، سره ترخه (نو عی بوتۀ دشتی)، سره وله (بيد سرخ)، مرغۍ کنی (نوعی گياه پيچک بې برګ)، د کارګه ټونګه (نوعی لالۀ سبز)، پاله هيلۍ (قشقل، هردو نوعی مرغابی ها)... ؛

مرغۍ ډوډۍ يا کارګه ټکۍ (پنيرک)، کار کونډی (بوته يی که در مزرعۀ جواری ميرويد دارای ميوۀ چارمغز مانند که خوردنی نيست)، کاږه وېلني (باديان)، شپانه پنډۍ (نوعی نی قلم)، د سپي شوتله يا (نباتی شفتل مانند که در ننگرهار بر

لب جوی میروید)، لېوني شوتل (نباتی شبدر مانند خودرو است)، لېونۍ شپېشتې (نوعی رشقۀ خودرو)، لېونۍ پنبې (بوته يي طبی)، غوره مرغه (ارغستان)، توره مرغه، وژه يا غوژه (نوعی علف)، توره وښکۍ (هريرۀ سياه)... .

پر ترڼګونو اوښتي يا اوښتونکي بوټي او ګلونه، لکه:
کاروان بوټی (بوتۀ کاروانکش)، ګلونه، ګلوله (ګلبيد)، غر وښته يا سوزی (نوعی علف برای فرش مساجد)، اوښ غولا نځه يا شينګلی، مارباغ (نبات کوهی با برګهای پهن که در قات خرسنګها ميرويد)، مارجونګړ (حشرۀخورد مارمانندی)، ماردنګۍ (شمعدانی)، کورغنډل يا کرغنډل (انجيرهندی = ارهنډه)، لغړګل (ګل چاربرګ)، مير خيری (بوتۀ مزری، بوريا)، ماما غوږ (نباتی شيرين مزه)، مېرمنډک، مارکونډۍ يامرکونډۍ (بوته يي با خار های ګرد)، ميربوټی (مهرګياه)، رېبځبوټی، ګلبوټی، ډنډګلی يا شين ګلی (نيلو فر)، سپوږمۍ بوټی (بوتۀ مدوری با ګلهای آبی)، خره واژ (يو رازنا ښه)، خرپټه (علفی دشتی)، او داسې نور.

- کاڼي، مېنرالونه، غرونه، ډاګونه، لکه:
شين کخ (سنګی رګدار برای تشله سازی)، پکه يا پله تيږه (سنګ ريشه)، د پېريانو کټ (پېريان کټ)، په غرو رغوکې ځلورګوټه توره تېږه)، سره زر (طلا)، سپين زر (نقره؛ پنبه)،

توره طلا (نفت)، تورې يا تروې اوبه (سمندر؛ د معدې تېز اب)، سمندري ځراغ، سمندري غله، ترخې اوبه (شراب)، بزرګه چينه (د مزينې رود په کلې کې يوه پخوانۍ معدني چينه)؛اباسين؛ باباغر، مرګو دښته (د هېلمند خوا ته)، ليلي دښته (دکوندوز- بلخ تر منځ)....

د نجونو او هلکانو لوبې:

پټ غوشوی، توده تيره، توره وځکه، پيشو پړۍ (ريسمان کشی)، پيشو مالګه (بازی)، بنګړي مات، منګي مات، ګړی مات،خرجګ، خرپرخرګردانه، خرخلال، خرخرج (بجل بازی اطفال)، سري سلطان (نوعی بجل بازی)، خربدلي آس بدلي، کورکيا نۍ، کورغوچو ياکوغو چونی، ميرګاټې (بازی سنګ وپنج)، سره توده (نوعی بازی؛ پياوه) ملا ګوډی (-mlā)، ملا پاړی، شاډوله، شاپينپکو، شدوپۍ مستوپۍ....

(۲)- پژني غړي ، لکه:

وچه غاړه،وچه مرۍ يا کرنکه (قصبته الريه)،لنډه غاړه ياسره غاړه (مری)،وچه خوله (ګرسنه)، پوچه خوله (بدزبان)، پټه خوله (خاموش)، سړه خوله (مرده)، د تندي ليک (سرنوشت)، د زړه خواله، د غوږ (يا ټوپک) شپېلۍ (سوراخ ګوش؛ ميلهٔ تفنګ)،

د زړه خبره، د غبرګې روغبړ (غبرروغبړ)، د لاس رو غبړ (لا سروغبړ)، (د غاښو) اووری، د ګوتو یا نوکانو اووری یا یې مجا زي انډول (د ګوتو ستوري)، د زنګانه سترګه، دلمر سترګه، د ماښام سترګه، د سهار، سبا یا کاروان سترګه سترګه(کاروان ستوری)،د پښو خوا (جنوب)، دمړوخوا (شمال) د پښو سپینې ()،د پاچا د لور خولۍ (شیردان ګو سپند که با شکمبه متصل میباشد؛ کلکتی نیز ګویند)....

- د خوراک او پوښاک اړوند :

سرې غوښې (مال یتیم)، سرې مې (نسک)،ړوند چرګ(نوعی بازی)، ړنده چرګه، تور تاوده یا تاوده ساړه (پیاوه)، سړه توده (بازی؛ پیاوه)، د ډل غوړي یاد وازدې (وازګې) غوړي (روغن پیه)، د غالبوزو ښور یا د مچیو ځاله چې په ګړنیزه یامجازي او کنايي ماناهم کارول کېږي، د ځوزوګوړې(ترنجبین)، سپین ټکی(شودې)،تورمخکه (ماسکی از لته ها)، تورو انجه (سیاه دانه)، تور توت، تورې وځکې (کشمش سیاه)، تور غو نډان (انګوری سیاه کلفت)، سره شونډه خاني (نوعی انګور)، توره شمه (غژدی سیاه)، توره دړه(تختهٔ سیاه)،توره(دیني) ارتجاع، سپینه (پانګواکي) ارتجاع، سره(سوسیالیستي) ارتجاع، بر ګه (ملي) ارتجاع، سره کرښه (خط سرخ برای اخطار)، روستی

ټاپی(ضرب الاجل)، روستی څاڅکی وینه، روستی سلګی...

- ناروغی او دارو درمل، لکه:

سره مخه سرخ باد)، سروچوبی (سرخکان)،سره شله (دانه های پیوست سرخکان و چیچک)، اپشولې یا توره تبه (محرقه)، توره ټوخله، شنه ټوخله، توره غاړه، شنه غاړه، یا سره غاړه (سیاه سرفه)، زېړه تبه (تب ملاریا)، له نس تر خوله ایله یا له خولې اولمنې (هیضه)، (د) نس ناسته، کله پنډی (کله چرک)، خرپټ (سوف، نوعی دوا) خرپټه (نبات دشتي که برای تداوي پیچش به کار میبرند)، خروټی سپرغه (سرخکان)، مړه تبه (تب بارک)، مړه خوږ یا مړخوږی (سل)، مړهی به (تب دق و سل)، مړپسکې (مرغ مری)... ؛ توره وڅکی (هلیلهٔ سیاه)...

- مهالنومونه، لکه:

توره خړه، شنه خړه، سپېره ګهیځ (صبح کاذب)، خړګیځ یا شنه خړه(سپیده دم)، سپین ګهیځ یا سپین سبا، چربانګ، شین سهار(ګل صبح ) سپینه(رڼا) ورځ، توره شپه، لوړ ماز یګر، سکنې مابنام، تېرماسخوتن، نری ځابنت، تنکی غرمه

(ور خيمځه)، پوخ ځانښت، تکنده غرمه؛ دم ګړۍ او دم شېبه
له جوړه ترنګونو سره زياته همغږي لري
ننګړۍ شپه (نيمه شب)، دواده شپه (شب زفاف)، د نکريزو
شپه (شب حنأ)، همداوړ لوی اختر، ووړ يا کمکی اختر، لويه
ورځ يا لوورځ يا ورځلوی (قيامت)، د بلنډو يا مړوشپه (شب
عرفه، شبی پيش از عيد)، ړومبۍ شومه (نيمهٔ اول شب)، رو
ستۍ شومه (نيمهٔ دوم شب)، کراره شومه (شب هنګام غرق
سکوت)....
نور راز راز انځوريز جوتغونډونه له بېلابېلو پښوييزو چارو
نو سره
وازه خوله، ويته خوله، وبړه خوله يا چينګه خوله (هېښ، بې
ځوابه ← وازه خوله (نيول يا پاتېدل)، پوچه خوله، بدخولی،
پټه خوله، چوپه خوله (خامو ش)، ګونګه روژه (خاموشي تام)،
چوپه خوله يا چوپ ډېری (اکثريت خاموش)، کړشوپه خوله
(بې غاښو، کناه‌اس)، په غوټه خوله، په لويه خوله (چاته څه
ويل)، په وازکومي، په نرمه يا پسته ژبه، (په) مات مخ، په
ارت مټ، په ورين تندي، په پراخه تندي، په نه خبره يا په نه
څه خبره، په ټيټو سترګو، په هسکو يا جګو سترګو، په
هسکه غاړه، په لوی لاس (قصداً)... ؛

مېږۍ شړۍ (نوعی چکمن منقش با ابریشم و گلابتون)، خر وټې سېرغه (نقش دسترخوان همانند چرخ آسیاب) د سپي ژوند (خوار او بد ژوند)، توري تېپې (ناله و زاری)، توره تېښته (تنفر و بیزاری زیاد)، توره دړه (تختهٔ سیاه)، (د) تي (شودو) ورور یا خور (برادر یا خواهر رضاعی)، د پېريانو کټ یا پېریان کټ؛ ((د پېريانو جنګ)) يوه تازه نومَو نه او د يوه کښلي کتاب نوم هم دی.

* نړيوالې سياسي، فرهنګي نومونې او سېمبولونه:
ناسپېڅلې ټلواله (ایتلاف یا اتحاد نا مقدس)، صليبي جنګ، سوړ جنګ، عربي پسرلی (په تونس، لیبیا، مصر، یمن، سعودي، سوریه ... کې له دروکلو راهیسې پیل شوي پاڅونونه)؛ توره طلا (نفت)، تورنوملیک یالیست، سپین کتاب، سپېڅلې ولنه (غسل تعمید یا مقدس Holy Wash، سور څراغ، شین څراغ، عاج ماڼۍ، فاضله مدینه، اپلاتوني مینه، سپینه ماڼۍ، د نړۍ بام (کوه همالیا)، د چین دېوال، د برلین دېوال...

# درېيمه ټولۍ

## پرتلوييونه ( واژه های قیاسی )

(Analogical word types)

روژه تي< بوزه تي، کوژه تي؛ بدګنه < ښېګنه؛ خمسور < سمسور؛ نمښته (انکار) < منښته (اعتراف)، ننداره(ډرامه)<پيلامه، ډمامه...

په بېلنګونو او ترنګونو پسې د وييرغاونې دا(درېيم) ځېرمه ډول په ژبه کې د داسې زړو بېلښتي (او يو څه ترښتي) بېلګو له مخې را منځته کېږي چې د پخو هغو پرخلاف يې بنسټ او تاړی په اسانه توپيرېدای نه شي او د يووستوو يا ساده ويېو نو په توګه ورسره چلند کېږي.

د پرتليزې (قياسي) رغاونې د لاښه ترا ځرگنداوي لپاره دوه زاړه هممانيزونه (سرکښ، مخکښ) راخلو چې آره مانا يې (سرکښ وز، شاه بز) ده او راروسته يې ترشپنې- پووندگلي پېړو ډگره نوي او ډېر دوده کارونځي پيداکړي دي:

پر ببلابېلو روړدو ترڼگونو او ماناويزونو (سېمانتېزمونو) سربېره ترې يو شمېر پرتلوييونه هم رغېدلي، هغه هم تر ډېره له (لومړني) اړولي (مجازي) جاج و مانا سره، لکه: سرلوړی، سرلاري، سرغړاندی ، سرليکونکی، سرښوونکی... يا (سرو زير) چې تر (لومړي وزير) لنډ او کره راځي.

(دغلته< ليکنښه د سرچينې (منشأ) او مخببلگې په مانا کار ول کېږي)، بېلگې:

ترور< تره+مور، دغلته آر او چورليز توکی (تره) دی چې ستې (تر-) يې له(مور) سره د پرتلې له مخې (ترور) رغولی(ابلفنباين ين ۸۳). خو ښايي، ندرور، نږور... هم ورته پرتلوييونه اوسي؛ (خو ،وروړ) خود(مور) په څېر په گډې هندواروپايي آرې پسې ځي، او (يور) هم له (لېور) سره گډه اېتېمولوجي درلودلې ده.

کنځه (سبابه) او کرځه (د منځې او خچې ترمنځ گوته) < منځه (گوته)؛ کوربه (کوربانه) <مېلمه (مېلمانه)؛ بوزه<روزه(روژه)؛ بوزه تي يا کوزه تي< روژه تي؛ لاسکوسی< لاسپوڅی (زير دست، مطيع؛ چاپلوس)؛ تروږمی< سپوږمی؛ بدګڼه <

ښېگڼه؛ خمسور < سمسور؛ نمښته (انکار) < منښته (اعتراف)، دلته مخبېلگه (منښته) هم وار له مخه له کړنوم < منښت څخه تازه رغول شوې وه.

نندارمه (ډرامه، نمایشنامه) < نندارمه (ډرامه، نمایشنامه) < ډمامه په دويم خج (زمين چقور وآبگير) او په پايخج (نقاره) هرگوره (ښېرمه، ورمه، لېمه، زېرمه، زېرمه، ژامه، گوتمه، کولمه، لومه، دورمه، گردومه (شپول، هاله)، پيارمه...) يې په ناسيده مخبېلگوکې راځي؛

غونډله (جمله) < شمله، ژوبله، پښېرله، دوشېرله، گردله، رېږدله (زلزله)، گډله (غونډه)، وزله (وسيله)، ځاله، ورله، ترله، پرله (- پسې، - پورې، - پېيلې، -غښتې، -اوښتې، -باندې، -وهلې).

سازمان < ستومان، دربمان، (ښځينه بېلگه) کورمانه (خانه داری)... په دې توسن سازمان له پښتو وييرغاونې سره هم اړخ لگوي) او پارسي پورويي ورته نه شو ويلای، نو ځکه يې د (اورگانيزېشن) او (مؤسسه) پرځای کارولای شو، لکه په (گوندي سازمان)، (سياسي سازمان)، (ټولنيز سازمان)، (د ملويا ملگرو ملتو سازمان)... کې.

غبرگبل (ambi-position) < سربل (پيشينه)، وستربل (پسينه)، د رېبل (سه پايه)، غوبل، کوربل....

منځينه < ښځينه، مهينه، پسينه... ؛ ((منځينه)) د پښوييز نو رې يا گرامري جنس ((مخنث)) په جاج رغول شوې او له دوو نورو اندوولو څخه يې ((ښځينه)) د سېمانتېزم په توگه د (مونث) او بيا ورسره ((نرينه)) د (مذکر) په مانا هم رامنځته شوي دي؛

يوگړی (مفرد)، دوه گړی (تثنيه)، ډېرگړی (جمع) < منځگړی، درېمگړی، ژرنده گړی، واره گړی، اومگړی او داسې نور د چارنومونو په توگه دومره اړخ نه لگوي.

سرووپې (شيريخ، آيسکريم) < شدوپې (شدوپې - مستوپې: يوه لوبه)؛ همدا راز يې < سرووبی، خرووبی، گرووبی، گوړووبی، سرووبی، شرومبی... يې هم يوه څه لرې پرتليزې مخبېلگې انگېرل کېدای شي.؛

د بهير، زهير يا د هېر (هجران) پر مخبېلگه د (اثر) د اندوول لپاره له (ننبه) څخه د لطيف بابي (ننبير) يو پرتلو يې بلل کېږي، سره له دې چې په گړدوډ کې يې آر وييې (نخنبه) ويل کېږي. همداسې زموږ د ((يوې-کره-ليکنې پښتو)) د تکړه غورځاوڼ امين الله دريځ (کتنپلاوی) درواخله چې له (کتنځي) سره يې د پرتلې په توگه د (کتونکې ډله) او (ليکونکې ډله) پر ځای رادود کړی دی.

د استاد عبدالله بختاني څلاري (چار راهي) له دې پلوه په پر تلوييونو کې راتلای شي چې د څلبر (حوض)، څلبرويشت، څلوېښت، څله... له مخبېلګو سره سم پکې لنډون راوستل شوی، ځکه چې يې د مخنۍ ترښتي (څلورلاري) انډول دود او منښت ګران برېښېده؛ دو(ه) لاري، درېلاري پرتليزې بېلګې يې خو بې له هغې درې څپيزې دي او ورسره ښه ترا اړخ لګو ای شي؛ (پلې لار) هم د کوم ليکوال له خوا (پللار) شوې، او ښايي له پلار (پدر) سره د هملېکۍ د ټکر له کبله دواړه (لا مونه) خوندي وساتي!

په دې کې څه اړنګ برنګ نشته چې د سېمانتېزم يا د نيولو جېزم د نورو سيده او ناسيده لارو لېلو په پرمختيا يي بهير کې پرتليزه وييرغاونه هم پرمختلونکې ده. د ساري په توګه، نن سبا دا هڅه (تمايل) انګېرل کېږي چې (تودوخه)، (سړوخه) را وزېږوي او يا هم (مېړوښه) (سړوښه)!

د (خوند) ترخنګ (خونده) هم له پورويي (مزه) سره همپايله کېداد پرتليزې هڅې يوه بېلګه ګڼل کېږي؛ د ننګرهار خوا ته د (را کې مزه پاتې نه ده) پرځای وايي: (راکې خونده پاتې نه ده)؛ د خوست خوا ته په خولخونده (مېوه) کې يې هم همدا سې دروا خله.

# څلورمه ټولۍ

## مانونجويزونه (سېمانتېزمونه)

## Semantisms

بهير، دريځ، خبريال، پايله، پنډغالی، لوبغاړی، روستاړی، غورځنګ، ننګونه، پانګونه...

مانونجويزونه يا په لنډه بڼه (مانويزونه) او يا هم (ونجويزونه) د ويييرغاوني دځېرنه ډول په توګه پامور رغاونګ او کارونګ لري. دا هغه راز وييونه دي چې له جوليز (شکلي) پلوه ورسره وار له مخه ستر ګې اشناوي او يوه ټاکلې مانا ښندي، خو له مانيز پلوه پکې بدلون راوستل کېږي. داسې چې يا يې کورته بله مانا ځای نيسي او يا يې له زړې مانا سره سره دو

يمه هغه ورسرباري کېږي، په بله وينا ، پر دوه مانيز او کله هم پر درې مانيز او ځومانيز ويي اوړي.

د بېلگې په توگه (ناسته) پخوا تر ډېره د (ولاړه) پر وړاندې د يوې روږدې (عادي) ناستې او همدا راز د کوشني په تړاو او بيا د (اسهال) په مانا کارېده، او د يوې موخې لپاره د ځو کسو (جلسه) يې روستى کارونځى انگېرل کېده، خو نن سبا يې تر ټولو مخنى کارونځى گرځېدلى، او له دغه پلوه نه يوا زې د (نشست) يا (مجلس) ، چې ان د (گردهمآيى، همايش، محفل، کنفرانس)... ځايناستې شوې ده.

(ننگول) پق (به غيرت آوردن، التجأ نمودن و مدد خواستن) مانا کړى، خو په دې روستيوکې بې بې سي (چېلنج يا چالش کردن) په مانا هم کارولى او کړ نوم (ننگونه) يې د (چېلنج، چالش) په مانا ؛ ورسره ورسره يې بيا (پانگول (سرمايه گذارى کردن) او (پانگونه) هم همداسې پر پرتلويزونو راړولي دي.

لکه په ځلوړمه ټولۍ کې چې د ←پرتلويزونو په تړاو وويل شول، سرکښ، مخکښ(شاه بز، بزپيش روندهٔ رمه) ،)... . ترآر ((پيوندگلي)) پېروډ گره ورو ورو رالرې شوي او د پرتليزو رغا ونو ترخنگ يې بېلابېل سېمانتېزمونه هم رامنځته کړي دي.

د مانو (نجو)يزونو (سېمانتېزمونو) ليکلړ

**ویي پوهنه** **پرتلوییونه**

| ویي | زړه مانا | نوې مانا (پارسي) |
|---|---|---|
| بهیر | قطار مردم یا مورچه | جریان؛ روند، پروسه |
| پایله | پایزیب | نتیجه؛ عاقبت |
| پتمن | آبرومند ،باعزت | شریف |
| پچه | پشقل،لیشک | قُرعه |
| پنډغالی | دخارویو شپول | کمپ،اردوگاه |
| چورلکه | چرخک چوبی× | هلکوپتر |
| څیرل | ریزه ریزه کردن(ارغنداو) | تجزیه کردن، تدقیق کردن |
| څیرنه | | تجزیه، تدقیق(پشاور) |
| خبریال | مخبر،چوغلگر | گوزارشگر، خبرنگار |
| دریځ | ممبر | موقف، موضع موقعي |
| ډانگ لکۍ | بلبل | داینسور |
| روستاړی | دُمچی، پاردُم | پسوند ، سفبکس |

| ژباړه (ژبې | زبانچه | ترجمه، برگردا |
|---|---|---|
| سپړل | کندن | شرح کردن |
| سپړنه | کاوش | شرح، تشريح |
| سپېڅلی | پاکيزه، سترده | مقدس |
| سترگی | سوراخ چشمهٔ آب | عينک |
| سربل | مخکې، مخته | سرآمد؛ پيشين |
| سرغندوی | نوعی گياه | پيش آهنگ؛ سرکرده |
| سرکښ (مخکښ) | بزپيش رونده | سرکش؛ پيشر |
| شنل | تارتارکردن پشم، پخته... | تحليل کردن |
| شننه | صاف کاری پشم، پخته... | تحليل |
| غورځنگ | جست وخيز | جنبش، تحريک، حرک |
| غوړیه | ښکارځېره | گوشک تلفون وغيره |
| لمېسه | مسوده، رونوشت | دوسيه، فايل |
| لوبغاړی | کودک سرِپاآمده؛ باړيگوش | بازيگر:ورزشکا ممثل |
| مخکتنه | رونمايی عروس | رونمايی کتاب |

| ويي پوهـنه | | پرتلوييونه |
|---|---|---|
| مرسته | لتهون، پلتهون | کمک |
| ناسته | نشست؛ اسهال | نشست (جلسه مجلس) |
| (کور) ناستی | | بازنشستگی، تقاعد |
| ننگول | تشجیع-التجأکردن | چېلنج یاچالشکردن |
| ننگونه | تشجیع؛ التجأ | چېلنج ،چالش |
| نوماند | نامدار، نامور؛ مشهور | نامزد، کاندید |
| وستربل(روستېبل) | عقب | پسینه(گرامر) |
| وگړه | مردکه(وزیر) | شخصیت |
| هوکړه | توافق (عروسی) | منظوري، تصوي (= هوکې) |

# پېنځمه ټولۍ

## کربستړنګونه ( ترکیبات هایفن)

## Hyphenated-compounds

کابل- لوګر، میدان-وردګ ولایت،کابل-هرات سړک، علمي-
فرهنګي،څېړنیز- پوهنیز، ژب- توکمیز

د لویدیزو ژبو په لیکني سېستم کې یوه ډله (سست) تړنګونه هم د ټاکلو موخو او ماناوو لپاره له تېرې یوې پېړۍ راهیسې پرلپسې مخ پر ډېرېدا دي،چې له مانیز یووالي سره (زیاتر،) په یوه سست تړنګ کې د رغنده دوو(یاڅو)وییونو او وییکو ترمنځ بېلنښه یا کرښې (دش، هایفن) کښل کېږي او له همدې کبله اړوند رغېدلي تړنګونه په پورتني نامه نومول کېږي، نوکه په شمېر پوهنه (ریا ضی) کې د منفي جاج لپاره کارول

کېږي، خو په ليکنۍ ژبه کې ترې د مثبتې موخې او مانا کار اخېستل کېږي.

هرګوره، دا اړينه نه ده چې دا راز رغاونې دې يومخيز ← د جوتغونډونو بڼه ولري، په نورو ټکو، د کرښنۍ اړوندوييونه يا نومونه دې په ګډه کوم پوخ تړنګ رامنځته نه کاندي او يا په سرچپه ډول، د پخو تړنګونو، ترمنځ دې دغه ليکنښه وا نه چول شي، بلکې د تړنګونو، په تېره د جوړه تړنګونو د بڼه ترا څرګندتيا او ټينګار، او يا د نويو دودېدونکو هغو تر منځ کارول کېږي، د پښتو جوړه تړنګونو ترمنځ يې هم همداسې درواخله.کېږي، لکه:

خور-لور، ژرنده-جومات، پوهه-ګروهه، کور-کالي-ډوډۍ، يوه پښتو-کره پښتو. همداسې په وېش شمېر (يو-يو، دوه-دوه...) يا اټکلشمېر (درې-څلور، لس-شل...) کې.

د تولتړنګو بېلګې، لکه: انګور-بڼ (انګوربڼ)، کور- لګښت (کورلګښت)، ليک-لوست (ليکلوست) چې له پوره دودېدا سره يې دويم ځېلونه ځايناستي کېږي، ځکه د وينګ ترڅنګ د ليکنګ سپما هم له پامه غورځېدای نه شي.

په انګرېزۍ کې يې پخوانۍ بېلګې، لکه د ناسکه خپلوانو د سست تړښتي نومونو دننه:

father-in-law,mother-ín-law,brother-in-law,sister-in-law

اوسنۍ بېلګې:

African-American, pick-me- up, rock-Forming Minerals,short-change,out-of-door,out-of-date, in-short-and long-term... (Ox. Dic.&Collins Dic.).

یا د رسنیو یوواریزې ورځنۍ بېلګې، لکه:

The surface-to-air missile.

stop-and-search, year-til-date, one-on-one with pre

sident.

د لندن ښار(Harrow on-the-Hill ) سیمې نوم ورته تازه

رغا ونه چې د سرېنې پسرلنې(ایستر اختر ۲۰۱۴)په څو ورځنۍ چو ټۍ کې د بېرو خلکو اړتیاوړ خوراکتوکې له مغازو څخه په

يوه بر ښنليک په خپلو کوروکې ترلاسه کړل، ((Shopping-on-the-post)) رامنځته شوه.

يو شمېر هايفنونه له وخت تېرېدنې سره زياتره غورځول کېږي، خو ځينې يې بيا هم هسې د فېشن او ځانښوونې له مخې کاروي، لکه(editor-in-chieve(editor in chieve همداسې -e پرemail اوښتی دی؛

up-to-date ړومبی کرښی له لاسه ورکړې، بيا (to)، ورپسې

وتونه (spaces) او په پای کې پر(update) راوښتی چې نن سبايې د Sit-ins, Highlights په څېر د برګړی (جمع) نوم (Updates) د رسنيزو سرليکونو په توګه هم دود مو ندلی؛ خو له اکسفورډ ، وېبستر او داسې نورو سترو ډېکشنريو او بيا کمپيوټر ساينس) پرته نورو سيندونو لا تاند نېټه (up date)کړی نه دي.

په دې لړ کې لويو سيندونو (ډېکشنريو) له درو ليکدودو سره وړاندې کړې، يو شمېر لکه پاسنۍ بېلګه په همدايوه ساده ليکدود کښلې، ځينې(نوي!) يوازې له کرښيو سره، لکه:

up-and-down; up-and-over, up-and-coming; out-of-door,out-of-the-body, out-of-the-way, hit-and-run ...

او ځینې یې ،که ساده هم کښلې، خوپه لیندیو کې یې بیاکر ښتر ښتي بڼې ورسرباري کړې دي، لکه:

out of date(out-of-date),out of pocket(out-of-pocket)
(Collins. Dec.).

د (euro- news) تلویزیون یو په زړه پورې رسنیزنوښت داچې
د (The news from north,east,west and south) پرځای
یې له (news) خخه ← یو په زړه پورې سرغړویزي ترنگ

(توشيحي ترکيب) ترنګ (north-east-west-south) را منځته کړی دی.

په پښتو کې مورږ د ناوړنده ابېڅې سېستم له کبله د نورو ليکنښو په څېر له (-) څخه دومره کار نه شو اخېستای، په نورو ټکو، له ورته ليکنۍ او ورسره ترلې ژبنۍ سپما ګټه نه شو پورته کولای. د يوشمېر کرښترنګونو بېلګې، لکه:
۱۳۵۰-۱۳۹۰ کلونه (له ۱۳۵۰ څخه تر ۱۳۹۰ پورې کلونه) چې ځلورسره غبرګبلونه مو سپمولي، په ترافيکي نومونه (کابل-ننګرهار) کې يې هم همداسې درواخله چې د سړک ښکارندو يې کوي او که په پرګاډو وکښل شي يا د اړوندې اډې پر سر ليکه (سرلوحه)، نو بياد دغو دوو سيمو ترمنځ يوازې د يوه يووستوي (تګ) پرځای، د (تګ را تګ) موخه راڅرګندوي، په نورو ټکو، يو په زړه پورې ژبني لنډيز و سپما رامنځته کېږي.
په ځينو بېلګوکې که تش ترويېکی (او، و) راسپموي، خو کله ناکله ترې لا کرښکه (-) د مانيز او جوليز يووالي ښه ترا څرګندويي کولای شي، لکه د يوه ولايت د نوم په توګه په
په ځينو بېلګوکې که تش ترويېکی (او، و) راسپموي، خو کله ناکله ترې لا کرښکه (-) د مانيز او جوليز يووالي ښه ترا

څرګندويي کولای شي، لکه د يوه ولايت د نوم په توګه په «ميدان - وردګ» کې.

پوهاند يمين ((دستور معاصر پارسی دری، ۱۳۹۰ص ۷۳-۷۴)) د ويي ډولونو د يوې لنډې کتنې په ترڅ کې دغه راز وييغو نډونه چې «مرکب اتصالی» يې نوموي، له جوړه ترنګو سره دا سې راتوپيروي:

... فرق عمدهٔ هايفن و«دش» اينست که نخستين مفهوم اتصال و دومی معنای انفصال را ميرساند و در همين زمينه ها بکار ميروند؛ هايفن نسبت به دش کوتاه تر ميباشد، مثلاً ((اندو- اروپايی، پروژهٔ سرک سازی پلخمری- چاريکار، فلم مشترک فرانسوی- ايتالوی و نظاير آن. هرگاه اينگونه کلمه به شکل مرکب عطفی گفته شود رسانندهٔ همان مفهوم نبوده بلکه معنای ديگری را افاده ميکند: مثلاً اگر بگوييم پروژهٔ سرک سازی کابل و چاريکار معنی آن ميشود که: پروژه های سرک سازی واقع درکابل وچاريکار و اما اگر بگوييم: پروژهٔ سرک سازی کابل - چاريکار اين معنی را افاده ميکند: پروژهٔ سرک سازی از کابل تا چاريکار. زيرا در اينصورت «هايفن» که نشانهٔ اتصال است هردو کلمهٔ کابل و چاريکار را مانند اجزای يک کلمهٔ آميخته بهم متصل ساخته است و هر دو اينجا مضاف اليه واقع شده است و اما در مورد نخست کلمهٔ ما

بعد وماقبل(و) عطف مشخصات یکسان داشته تحت حکم پروژهٔ سرک سازی قرار میگیرند و آنرا میتوان اینطور گفت: پروژهٔ سرک سازی کابل و پرژهٔ سرک سازی چاریکار.))

په پښتو، پارسي او اردو عربي آري لیک چوکاټ کې د هېوا دونو د تړاو ښوونې په موخه نوې رادود شوې کرښې څه نا څه ښه تراکارونګ موندلی دی،لکه: د افغانستان- پاکستان (پاک-افغان) اړیکي، دافغاني-ایراني ګډې پولې په اوږدو کې، د تورک-افغان یاافغان-جرمن تاریخي دوستي، د افغا نستان-ایران-پاکستان- تورکیې- تا جیکستان... د اقتصادي همکارۍ تړون او داسې نور. جنجالي یې ((د درو پارسي ژبو (!) هېوادو افغا نستان-ایران-تاجیکستان ګډ تلو یزیون)) بېلګه ده!

له تېرې نیمې پېړۍ راهیسې چې د کابل پوهنتون د ژبو او اد بیاتو په پوهنځي کې د نوې پښتو ژبپوهنې تړښتي نومونې رادود شوې او یوه لسیزه راروسته یې یوه پرلغښتې ښه ومو ندله، زیاتره له کرښیو کار اخېستل کېده. په دې لړکې ځینې تراوسه هغسې پاتې دي، لکه د وتوځیو(مخرجونو) په تړاو: ژب- تالوییز(زبانی-کامی)، غاښیز- شونډیز(لب-دنداني)، غا ښیز-اووریز... ؛ نورې تړښتي بېلګې، لکه: (یوه پښتو- کره

پښتو) یا څو تړکیزې (یوه- نړه- خوږه-کره پښتو)، (یوه یواز ښې- کره لیکنۍ پښتو)، (یوه- کره پښتو لیکلار)، خو دېری ږومبی له کرښیو سره راپیل شوې، په دویم پړاو کې یې سره رغنده تړکونه جلاجلا او په دریم کې یې د پښتو لیکدود له شونتیاوو سره ګډه ښه راخپله کړې ده، لکه:

ویي- پوهنه (وییپوهنه)؛ ویي- رغاونه،ویي رغاونه (وییر غاونه)، ویي- پانګه، ویي پانګه(وییپانګه)؛ همداسې (وییز پرمه)، ژبپانګه) او داسې نورې..

دا دی، د علمي، فرهنګي، تخنیکي، اقتصادي، سیاسي، جغرافیایي... نومَونو (دانشواژه ها) په تړاو کرښترڼګونه سره پر رازراز ډلو تپلو وېشلای شو، خو سم له لاسه یې د کار اسا نۍ لپاره په درو هغو کې رالنډوو:

۱) د شمېر پوهنې په تړاو، د تړلیزو شمېرو (ارقامو اعدادو او بیا نېټو (۱۳۱۵-۱۳۹۲...) ترڅنګ، د وېش شمېر (انقسا مي عدد)، لکه: یو-یو، دوه- دوه، درې-درې؛ اټکلشمېر (تخمیني شمېر) کې:یو-دوه، درې-څلور، لس- شل، دېرش- څلو ښېت...زر-دوه (زره)، میلیون دوه (میلیونه)، میلیارد دوه (ملیارده)... هم همدا سې دروا خله.

۲) جغرافیایي نومونې: سوېل - ختیځ، سوېل - لوېدیځ، شمال - ختیځ، شمال - لوېدیځ، یورو- ایشیا، یورو- چېنل

(تر اوبو لاندې هغه اوږد تونل چې برتانيا له نورې اروپا سره نښلوي)....

۳) مهالتاکي: ۱-۲ دقيقې، ۲-۳ګړۍ( يا ورځې، اوونۍ، ميا شتې، کلونه). اټکلشمېر چې د هندسي سېمبولونو پرځای په توريو ليکل کېږي، او که د ټکر خبره نه وي، نو لکه پاس چې نغوته وشوه، کرښکې کارول دومره اړين نه دي او لوستنه پو هېدنه کې يې کومه ستونزه نه پېښېږي،لکه :دوه درې کسان، لس شل افغانۍ، لس دولس کاله، افغان-انګليس جنګونه (Anglo-Afghan wars)....

ناويلې دې پاتې نه وي چې پورتنۍ بېلګې نن سبا زموږ په ژبو کې زياتره پر پخو (جوړه ترنګونو) اوښتي دي. هرګوره، په اروپايي ژبو کې دغه بشپړتيايي بهير د پښتو يا پارسي هو مره چټک نه بر ښي، نو له دې ترښتي ځانګړتيا سره، موږ د لويديزې نړۍ پر وړاندې د کرښکې (هايفن) کم کارونګ تر ډېره راسکينده (تلا فی) کولای شو.

په هغو غبرګو کرښترنګونو کې چې له دوه غبرګو ترښتي وييونو څخه رغېدلي، لومړی ترنګ يووستوی کېږي او وا وېلي پايله يې هم غورځي اوله دې سره ليکنۍ- ژبنۍ سپما ښه ترا رامنځته کېږي :د غه راز رغاونو تر هر څه له مخه په

علمي او تخنيکي نومَونو کې ډېر دود موندلی ، لکه په دې لاندې : علمي، فرهنگي او تخنيکي ترښتي نومَونو کې :
کيميايي- بيالوجيکي (زيست شيمی bio-chemistry)؛ ټولن - وټيز (اجتماعي - اقتصا دي social-economic) ، ژب - ټو لنپوهنه (socio-languistics) ،ژب-ساپوهنه (زبان-روانشنا سی psycho-languistics) ، ژب-توکمپوهنه ( زبان – نژاد شناسی ethno-languistics)....

دا چې زموږ په ژبو ، په تېره پښتو کې دغه راز ترښتي نومَو نې زياتره د اروپايي هغو سرچپه رادود شوې دي، ښايي، بد يعي( rhetorical) دک ودليل ولري، په نورو ټکو،د روانۍ او خوږغږۍ (فصاحت و بلاغت) له پلوه مو پر ژبه اسانې او روا نې ادا کېږي او پرغوږو مو هم ښې لگېږي.
ايرانيانو ، هرگوره، په يوه نيم نيولوجېزم کې همغه لويديځو ال آر اوډون راخوندي کړی، لکه واخلې په کيميايي- بيالو جيکي ((زيست شيمی bio-chemistry) کې. دا په دې مانا چې هره نومونه له آره د ړومبنۍ دې په خبرمه ځانگو کې را ځي، لکه دغه روستۍ نومونه د ژوندپوهنې (بيالوجی) يوه خبرمه ځانگه ده، همداسې د ژبپوهنې او نورې هغه هم دروا خله.

پای

# نوې وییپانگه او نومَونې(اصطلاحات)

| ویی | پارسي مانا |
| --- | --- |
| اټکل | گومان، حدس، تخمین، پیش |
| - شمیر | تخمیني یا غیر معین عدد |
| اخځ | مأخذ |
| اخځلیک | د ماخذونو فهرست |
| آر | اصل، پرنسیپ ، اصیل، اصلي |
| آرپېر | اصلي حالت(نوم) |
| آرشمېر | اصلی عدد |
| آره | اصل، منشاء، نسب |
| آړ | شرط، مانع |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| اړوتی | شرطی، مشروط |
| اړوند | تابع، متعلق، مربوط |
| اړوندي | تابعیت، تعلق، ارتباط، مربوطیت |
| اړیکپېر | ارتباطی حالت |
| اړیکنو مځری | ارتباطی ضمیر |
| اړیکو ییکی | ارتباطی ادات (حرف رابط) |
| اړینتیا | ضرورت (نیازمندی) |
| انځور لیک | گراف، دیاگرام |
| اند | فکر، مفکوره |
| اندیال | مفکر، متفکر (اندیشمند) |
| اندپوهه | ایدیولوژی، ایډیالوجي |
| انددود | طرز فکر |
| انگازه | انعکاس (بازتاب، پژواک) |
| انگینوم | صوتی نوم (نام آوا) |
| - تړنگ | صوتي ترکیب (دړزودروز...) |
| انگینو میز | صوتی (نام آوایی) |
| اواز | فونیم (واج) |
| اواز پوهه | فونیمیکس (واجشناسی) |
| اوډ (اوډون) | نظم، ترتیب |
| اوډل | ترتیبول، تنظیمول |

| ويي پوهــنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| اوډله | تگميم، خپلواکه غونډله |
| اوريز | سمعی، سماعی، شنوايی |
| اوړون | گردان، تصريف |
| اوړوني | گرداني، تصريفي |
| اوړيدونی | گردانيدونکی (اسم، فعل) |
| - ژبه | متصرفه ژبه |
| (ا)وستربل | پسينه، پوستپوزيشن |
| اوښتون | تغيير، تحول؛ انقلاب |
| اوښتی پېر | مغيره حالت |
| اېښونی | مسند ، خبر (گزاره) |
| اېښی | مسند اليه، مبتداً ، نهاد |
| بډ مانيز | متضاد المعنی (ويی) |
| بشپړ | مکمل؛ مطلق |
| - کړ | مطلق فعل |
| - تېرمهال | مطلقه ماضی |
| - (ا)وستر مهال | مطلق مستقبل |
| - (ا)وسمهال | مطلق حال |
| بشپړاند | بشپړوونکی |
| - کړ | سوپلتيف يا ناقص فعل |
| بشپړن | متمم (قيد وزمه) |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| بيا پېښني | تکرار |
| بياځلي | تکراري |
| - ترنګ | تکراری ترکیب |
| بېچار | مجهول، پسیف |
| -کړ | مجهول فعل |
| -کړنوم | مفعولی صفت (صفت فعلی حال) |
| بيدوده | بېقاعده (=بېدويه) |
| بيدودي | بيقاعده گي (= بېدويي) |
| بېلتون و پيوستون | فصل و وصل (غږ پوهه) |
| بېلښت | اشتقاق |
| بيلښتي | اشقاقی (اسم، فعل) |
| بېلنګ | مشتق، اشتقاق |
| اړیکنوم- | د نسبتي اسم مشتق |
| چارنوم- | د حرفوي اسم مشتق یا اشتقاق |
| ځاينوم- | د مکاني اسم مشتق |
| څيزنوم- | داسم يا سوبستانتيف مشتق |
| ستاينوم- | وصفي مشتق |
| کړنوم(کړوالنوم)- | فعلي مشتق |
| کوشيننوم- | د مصغر يا تصغيري اسم مشتق |
| لوښنوم- | د اسم آله مشتق |

| ويي پوهـنه | پرتلوييونه |
| --- | --- |
| مانانوميز- | د اسم معنا مشتق |
| نوم(نوموال)- | اسمي مشتق |
| بيواک (غږ) | کنسوننت، صامت (همخوان) |
| پايڅوړ | تعليق، تتمه |
| پايلنيوی | نتيجه گيری، استنتاج |
| پايله | خاتمه ( اسمي، فعلي ) |
| پاپليزه | ( دکتاب) خاتمه |
| پډلويي | تحريمي ويی،تابو taboo |
| پرتلويزی | قياسي لغت |
| پرتله | مقايسه، نسبت؛ انالوجي |
| پرتليز | مقايسي، نسبي؛ انالوجيک |
| پرتليزواله | نسبتيت، ربلتيويزم؛ انالوجي |
| پژنوم | ذات اسم (= زات نوم) |
| پژنی | بدني، جسمي، ذاتي |
| پژی | بدن، جسم، ذات، وجود |
| پژيه | مجسمه (تنديس) |
| پښنوپوهاند | گرامرپست (دستورشناس) |
| پښنويه | گرامر، دستور، صرف و نحو |
| پښنوييز | گرامری |
| - چار | گرامري عمليه (عمليۀ دستوری) |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| پلوي | طرفدار، سمتی، توجیهی |
| - نومځری | سمتی ضمیر |
| پوخ تړنګ | پوخ (لغوي) ترکیب |
| -ژباړه | مستعاره ژباړه |
| پور غږ | واج قرضی |
| پور ويي | مستعار لغت (واژه ی قرضی) |
| پوړ شمير | رتبی یا وصفی عدد |
| پوښتنښه | د سوالیی علامه (؟) |
| پوښتنليک | پرسشنامه |
| پوښتنومځری | استفهامی ضمیر |
| پوښتني | استفهامی |
| پېر | مرحله، دوره؛ حالت (دستور) |
| آر- | اصلي یاغیرمغیره حالت |
| اوښتی- | مغیره حالت |
| تول- | اضافي حالت |
| کړند- | فاعلي حالت |
| کړی- | مفعولي حالت |
| لرکړی- | د باواسطه مفعول حالت |
| لنډکړی- | د بېواسطه مفعول حالت |
| پېژند | تعریف؛ ارتیکل (حرف تعریف) |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| - پاڼه | شناسنامه، ورق، کارت هويت |
| تاړی | وند ، افېکس |
| تړښتي | ترکيبي |
| تړنگ | ترکيب |
| بياځلي- | تکراري ترکيب |
| ټاکن- | تعييني ترکيب |
| جوړه- | عطفي ترکيب |
| ستاينوم- | وصفي ترکيب |
| کړ(کړوال)- | فعلي ترکيب |
| کوشيننوم- | تصغيري ترکيب |
| تړوييکی | حرف عطف، د عطف توری |
| توريز | حرفي، حروفي |
| توری | حرف، گرافيم |
| توسن | سبب، علت (= لامَل، کبل) |
| - پېر | الی حالت (لامل پېر) |
| - وييکی | د علت توری |
| توسنی | الی، علتی، علتيه، معلول |
| توک ( توکی) | عنصر، ماده (توکونه، توکي) |
| تول | مال، ملکيت؛ اضافت |
| - نوم | مضاف اليه |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| - نومځری | ملکی یا اضافی ضمیر |
| تولي | مضاف |
| تون | ځای، ظرفیت |
| - پېر | ظرفی حالت، لوکاتیف |
| توني | ظرفی، مکانی |
| -کړول | مکانی قید ،بشپړن (متمم) |
| تېرمهالکړ | ماضی فعل |
| تېرویزی | تاریخي ویی، هېستورېزم |
| ټکرویی | تصادفی لغت |
| ټوک | جزء؛ جلد |
| ټوکر | پاراگراف |
| ټولنوم | عام اسم |
| ټولی | کتېگوري؛ مقوله |
| ټولیز یا ټولوال | کل، عمومی، عامه، جمعي |
| جاج | فکر؛ مفهوم |
| جوت | معلوم؛ ثابت؛ مشخص |
| جوړه ترنګ | جفتی یا عطفي ترکیب |
| جَوله | بڼه، شکل، لفظ |
| جولیز | شکلی، ظاهری، لفظی |
| چار | عمل، عملیه، فعالیت، فنکشن |

| ويي پوهــنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| - نوم | نومن اېجنت، حرفوي اسم |
| - وال | فعال، معلوم |
| چاروال کړ | معلوم فعل |
| - نوم | فاعلي صفت |
| ځانګړ نومځري | شخصی ضمير |
| ځانګړ نوم | خاص اسم، علم |
| څپه | هجأ، سيلاب |
| څپيز | هجايي، سيلابي |
| څرګندنه | اصطلاح، اېکسپرېشن |
| څرګندنی | تشريحي، توضيحی، افادوي |
| څرګندنيز | اصطلاحي |
| څېرمه | ضمنی، الحاقی |
| - ييز | فرعی |
| - غونډله | فرعی جمله |
| څرنګوالی | کيفيت |
| څرنګيز | کيفی |
| څومره والی | کميت |
| څومره ييز | کمی، کميتی |
| څومانيز (د پرمانيز) | کثيرالمعاني ويی |
| څيز نوم | اسم، سوبستانتيف |

| ويي پوهــنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| - ترنگ | اسمی ترکیب |
| څيز نوميز | اسمی |
| څيزوال | غیر شخصی |
| خبر | خبر، مسند، گزاره |
| خبري | خبری، بیانی، بیانیه |
| - کړ | خبری یا بیانیه کړ |
| خپلواک (غږ) | واوېل(وېل) |
| خج | فشار |
| خجن | فشار |
| دوه مانيز | ذوالمعنين (= غبرگمانيز) |
| دوی | قانون |
| دویه | قاعده |
| دوييز | قانوني؛ با قاعده |
| دوييزه | مثنوي |
| ډيرگړی | جمع |
| ډير(څو) مانيز | کثير المعنی |
| روږدني | اعتيادي(فعل) |
| -کړ | اعتيادي کړ |
| روږد (ی) | معتاد ؛ عادي |
| روستاړی | پسوند ، لاحقه، سفيکس |

| ویي پوهنه | پرتلوییونه |
| --- | --- |
| اړیکنوم- | د نسبتي اسم پسوند |
| چارنوم- | د حرفوي اسم پسوند |
| ځاینوم- | دمکاني اسم روستاړی |
| ځیزنومروستاړی | اسمي پسوند |
| ستاینوم- | صفتي لاحقه یا پسوند |
| کوشین- | تصغیري لاحقه یا پسوند |
| لوښنومیز- | آلي روستاړی |
| مانانوم- | د اسم معنا پسوند |
| مهالنوم- | د اسم زمان پسوند |
| [illegible]زی | زوړ ویی، ارکاییزم |
| زور خج | دینامیک خج |
| ژبپوهاند | زبانشناس |
| ژبپوهنه | زبانشناسی |
| ژبپوهنیز | لینگویستیکی |
| ژبنی ، | لسانی (زبانی) |
| ستاینوم | (اسم) صفت |
| - تړنگ | صفتی ترکیب |
| ستاینومیز | صفتی |
| ستاینگ | صفت، توصیف، ستایش |
| سربل | پیشینه، پریپوزیشن |

| ويي پوهــنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| سرغاړی | سرکش، متمرد؛ متضاد |
| سرغړويزی | توشيحي ويی(لغت) |
| سنست ترڼگ | سست (نحوي) ترکيب ياعبارت |
| سول | عقل، منطق |
| سوليز | معقول، منطقی |
| شمېرنوم | عدد (اسم) |
| - ترڼگ | عددي ترکيب |
| شننه | تحليل، تفسير، تجزيه |
| شننوړ | تجزيه کېدونکی (قابل تجزيه) |
| شننيز | تحليلي، تفسيري، تجزيه يي |
| ښځينه | زنانه يی؛ تأنيثي، مؤنث |
| - نوږی | ښځينه جنس |
| غاړه | ترنم؛ لحن (← نازنځيري فونيم) |
| غبرگغږ | ديفتونگ، ډيفتانگ |
| غبرگون | عکس العمل (واکنش، پاسخ) |
| - کړ | انعکاسی فعل |
| - نومځری | انعکاسي ضمير (ځان وژل) |
| غږ (ږغ) | فون، صدا، سوند |
| - پوهه (پوهنه) | فونولوژي، فونالوجي (آواشناسی) |
| پوهيز | فونولوژيکي |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| غوښتنی | دعائیه، مطلوب |
| - کړ | دعائیه فعل یا صیغه |
| غونډ | گروپ؛ فقره، عبارت |
| جوت- | ثابت عبارت، کنستېټوینت |
| کړولي- | قیدي عبارت (=کړوالغونډ) |
| کړول(کړولي)- | قیدي فقره یا عبارت |
| کړ(کړوال)- | دغونډلې مسند یا خبري غونډ |
| نوم(نوموال)- | دغونډلې مسندالیه یا مبتدأ |
| غونډال | سیستم |
| غونډله | |

ɣwə́nḍla جمله

| | |
|---|---|
| - پوهه(پوهنه) | نحو، سېنتکس |
| - پوهیز | نحوي |
| - ییز | جمله يي، جملوي |
| غونډ نوم | اسم جمع |
| کړ | فعل |
| - اوړون | د فعل گردان |
| - تړ | تړخپلواک |

| ويي پوهـنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| - توک | فعلي عنصر |
| - ستنه(- مونه) | فعلي اصل يا اساس |
| - غونډ | فعلي گروپ |
| - مهال | فعلي زمانه |
| - نوږي | فعلي جنس |
| - نوم | فعلي ( مشتق ) نوم |
| کړند | فاعل |
| - پېر | فاعلي حالت، نوميناتيف |
| کړوال | فعلي |
| - غونډ | فعلي عبارت، فقره ، فريز |
| کړواله غونډله | فعلي جمله |
| کړول | قيد adverb |
| - تړنگ | قيدي ترکيب، مرکب قيد |
| کړولي | قيدي |
| کړولې | فعلي رېښه |
| کړي | مفعول |
| کوشينتړنگ | تصغيري ترکيب |
| کوشيننوم | مصغر اسم |
| گردان | اوړون، تصريف |
| گړ | مورفيم، واژک (يمين) |

| ويي پوهـنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| - پوهه | صرف، مورفولوژی |
| - پوهيز | صرفي |
| ګړنپوهنه | اصطلاحشناسی، فرازيولوژی |
| ګړنه | اصطلاح، محاوره، ايديم |
| ګړنيز | محاوروي، ايديوماتيک |
| ګڼه | عدد (افراد، تثنيه، جمع) |
| ګوماني | شکي، احتمالي |
| لالرنغوتنومځری | لا لرې اشاری ضمير (هوغه) |
| لر تېر مهال | بعيده ماضی |
| لرستاينوم | مسندي صفت |
| لرکړی | بالواسطه مفعول، داتيف |
| - پېر | بالواسطه مفعول حالت، داتيف |
| لرنغوتنومځری | لری اشاری ضمير (هغه) |
| لښتيليک | جدول، انځورليک (نمودار) |
| لنډ تېر مهال | قريبه ماضی |
| لنډ ستاينوم | د مسنداليه صفت، نژدې صفت |
| لنډ کړی | بې واسطه مفعول، اکوزاتيف |
| لنډ کړی پېر | د بې واسطه مفعول حالت |
| لوستليکی | درسي کتاب، تکسبوک |
| لوښن يا لوښين | آلي، انسترو منتال |

| ويي پوهــنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| لوښنوم | آلی اسم |
| - پېر | آلی حالت، انسترومنتاتيف |
| لېږند | متعدي |
| - کړ | متعدی فعل، ترانز تيف فعل |
| - چارکړ | کوزاتيف فعل (فعل صناعی) |
| ليکلړ | لست، مينيو |
| ليکنښه | د تنقيط علامه، پنکچوېشن |
| ليکنی | تحريري، کتبي (نوشتاری) |
| ليکی | کتاب |
| مانا | معنی، معنا |
| - پوهنه | علم المعانی، سيمانتيکس |
| - توک | معنوي عنصر |
| - نوم | اسم معنی |
| - ونج | معنوي تغيير |
| - ونجی (ونجويزی) | مانابدلی ويی، سېمانتېزم |
| مانگړ | کوشنيترين پښوييزتوک، مونيم |
| مانيز | معنوی، بامعنی |
| مخبېلگه | مادل، پېترن |
| مختاړی | پيشوند، سابقه، پرېفېکس |
| مخکړ | فعلی مختاړی، پريوېرب |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
| --- | --- |
| مرستيالكړ | معاون فعل |
| منځتاړی | اينفېكس (ميانوند) |
| منځوالكړ | انعكاسی فعل (= غبرگون كړ) |
| موخه | هدف، مقصد، مطلب |
| موخن | مطلوب؛ هدفمند |
| مهمل ترڼگ | مهمل تركيب |
| نابشپړكړ | نامطلق فعل، استمراری فعل |
| ناپای | نا تمام؛ مصدر، انفينيتيف |
| ناپېژند | حرف نكره، تعريف غيرمعين |
| ناتړوييكی | د عطف ضد (كه، يا) |
| ناتېرمهال | حال يا استقبال |
| نازنځيري فونيم | عروضي فونيم (واج زبر زنجيری) |
| ناليږندكړ | لازمي فعل، اينترانزيتيف فعل |
|ناوړېدونی | ناتصريفي، نه گردانيدونكی |
| ناوړېدونې ژبې | ناتصريفي ژبې |
| نرينه | مذكر |
| نغوته، نغوتنه | اشاره |
| نغوتنومځری | اشاری ضمير |
| نوچار (نوښت) | ابتكار (وآوری) |
| نوږنوم | اسم جنس |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
| --- | --- |
| نوري | جنس |
| نورېز | جنسی |
| نوم | اسم |
| -اوړون | د اسم گردان |
| -اوښتون | د اسم تغيير |
| - بېلنګ | اسمي مشتق |
| پژ(زات)- | ذات اسم، کانکرېتوم |
| - پېر | اسمی حالت |
| - تړنګ | اسمی ترکيب |
| ټول- | عام اسم |
| چارنوم | حرفوي اسم، نومن اېجنت |
| ځانګړ- | خاص اسم |
| - ځری | ضمير ( ځری = نماينده ) |
| څيز- | اسم، سوستانتيف substantive |
| ستای- | صفت اسم |
| -ستړه | د اسم مونډ (ستاک) |
| شمېر- | عدد اسم |
| - غونډ | اسمي فقره؛ مسند اليه (نهاد) |
| غونډ- | جمع اسم، کولکتيوم |
| -کړ | اسمي فعل، پرکړاوښتی نوم |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| -کرېبلنگ | د اسمي فعل مشتق |
| -ليک (نوملړ) | فهرست اسمايا اعلام، اېنډېکس |
| مانا- | معنا (مجرد) اسمړ ابستركتوم |
| نوم- | اسم جنس |
| - نومي | اسمي جنس |
| نوموال يا نوميز | اسمي |
| نومواله غونډله | اسمی جمله |
| نومواله گڼه | اسمی محاوره يا ايډيم |
| نومونپوهه | ترمينولوژی، ترمينالوجي |
| نومَونه | اصطلاح، ترم (ناموازه) |
| نومېرل | تشخيصول ، مشخصول |
| نوميز (نوموال) | اسمي |
| نويزی | نوی رغولی ويی، نيولوجېزم |
| نيمواک (غږ) | نيم واول (شبه وېل) |
| نيوليک | فهرست مندرجات |
| ورتنی | تشبيهی ، مشابه |
| ورته مانيز | قريب المعنی |
| ورمندون | امر، حکم، قضاوت |
| ورمنديز | امري، قضاوتي، قضايي |
| وگړپوهنه | انتروپولوژي (بشر شناسی) |

| ويي پوهنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| وګړی | د شخص صيغه (نشانهٔ شخص) |
| ولۍ | ريشه، جذر، روت |
| ونج | بدل، عوض؛ مېز |
| ونجول | بدلول، تبديلول، عوضول |
| ونجون | بدلون، معاوضه |
| ونجويزی (ماناونجی) | مانابدلی ويی، سېمانتېزم |
| ونجېدل | بدليدل، عوضيدل |
| ووړشمير | کسری عدد |
| ويش شمير | انقسامی عدد |
| وينګ (ويون) | تلفظ، ادا ينه، سخونه |
| ويی (ګای) | لغت، کلمه، واژه، ليکزيم |
| -او ډون | ترتيب کلمات |
| بله- | مختلف المعنی کلمې |
| - پانګه (-زېرمه) | لغوی ذخيره، ويکابولري |
| پدل- | تحريمي ويی، taboo |
| - پور | وام ياقرض واژه يی |
| پور- | واژهٔ قرضي، مستعاره کلمه |
| - پوهنه | لغت شناسی، واژه شناسی |

| ويي پوهـنه | پرتلوييونه |
|---|---|
| - پيدا ينښت | لغوی پيدا يش |
| - جوړښت | لغوي ساختمان |
| - خج | لغوی فشار |
| - رغاونه | نيولوجېزم (واژه سازی) |
| -زېرمه | وييپانگه، لغوي ذخيره |
| وييز | لغوي، کلموی |
| وييکنومځری | اداتی ضمير |
| وييکی | ادات، حرف، پاريتکل |
| آړ- | شرطيه ادات |
| اړيک- | ادات(حرف) ربط(صله و موصول) |
| تړ- | عطف (ادات،حرف) |
| ناتړ- | عطف ضد ادات(که، يا) |
| همجوليز | متشابه (ويی) |
| همماليز | هم معنايا مترادف (ويی) |
| همېشنی | يا هميشه يی استمراری، دايمی |
| هېښ | حيران، متحير، متعجب |
| هېښتيا | حيراني، تحير، تعجب، سلمه |
| هېښنده | محير، تعجب آور |
| هېښني | تعجبی |
| يو گړی | مفرد |

| ويي پوهـنه | پرتلوييونه |
| --- | --- |
| يووستوى | ساده، بسيط ويى (تکواژه) |
| يوون | واحد، يونټ |

# اخځلیک

افغاننویس، عبدالله ، افغان قاموس، دري ټوکیز پارسي، پښتو سیند ، پښتو ټولنه کابل...
باطنی، زبان و تفکر (مجموعهٔ مقالات زبانشناسي) نشر آبانگاه، تهران. ۱۳۸۰.
پق (پښتو قاموس، پښتو ټولنه: ۱- ټوک۱۳۳۰=۲-ټوک۱۳۳۳
چامسکی،نوم: دانش زبان، ماهیت، منشأ و کار برد آن ۱۹۸۰ (ترجمهٔ علی درزی) نشر نی، تهران۱۳۸۰.
دوست شینواری، ژبپانگه. دانش، پېښور ۱۳۷۷ل/ ۱۹۹۸م.
رښتین، صدیق الله ، پښتو اشتقاقونه او ترکیبونه، کابل ۱۳۲۶ ؛ دویم چاپ، پېښور ۱۳۸۳
زیار، مجاوراحمد ، ویي پوهنه، د کابل پوهنتون. د لوړو زده کړو چاپخونه ۱۹۸۱.

-۱۹۹۳: پښتوسيندګی، هممانيزونه.د پښتو پانګې ملګري، سرحدچاپخونه، پېښور۱۳۷۲ل/۱۹۹۴م.
-۱۳۸۴ل: پښتو پښويه. دويم او درېيم چاپ، دانش خپرند ويه ټولنه، پېښور.
-۱۳۸۴ل: پښتو بدلمېچ، پښتو شعر څنګه جوړېږي؟. دانش خپرندويه ټولنه، پېښور. ۱۳۸۹ل.
-۱۳۹۰ ل/ ۲۰۱۱ز: پښتو آرپوهيز (اېټېمولوجيک) سيندګی، لومړی ټوک (ا- ب- پ- ت- ټ). دانش خپرندويه ټولنه پېښور.
-۱۹۹۱ل/ ۲۰۱۲ ز: ← پښتو سيندګی، نويزونه.دويم غځېدلی چاپ، پېښور، ۱۳۹۱ل/ ۲۰۱۲م.
صميم، محمدآصف، د لرغونې شاعرۍ ګړنې(محاورې)، دپښتني فرهنګ د ودې او پراختيا ټولنه، جرمني. دانش، پېښور ۱۳۷۸ل/ ۲۰۰۰م.
- ۱۳۸۱ل. وييزپړمه.(لغوي پانګه)، پېښور، احسان خپرندويه ټولنه.
يمين، محمد حسين، دستور معاصر پارسی دری، چاپ هشتم. بنګاه انتشارات و مطبعۀ ميوند، کابل ۲۰۱۱/۱۳۹۰م
- ۱۳۶۵: دستور زبان دری- بخش دوم، نحو. پوهنځی زبان وادبيات، پوهنتون کابل.

De Saussure,F., Grundfragen der allgemienen Sprachwissenschaft, Übersetzer: Lommel,H ۲. Auflage. Berlin۱۹۲۷.

Mario A. Pei: A Dictionary of Languistics: Columbia University. New York, USA ۱۹۵۴.

Morgenstierne, Georg, An Etymological Vocabulary of Pashto.۱. Kommisjon Hos Jacob Dybwad,Oslo ۱۹۲۷.

Ulrich, Winfried, Wörterbuch Linguistische Grundbegriffe.

Verlag Ferdinand Hirt. Germany ۱۹۷۲.

Wahrig,Das Grosse Deutche Wörterbuch. Bertelsmann Verlag. Germany ۱۹۲۲.

**Prof. Dr. M. A. Zyar**

# The
# Pashto Lexicology
# &
# Word formation

Oxford, ۲۰۱۴

خپرندوی:




مومند خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه- جلال اباد

اړیکي: ۰۷۰۰۲۲۲۱۲۱ \ ۰۷۷۷۲۲۲۱۲۱